# د افغانستان د خپلواکی
# او
# نجات تاریخ



د پیاوري مجاهد، بریالي غازي او نامتو مبارز
جرنیل یار محمد خان وزیري په خاطراتو کښې

# د افغانستان د خپلواکۍ او نجات تاریخ

د پیاوړي مجاهد، بریالي غازي او نامتو مبارز

جرنیل یارمحمد خان وزیري

په خاطراتو کښې



۱۳۷۹/۲۰۰۰

2



## کتاب پېژندنه:

| | | |
|---|---|---|
| د کتاب نوم | : | د افغانستان د خپلواکۍ او نجات تاریخ |
| خلطرات | : | د جرنیل یارمحمد خان وزیري |
| ترتیبوونکی | : | فدا محمد نومیر |
| کمپوزر | : | احمد ویس وردګ |
| خپروونکي | : | د افغانستان د کلتوري خدمتونو اداره<br>پېښور، پښتونخوا، ټیلیفون: ۸٤۱۷٤۹ |
| د خپرېدو کال | : | ۱۳۷۹/۲۰۰۰ |
| چاپځی | : | ملت پرېس، لاهور |

# لړلیک

سرلیك ................ مخ


د سر خبرې (حبیب الله رفیع) ........................ یو
سریزه (فدا محمد نومیر) ........................ یوولس
ضروري خبرې ........................ اتلس
د مشرانو خاطرات ........................ ١
د عبدالرحمن خان سلطنت ........................ ٤
د امیر عبدالرحمن او فرنګیانو په تړون کښې زمونږ برخلیك ........... ٩
د وانه غونډه او جرګه ........................ ١٣
د لوی مجاهد ملا پونده اخند سره د کابل په سفر کښې ........................ ١٥
د امیر عبدالرحمن خان سره د ملا صاحب ملاقات ........................ ١٨
بې د امیر عبدالرحمن خان له مرستې نه زمونږ جهاد ........................ ٢٠
امیر حبیب الله خان ........................ ٢٢
د لوی مجاهد او غازي ملا پونده اخند مړینه ........................ ٢٤
لړیوال عظیم جنګ او زمونږ د خپلواکۍ مناسب وخت ........................ ٢٦
تر جنګ عظیم وروسته زمونږ په سیمو کښې د فرنګیانو ........................ ٢٩
د فرنګي په پوځ کښې پښتانه ملېشاء ........................ ٣١
د امیر حبیب الله په شهادت د امیر په خپلخانه کښې بې ........................ ٣٣
د اعلیحضرت امان الله خان د پاچا کېدو سره زمونږ امیدونه ........ ٣٦
په کابل کښې د اعلیحضرت امان الله خان په ژبه ........................ ٣٨
د اعلیحضرت امان الله خان استاځي او فرمانونه ........................ ٤٠
د وزیرستان او ژوب په لور زما ماموریت ........................ ٤٢
د جهاد او خپلواکۍ په اړه په وانه کښې زمونږ مشرانو غونډه..... ٤٣

سرلیک | مخ

د اشکي په غونډه کښې زمونږ د مشرانو پرېکړه ............... ٤٦
د عمومي جهاد او خپلواکۍ ترلاسه کولو له پاره تیاری............ ٥٢
په جهاد او د خپلواکۍ په جګړه کښې د ملایانو ستره ونډه......... ٥٤
زمونږ او د اعلیحضرت امان الله خان له اړیکو نه د... ............ ٥٦
زمونږ سیمو ته د فرنګیانو د بې شمېره پوځونو سوقیات............ ٥٧
ګردېز ته زمونږ د خلکو جرګه ............................................ ٦٠
د سپاه سالار د ورور شاه ولیخان له ګردېز نه اورګون ته... ... ٦٢
د فرنګیانو په وړاندې د جګړې محاذونه.............................. ٦٤
د فرنګیانو په وړاندې زمونږ مشرانو د جګړې نقشه.................. ٦٦
د افغانستان د مشرقي محاذ د ماتې خبر ............................ ٦٧
ملا همزالله د جهاد قومانده صادره کړه............................. ٧١
د ملا همزالله اخند د قوماندې سره برید ............................ ٧٢
د خپلواکۍ په جګړه کښې زمونږ په لاس د فرنګیانو ځانې... ....... ٨٦
د فرنګي او ګورکه پوځونو څخه د فتح شوو چونیو نومونه........... ٨٨
د خپلواکۍ په جګړه کښې زمونږ د مجاهدینو خسارات................ ٩٠
د خپلواکۍ په جګړه کښې زمونږ د سیمو د مجاهدینو نومونه........ ٩٣
د خپلواکۍ د جګړې نه وروسته زمونږ برخلیک........................ ٩٧
اعلیحضرت غازي امان الله خان ولې متارکه ومنله؟ ................. ٩٩
د خپلواکۍ د تړون نه وروسته بیا هم زمونږ جهاد.................... ١٠٣
د فرنګیانو جنګي سوقیات............................................. ١٠٦
د حاجي صاحب عبدالرزاق خان اندړ وزیرستان ته راتلل............ ١١٠
د حاجي صاحب تر قیادت لاندې زمونږ تشکیلات...................... ١١٢
د فرنګیانو په وړاندې جهادي مشران ................................. ١١٤

6

سرلیك | مخ


د وزیرستان د مجاهدینو هجرت افغانستان ته.............. ١١٤
مالره د ملا عبدالله او ملا عبدالرشید بلنه.............. ١١٨
د مغرضو درباریانو په مشورو د امان الله خان تېروتنه.............. ١٢١
فرنگیان هره گنته د انتقام په تلاش كښې.............. ١٢٣
اعلیحضرت امان الله خان د كندهار په لور.............. ١٢٥
هزاره جات ته د پښتون ملنل په سفر كښې زما مرسته.............. ١٢٨
په شاه جوی او قلات كښې زما محاربه.............. ١٢٩
زموږ دبیعت اخیستلو له پاره د حبیب الله د پلویانو.............. ١٣٢
د حبیب الله پلوی د قلاخېلو نه د قلات په لور.............. ١٣٥
د قلات د بري خبر اعلیحضرت امان الله خان ته.............. ١٣٨
د اعلیحضرت امان الله خان غازي استازي.............. ١٤٠
د وزیر صاحب عبدالاحد خان وردله سیاسي موسكا.............. ١٤٤
د وزیرستان په لور زما حركت.............. ١٤٥
د شاه جوی څخه تر غروبه كلی.............. ١٤٨
د خپل هدف په خاوره كښې مي قدم كښېښود.............. ١٦٥
د خوجلخېلو په جامع جومات كښې د مشرانو غونډه.............. ١٧٦
د خوجلخېلو د جامع جومات د جرگې برخه وال.............. ١٨٦
د جامع جومات له غونډې وروسته زما مخفي كېدل.............. ١٨٧
د افغانستان په لور د وزیري او مسودي جنگیالیو حركت.............. ١٨٩
د اورگون پر كلا د جوزا د میاشتي لښكر كشي.............. ٢٠٧
په ماما زیارت كښې د كابل د فتح كولو غونډه.............. ٢٢٧
د وزیرو او د مسودو د قومونو مېلمه پالان.............. ٢٣٣
زما او زما د لښكرو حركت د كابل په لور.............. ٢٣٥

6

سرلیك مخ


په علیخېلو کښې زموږ مشرانو او سپهسالار غونډه ........................ ۲۵۳
د ګل غونډۍ څخه د علیخېلو په لور حرکت ........................ ۲٦٦
د علیخېلو څخه د دوبندي په لور خوځېدنه ........................ ۲٦۸
د شاه ولیخان سره لومړۍ غونډه ........................ ۲۷۲
د تنګي واغچان فتح ........................ ۲۷٦
د تنګي د فتحې څخه وروسته د زرغون ښار په لور حرکت ........ ۲۸۱
په تنګي او محمد آغه کښې د حبیب الله د ملګرو ماتې ........ ۲۹۳
د کابل فتح او د وطن د نجات آخري ګنتې ........................ ۳۰۱
د پردل سپهسالار لښکر او د سردارانو وارخطایي ........ ۳۱٤
د آغا ګل مجددي په مشرۍ د حبیب الله د سولې هیأت ...... ۲۲۳
د سلطنت پر سر د مشرانو دوګانګي ........................ ۳۲۹
محمد نادر خان ته د هغه د عهد شکنۍ یادونه ........................ ۳۳۳
له فتحې څخه وروسته د امن ساتلو دنده ........................ ۳۳۷
د وطن د نجات څخه وروسته د روغې جوړې جرګه ........ ۳۳۹
د سولې په جرګه کښې د مقابل لوري مشران ........................ ۳٤۲
زما د لښکر د مشرانو مال او مقام ته شا کول ........................ ۲٤۳
د مغولګۍ حادثه ........................ ۳٤٦
د سفر برۍ اعلان ........................ ۳۵۰
مل ........................ ۳۵۱

بسم الله الرحمن الرحيم

# د سر خبرې

زړه خاطره ده، د زړو وختونو، زما د ځوانۍ د وختونو او د ګران هېواد د آرامۍ د وختونو، د ۱۳۴۷ کال خبره ده، زما د ځوانۍ ځوښ ؤ خو خپله د ځوانۍ مستي مې د نفس د هوس اس ته نه وه سپارلې بلکه يوې پاکې او يوې سپېڅلې مينې ته مې وقف کړې وه، د وطن مينې ته، د وطن د ترقۍ موخې ته او په دې لاره کښې مې ځان هرې قربانۍ ته چمتو کړی ؤ؛ دا پر افغانستان باندې د بېګانه ايډيالوژيو د هجوم او يرغل دوره وه چې بيا

8

وروسته همدا د پردیو ایډیالوژیو یرغل د پردیو وسله والو د یرغل پیلامه هم شو، موږ غوښتل چې افغانستان د پردیو ایډیالوژیو له یرغل څخه وژغورل شي څو د پردیو له یرغل څخه وژغورل شو، ما د ځان له پاره همداسې یوه سیاسي لاره خوښه کړې وه او په ملي لاره کښې هرې پېښې ته تیار وم او ویل به مې:

***مه کړه گومان چې په کرار ناست یم***

***ناست یم د پېښې انتظار ناست یم***

***چې وخت یې راشي د وطن په لار کښې***

***د سرښندلو ته تیار ناست یم***

زه یوه ورځ په لاره روان وم، یو بوډا په لکړه روان سپین ږیری مې ولید چې ورو- ورو یې لاره وهله او یو ځوان یې تر څنګ- څنګ روان و، یو په یو نا څاپه د یوه برېښناییز ټکان او د مقناطیسي کشش غوندې ورته متوجه شوم ورجلب شوم، ورته ودرېدم، د پوه شاړ واړ کلیوال سپین ږیري موزونه و نه مې نظر ته د ویاړ او افتخار دیوه دنګ ځلي غوندې ښکاره شوه، زړه مې پرې باغ- باغ شو، خبرو ته مې یې غوږ ونیو، دوی ناستې او استراحت ته اړه درلوده ما دفتر ته د تلو ست ورته وکړ، راسره ولاړل او هلته پوښتنې او گروېږنې وښوده چې دې ویاړمن سپین ږیري خپله د ځوانۍ ټوله مایه او هستي، ځوښ او

مستي د يوې پاکې او سپېڅلې مينې په لاره کښې قرباني ته اېښې وو، د وطن د مينې په لاره کښې، د وطن د آزادۍ په لاره کښې د وطن د آرامۍ په لاره کښې او د وطن د آبادۍ په لاره کښې.

زما پوښتنو وښوده چې زه له يوه عادي او کليوال سپين ږيري سره مخامخ نه يم بلکه د هېواد د يوه لوی اتل او قهرمان د ملاقات وياړ مې په برخه شوی دی.

هو! دا دروند سپين ږيری جرنيل غازي يار محمد خان وزيری ؤ چې د هېواد د خپلواکۍ په جهاد او غزا کښې يې هم برخه درلوده او د هېواد د نجات په مبارزه او جدوجهد کښې هم. تشه برخه نه بلکه ټاکونکې او قاطعه برخه، (او تاسو چې دا کتاب ولولئ باور به مو راشي که دا مدبر غازي او مبارز نه وای د خپلواکۍ د جهاد کاميابي او بری هم په شک کښې ؤ او د نجات د مبارزې هم) د دوی ددې لويې مبارزې او مجاهدې اهميت ؤ چې ما هيله او غوښتنه ترې وکړه چې يوه مرکه راسره وکړي او زه په دې برخه کښې دده نوي معلومات خپلو هېوادوالو ته ورسوم، راسره وې منله، په سبا يې بيا په زهير خان له خپل زوی سره دفتر ته راغی اوږده مرکه مې ورسره وکړه، نوي حقايق يې راته وويل د خپلواکۍ په جګړه کښې د جنوبي

محاذ په اړه او د هېواد د نجات د جګړې په اړه. ما له ده سره دا مرکه د ١٣٤٧ کال د وري په ١٩ نېټه په "افغان ملت" کښې خپره کړه او لومړی ځل خلکو ته د خپلواکۍ په جګړه کښې د ټل د فتحې او د نجات په مبارزه کښې د کابل د فتحې په باب نوي حقایق او دقایق ورسپېدل او هم دا ویاړ زما په برخه شو چې د هېواد یو پیاوړی مجاهد، بریالی غازي او نامتو جنرال او د خپل خواږه وطن یو بې لوثه خدمتګار او فداکار لومړی ځل خپلو هېوادوالو ته وروپېژنم.

ما چې له دې لوی ملي شخصیت سره مرکه کوله هغه وخت دده سن د پنځه نوي (٩٥) کلو په شا او خوا کښې ؤ، سترګې یې کمزورې او غوږونه یې درانه وو خو حافظه یې ډېره قوي، همت یې ډېر ځوان او له خبرې نه یې د غیرت او شهامت نخښې له ورایه ښکارېدې، کله یې چې د خپلواکۍ د مجاهدې په لاره کښې د ملي مجاهدینو کیسه راته کوله نو په داسې لهجه او خوښ یې خبرې کولې چې د افغاني غیرت او شهامت کارنامې یې د سترګو مخې ته په ژوندي ډول تمثیلولې او د وقایعو بیان یې په داسې ډول کاوه لکه د نن ورځې خبره چې وي او کله به چې د غازیانو د برې صحنې راغلې، غږ به یې جلې شو او

همهغه احساسات به پرې راغلل چې د جګړې په مورچو کښې یې درلودل.
ده هغه وخت یوازې د خپلواکۍ د جګړې په برخه کښې یو څه معلومات راکړل چې ما وخت په وخت او بیا- بیا نشر کړل او هغه وخت ډېر غنیمت او ډېر زیات او نوي معلومات وو. زه چې په داسې معلوماتو پسې په کتابونو کښې ګرځېدم او نه مې مونډل خدای په داسې چا پېښ کړم چې په خپله ژوندی کتاب او ژوندی تاریخ ؤ، ما ته چې دده د معلوماتو ارزښت معلوم شو نو له ده او له زوی نه مې یې عاجزانه غوښتنه وکړه چې دا یادښتونه او خاطرې یا په خپله ولیکي او یا یې زامن ترې ولیکي. ما له دوی نه د مرکې له پاره یو عکس هم وغوښت چې سبا یې د خپل زوی په لاس راولېږه او له مرکې سره خپور شو.
له جرنیل صاحب سره ما بیا ونه لیدل ځکه دی سپین ږیری ؤ کابل ته راتلې ورته سخت ؤ او ما دومره همت نه درلود چې کندهار ته پسې ورشم، جرنیل صاحب د ۱۳۵۱ کال په وړي کښې وفات شو او ما یې د وفات د خبر له اورېدو سره په "لمر" مجله کښې د دوی په یاد یوه لیکنه خپره کړه او دا ارتباط همدلته ختم شو.
د ارواښاد جرنیل یار محمد خان د مخلصانه خدمتونو او د هېواد په لاره کښې د سرښندنو له

اوربدو او مطالعې سره ماته زموږ په تاريخ کښې يو بل بريالى سالار او جنرال رايادېږي چې هغه هم د افغانستان په تاريخ کښې همداسې بې شايبې او مخلصانه خدمت کړى دى، هغه سپه سالار سيدال خان ناصري وو چې د هوتکي غورځنګ په دېرش کلنه دوره کښې يې توره په تيکى کښې کښېښوده او بې له دې چې د هوتکو د واکمنې کورنى په کورنيو مخالفتونو کښې ښکېل شي د وطن دفاع او حيثيت ساتلو له پاره تل تيار او چمتو و، د ميرويس نيکه مبارزه يې کاميابه کړه، له شاه محمود سره اصفهان ته ولاړ، د شاه اشرف په امر يې له روسانو سره جګړه وکړه او د ايران د خاورو پرېښودلو ته يې اړ کړل او بيا يې له شاه حسين سره د کندهار په محاصره کښې د ښار دفاع وکړه، د کندهار تر سقوط وروسته يې د کلات جنګي کلا ټينګه کړه، خرنګه چې دا د مقاومت وروستى سنګر و نو ځکه د نادر د قواؤ لاسو ته ولوېد او کله چې نادر ته ورانديې کړاى شو هغه په دې وينا سره چې زه دده له سترګو څخه وېرېږم سترګې يې پرې وباسئ، د سترګو له نعمت څخه محروم کړ او پاتې ژوند يې د شمالي په شکر دره کښې تېر کړ.
جرنيل صاحب يار محمد خان هم همداسې وطن ته مخلص مجاهد، غازي او مبارز و چې هر وخت به د هېواد خدمت ته تيار و.

ډېر کلونه وتلي وو چې پښتو ټولنې ته ماته يو ځوان راغی، خپل شعرونه ورسره وو او ماته يې وويل: زه فدا محمد نومير نومېږم او د جرنيل يار محمد خان وزيري زوی يم! زما د غازي صاحب مينه پرې ماته شوه، شعرونه مې يې ولوستل، مشورې مې ورکړې او بيا به مو کله نا کله ليدل.

د ۱۳۵۷ کال د غويي غميزې د هېواد هر څه ګډوډ او افغانان خواره واره کړل چې د مليونونو عامو افغانانو له مهاجرت سره زموږ فرهنګيان هم خواره واره، د ملکونو آواره او سرګردان شول او د نړۍ ګوټ- ګوټ ته ورسېدل چې ځينو يې د دنيا په ګوټ- ګوټ کښې قلمي فعاليتونه هم پيل کړل او خپرونې يې وايستلې، يوه ورځ له دې ډول خپرونو نه د "مجاهد پيغام" په نامه يوه خپرونه زما لاس ته راغله چې چلوونکی يې فدا محمد نومير ؤ خو رابطه مې ورسره ونه شوه، او بيا وروسته دده له مشر ورور سيد جان کارواني سره چې په لندن کښې اوسېږي زما اړيکې ټينګې شول او د جرنيل صاحب هغه عکس مې ورواستاوه چې ماته يې د مرګې له پاره راکړی ؤ ځکه د دوی د کور په تلاشی کښې له نورو اسنادو سره د جنرال صاحب عکسونه هم تللي وو او همدا يو قطعه عکس يې پاتې ؤ.

زه تېر کال کاناډا ته ولاړم، يوه ورځ کور ته تليفون راغی ويې ويل زه فدا محمد نومير يم! خوشاله شوم، په ټليفون کښې مو د مينې خواله سره وکړل او د خبرو په ترڅ کښې يې زېری راباندې وکړ چې د جرنيل صاحب د خاطراتو کتاب يې ترتيب او تنظيم کړی او د چاپ له پاره يې آماده کړی دی، دا ماته د زوی زېری و ځکه د جرنيل صاحب خاطرات د افغانستان د معاصر تاريخ له پاره ډېر ارزښتمن وو، ماورته وويل: ډېر ښه کار شوی، سنبال يې کړه، زه څومياشتې وروسته له خيره پېښور ته ځم پر تا به درشم راسره وابه يې خلم او په پېښور کښې به يې له خيره چاپ کړم، همداسې مې وکړل په تېره جنوري کښې امريکې ته ولاړم، کتاب مې ترې واخيست، رامې ووړ او دا دی اوس ستاسو په لاسونو کښې دی.

دا کتاب دومره ارزښتمن کتاب دی څول چې د خپلواکۍ او نجات د جګړو تاريخ ليکي نو که له دې کتاب نه استفاده ونه کړي کار يې يقيناً چې نيمګړی او په عربي اصطلاح (اقطع، اجزم او ابتر) دی.

د خپلواکۍ او نجات د جګړو پر تاريخ ډېر لږ کار شوی ځکه خانداني حکومت اجازه نه ورکوله چې د نژدې پېښو ملي تاريخ وليکل شي، شاه ولي خان چې کوم يادداښتونه ليکلي د قدرت له مسند

نه يې ليکلي او هغه وخت يې هېر کړی چې په جنوبي کښې يې شپې او ورځې د جرنيل يارمحمد خان وزيري د څلورنيم زر کسيز لښکر په رحم او کرم وې او د دوی په وينو او مېړانه يې ارګ، تاج او تخت تر لاسه کړل خو دومره بې انصافي يې کړې چې په خپلو يادښتونو کښې يې ددې قهرمان يوه تشه يادونه هم نه ده کړې او د شاه محمود خان کوم يادداشتونه چې ما اته دېرش (۳۸) کاله وړاندې په عرفان مجله کښې لوستي وو هغه هم دده د مېړانې له ياد څخه تش دي.

زه په دې خوښ يم چې زما عاجزانه هيلې چې له جرنيل صاحب او زوی نه مې يې دده د خاطراتو د ليکلو په اړه کړې وه، دوی هڅولي او دا لوی کار يې ترسره کړی دی.

ما چې له نومير صاحب نه پوښتنه وکړه ثابته شوه چې جرنيل صاحب د کابل له هغه سفرنه کور ته تررسېدو وروسته خپل يادداشتونه په دري ژبه ليکلي او په ځينې برخو کښې دوی پوښتنې ترې کړې دي، د جرنيل صاحب حافظه ډېره قوي وه او يادداشتونه يې دومره دقيق ليکلي چې حتی کله-کله د وخت ساعتونه او دقيقې او نېټه ټول ليکي، د ټولو حاضرينو نومونه يې ياد دي او د ټولو خبرې يې د حافظې محفظې ته سپارلي دي. نومير صاحب

وویل چې دده یادداشتونه ډېر دقیق او په ځینې ځایو کښې له مانه سر سري شوي دي.

نومیر صاحب هم کمال کړی چې د جرنیل صاحب دري یادداشتونه یې په ډېره روانه او اسانه پښتو کښې په داسې ډول لیکلي چې د دري زیات اثر پرې نشته او په ښه او خوږه پښتو یې راوړی چې کله- کله د کندهار ګردود څرګندویې هم پکښې شوې ده.

جرنیل صاحب په عربي کښې زده کړه کړې وه، پښتو یې مورنۍ ژبه وه، دري یې هم له محیط نه زده کړې او په اردو او انګرېزي هم پوهېده.

زه په پای کښې یو ځل بیا د ارواښاد جرنیل یار محمد خان وزیري اروا ښاد غوارم، د ښاغلي فدا محمد نومیر زیار ستایم، په دې چې د خاطراتو د لیکلو په باب زما هیله تر سره شوې خوښ یم او له تاسو درنو لوستونکو نه یې په دقت او د عبرت په نظرلو ستلو هیله کوم!

## په درنښت

**حبیب الله رفیع**

پېښور، پښتونخوا

١٣٧٩/٣/٢٤

# سریزه

د روښانه فکر او روڼ ضمیر خښتنانو ته څرګنده او پوره جوته ده چې د افغان مسلمان ولس د جهاد او مجاهدې په وینو لړلې د تاریخ پاڼې، چې د بهرنیو یرغلګرانو د تیري او تجاوز او د کورني جبارانو او د پردیو د نانځکو حکمرانانو په وړاندې زموږ د نامي نیکونو او میړنیو پلرونو د اسلامي جهادونو او ملي پاڅونونو حکایت کوي، په خپله آره(اصلي) بڼه سره نه د افغان (کورني) او نه د غیر افغان (بهرني) تاریخ لیکونکو له خوا لیکل شوي دي او هم نه

زياتو تاريخ څېړونکو او محققينو ورته په ژوره او د زړه له کومې خپله توجه او پاملرنه اړولې ده.

زموږ د تاريخ پاڼي چې زموږ د غازي او مجاهدو نيکونو او پلرونو په سر ځاربدنه او دولت بنندنه سره د لرغوني هېواد، د افغاني خاورې د خپلواکۍ، د افغان د عزت او وقار د هسک ساتلو او افغاني پت خوندي ساتلو له پاره پرانستل شوې دي. او چې افتخار او سرلوړي يې د تېر حال او راتلونکي نسل ده. د افغان ښکلاک او زبېښاک ځپونکي توکم څخه په تورو او تياره کنډوالو کښې د خروارونو خاورو لاندې کله د تاريخ ليکونکو د بې وسئ؛ کله د تاريخ ليکونکو په تېروتنه او کله بيا په قصدي او عمدي توګه او د ځانګړو عقدو تر سپړلو او اشباع کولو پورې پټې ساتل شوې دي او هغه په دې چې:

الف: يا خو يو شمېر با احساسه کورنې (افغاني) تاريخ ليکونکو په خپل خالي لاس کښې پوره مالي وسايل نه درلودل چې د خپلو پلرونو او نيکونو د تاريخ هغه پاڼې چې د وخت او زمان په تېرېدو سره په ورانو او ويجاړو کنډوالو کښې محوه او نابود کېدې رابرسېره کړي.

ب: يا خو ځينو کورنې (افغاني) تاريخ ليکونکو د وخت او زمان د حکمرانانو په سربنوورونه او هدايت سره زموږ د نيکونو او پلرونو په وينو لړلي د تاريخ پاڼې او د پېښو واقعيت او حقيقت داسې تحريف او مسخ کړی دی چې د زړګونو جرنيلانو او کرنيلانو د جهاد او ملي پاڅونونو ټولې اتلولۍ او قهرمانۍ يې په يوه حاکمه کورنۍ او حاکم قشر

پورې ترلې دی او د خپل دې ناروا او ناجایز کار په عوض کښې یې فنا کېدونکي مالي او مقامي مزد تر لاسه کړی دی.

ج: بیا خو ځینو په ګوته کورني (افغاني) تاریخ لیکونکو د تاریخ د څېړنې او پلټنې د سرلیک تر چتر او سیوري لاندې خپلې ځانګړې عقدې او اجانبوته خدمت ترسره کړی دی او په هر لور یې زهر پاشي کړې ده.

د: او یا خو بهرنیو تاریخ لیکونکو د خپل ذاتي متعصب خصلت او عادت پر بنیاد زموږ د نیکونو او پلرونو په وینو لژندې د تاریخ پاڼې د خپلو هېوادونو د سیاسي. نظامي. فرهنګي. اقتصادي او عقیدوي ښکیلاکي اهدافو او اغراضو د ترسره کولو پورې څېړلې او سپړلې دي. د ښکیلاک تجاوز. مرګ. ژوبلې او ورانی ته یې رنګارنګ پلمې او بهانې لټولې دي او د هر څه پړه او ملامتي یې زموږ په مېړنو نیکونو او پلرونو باندې اړولې ده.

معلومه او څرګنده ده چې د تاریخ لیکنې او تاریخ څېړنې د کره کتنې د میتودونو **Methods** او محکونو په نظر کښې نیولو سره د استعماري. درباري او عقدوي تاریخ لیکونکو تاریخونه او څېړنې یوه احساس لرونکي. حساس. ناپېیلې او د شخصي اغراضو څخه مبرأ تاریخ لیکونکي ته د اخځ په څېر د منلو او قناعت وړ نه دي.

افغان منور د استعمار او استثمار دښمن نسل چې په اوو لسیزو کښې په یو څو په ګوته پربړو او څو سوه پانیز تاریخونو باندې تر اندازې څه نا څه حساب کوي. د دربار د فرمایش څخه وتلي او ورته د افغان اولس دنیکونو او پلرونو د اسلامي جهاد او ملي مبارزو بشپړ او کامل

تاریخونه وايي ولي افسوس چې د هغه پرېړو تاریخونو افغان تاریخ لیکونکو. هغه څه په خپله اصلي او واقعي بڼه سره نه دي لیکلي، چې زموږ په لرغوني خاوره (لوی افغانستان) کښې پېښ او رامخکې شوي دي او نه يې هغه نوم وتلي جرنیلان او کرنیلان په ګوته او په نخښه کړي دي چې د بهرنیو د متجاوز پوځونو او د کورني جبارانو د استبداد په وړاندې د اولسي پاڅونونو اصلي او اساسي محرکین وو.

د هغه پربړو او څو سوه پانیزو تاریخونو د مطالعې په رڼا کښې په پوره یقین او بشپړ باور سره څرګندولی شم چې د هغه تاریخونو اروا ښاد او خدای(ج) بخښلو تاریخ پوهانو او تاریخ لیکونکو هم د سلف تاریخ لیکونکو او درباري نامه نګارانو په قدم باندې خپل قدمونه ایښودلي دي او د دوهم لاس لیکونو او د حاکم رژیم د خپرونو او د استعمار ګومارلیو تاریخ لیکونکو د تاریخونو څخه يې هومره زیات راغونډ کړي دي چې نوره نو ورته اړتیا او ضرورت نه و.

دا مې پوره یقین دی چې د هغه څو سوه پانیزو او پربړو تاریخونو ښاغلو پوهانو د خپلو تاریخو د څېړنو د لیکل او پوره کولو په امید او بیا په ځانګړې توګه د افغان او انګلیس د دریمې جګړې او د وطن د نجات د پېښو او واقعاتو په اړه هغه سنګرونه او مورچې په سترګو نه دي لیدلي چې هلته د افغان اولس د تاریخ ددې ارزښتناکې په وینو سرې تاریخي پاڼې په ارتباط سترې سترې پېښې واقع شوې دي. د استعمار او استبداد په وړاندې يې اتلان او شاه زلمیان په خپلو غرونو او رغونو کښې روزلي دي چې د هغه

شاه زلمیانو د قهرمانیو او اتلولیو نکلونه او داستانونه تر همدې ګړی او ګنتې پورې د اولس د ورځني ژوندانه د حجرو او باندو نکلونه او کیسې دي او ولسي شاعران یې د هغوی په ستاینه او یادونه سره بوخت او مشغول کړي دي. بس نو هغه نوموتو او د پرېړو تاریخونو مؤلفینو ته خو دا ور او پر ځای وو چې د خپل دومزه زیات او ستر کار (تاریخ لیکنې) د سرته رسولو له پاره یې د کتابتونونو د پلټنې او اخځ پیدا کولو په څنګ کښې د ژوندي تاریخونو څخه هم یو څه اخیستنه کړې وای هغه چې تر پرون پورې یې اتلان د هېواد په ګوټ ګوټ کښې ژوندي وو او تولې پېښې او واقعیات یې د هېواد د خپلواکۍ او د وطن د نجات په اړوند په خپلو شاهین مانند سترګو لیدلي او په خپله د افغان لښکرو جرنیلان او کرنیلان وو او یا خو یې دومره کړی وای چې د اعلیحضرت محمد ظاهر شاه د سلطنت د نیمه دموکراسۍ د ملي ورځپانواو اوونۍ پانو څخه یې څه اخیستنه کړې وای. په هر صورت بیا همدا هیله او امید شته چې بې اسرې تاریخ لیکونکي به دا هلې ځلې په کار واچوي چې د افغان بهادر ولس د تاریخ هغه اصلي بڼه رابرسېره کړي چې په عمدي او قصدي توګه سره یې مسخ کولو ته لیخې رانغښتل شوې وې.

د افغان اولس د قهرمانو نیکونو او پلرونو د په وینو لژندزرګونو پانو تاریخ نه چې د تاریخ په دې یوه پانه باندې د لوستونکو سترګې لګېږي دا زما د مرحوم اروا ښاد او خدای(ج) بخښلی پلار غازي جرنیل یار محمد خان وزیري په کم دیده سترګو او رېږدېدلي لاس سره لیکل شوي

هغه خاطرات او یادښتونه دي چې د هغه مرحوم د ژوند په اخري کلونو کښې زما دوو ورونو (فیض محمد خان نومیر او خیر محمد خان نومیر) او مادې لره وهڅاوه چې قلم اوچت کړي او د کاغذ پر مخ باندې د افغانستان د خپلواکۍ او د وطن د نجات د خپلو قهرمانو ملګرو او د وزیرو. مسودو. تنیو. مریانیو. کاکړو او دوړو د قومونو او قبیلو د لښکرو کارنامې ولیکي او هم یې موږ لره بیان کړي او کوم معلومات چې د هغه مرحوم په ژوند کښې موږ درو ورونو نه وو تر لاسه کړي او هغه مرحوم هم په خپلو یادښتونو کښې نه وو ذکر کړي هغه برخه زما مشر ورور (سید جان کارواني) او زما تره (نورمحمد خان) چې اولي پوره پنځوس کاله او دوهمې پوره او یا کاله د مرحوم تر سیوري لاندې ژوند کړی وُ. په قومي غونډو او جرګو او سفرونو کښې ورسره مله وو او بیا په ځانګړې توګه زما تره چې د خپلواکۍ په جګړه او د نجات وطن په جنګونو کښې ځوان وُ رالره پوره کړه.

کوم فرمانونه او تحسین نامې چې زما د مرحوم پلار جرنیل یارمحمد خان وزیري په نوم او عنوان د خپلواکۍ د محصل اعلیحضرت غازي امان الله خان. اعلیحضرت شهید محمد نادر خان. صدراعظم سردار محمد هاشم خان. صدراعظم سردار غازي شاه محمود خان او صدراعظم سردار محمد داؤد خان له لوري د استقلال. نجات وطن. د مغولګي پر تانه د بهرني برید او د سفر بري په اړه صادر شوي وو. د خلق - پرچم په الحادي حکومتي دوره کښې زموږ د کور د تلاشي په ترځ کښې د خلقي پرچمي جاهلو

شرمښانو په لاس کښېوتل. او خدای (ج) خبر چې هغه تاریخي ارزښتناک وثایق به هغه د تاریخ څخه ناخبرو د کومې بخارۍ پیلوځي کړي وي او کوم د اعلیحضرت محمد نادر خان په لاس لیک فرمانونه د وطن د نجات په اړه او د وزیرستان د ننګیالیو قومي مشرانو. ملکانو. ملایانو او خانانو په لاس لیک او مهرونو سره ښکلې شوې وثیقه چې ددې تاریخي او ارزښتناکه لیکنې په ښلونه کښې د تاریخ پوهانو او لوستونکو په سترګو کېږي. له نېکه مرغه زما سره د هجرت په دوره کښې. زما د مرحوم پلار د یادښتونو په شمول ملګري وو او همدا ځای دی چې د خپلواکۍ د جګړې او د وطن د نجات په اړه دا قیمتي تاریخي وثایق ضایع او نابود نه شول.

په درنښت

فدا محمد نومیر

# ضروري خبرې

په کال ۱۳۴۷ کښې د خپل ګران او عزيز هېواد افغانستان ښکلي او ښايسته پايتخت (کابل) ته د سترګو او غوږونو د علاج او درمل له پاره ولاړم. د کابل په دې سفر کښې زما مشر زوی سيد جان هم راسره مل او ملګری و، د ډاکټرانو په زيار او کوښښ او د څښتن تعالی په پوره پېرزوينې سره مې د ناروغی علاج وشو. د سترګو د ناروغی ډاکټر صاحب رجب علي خان مې د سترګو په علاج او درمل کښې تر حد وتلی تلاش وکړ. کله مې چې لومړی ځل له ډاکټر صاحب رجب علي خان سره په معاينه خانه کښې وليدل او ډاکټر صاحب زما د بې ديده سترګو او درندو غوږو حالت او خوړلی عمر وليد: نو د افغاني نېك معمول سره يې جوخت زما د تېر ژوند او پېژند ګلوی پوښتنه زما د زوی څخه وکړه. هم هغه و چې زما په

پېژند ګلوی سره هغه د خپل هېواد په غازيانو او مجاهدينو مين ډاکټر صاحب رجب علي خان چې په ختنه هزاره او په مذهب شيعه وُ په ډېر اخلاص او مينه ډاډ راکړ چې زما د سترګو په علاج او درمل کښې به خپل انساني توان او د طبابت پوهه په کار اچوي. دا وخت زه پينځه نوي کلن وم:
کلونه کلونه وتي وو چې بيا مې کابل وليد
څو ځلې نور هم کابل ته راغلی وم:
يو ځل په زلميتوب کښې د لوی مجاهد او غازي پونده آخند سره د امير عبدالرحمن خان د امارت په دوران کښې راغلی وم. دوهم ځل د وزيرستان د ننګياليو قومونو او قبيلو د مشرانو په جرګه کښې د افغانستان د خپلواکۍ تر لاسه کولو نه وروسته د اعليحضرت امان الله خان سره د کتنې او سلا مشورې له پاره راغلی وم. دريم ځل کله چې په سرحد او وزيرستان کښې د فرنګيانو د زيات فشار څخه مې د خپلو غازي او مجاهد ملګرو سره د کندهار ولايت شاه جوی نومې علاقې ته هجرت کاوه کابل ته راغلی وم. څلورم ځل د سقاو د زوی (حبيب الله) څخه د کابل نيولو او وطن ته د نجات ورکولو له پاره د وزيرو، مسودو، د وړو او تېيو د ننګياليو د مشر او جنګي قايد په توګه د توپونو، ماشينګنو او جاغوري ټوپکو سره سنګر په سنګر کابل ته ننوتم. پينځم ځل د اعليحضرت محمد نادرخان د سلطنت په لومړيو مياشتو. کښې د وزيرستان د قومونو او د کوچيانو د جوړې په غونډه کښې د وزيرو د ملي جرنيل تر نامه لاندې د شاه جوی نه کابل ته راغلی وم چې زموږ د هم هغه غونډې خبر د اصلاح په نوم اخبار د ۱۳۰۸ کال په دلو کښې خپور کړ. په غونډه کښې

حضرت صاحب نورالمشایخ او نادر خان دواړو ګډون درلود او په سلام خانه کښې تر سره شوه.

د صدراعظم محمد هاشم خان او صدراعظم شاه محمود خان د صدارت په دوران کښې څو څو خلې کابل ته راغلی وم او دواړو صدراعظمانو به زما او زما د ملګرو استوګن ځای د صدارت میلمستون ټاکه او د سرحد په چارو کښې به یې رانه سلا او مشوره غوښته. ولې په ۱۳۴۷ کال کښې چې د اعلیحضرت محمد ظاهرشاه د سلطنت دوره وه: د خپلې ناروغۍ د علاج له پاره د درمل او طبیب لټولو په منظور په ټنهایي زوی تر لاس نیولی. لکه په لاس د خپلو تېرو خاطراتو په رایادولو سره کابل ته ننوتم. چې مې نه پکښې هغه د خپلواکۍ او نجات وطن د مورچلونو یاران او ملګري لیدل او نه پکښې هغه زما ! بهادرو لښکرو د ټوپکو د ګولیو او مردکو نښانې په سترګو کېدې چې ما او زما غیرتي ځوانانو نهه دېرش کاله مخکې په ډېره بې پروایۍ ولې د وطن او ولس د نجات په هیله وردانګلي وو. دا ځلې ښکلی او ګلالی کابل هغه د کلونو کلونو مخکښې کابل نه و او نه پکښې د اعلیحضرت محمد نادر خان د هغه وعدو او پیمانونو اثرات ښکاریده چې د ځائیو په علي خېلو کښې سپاه سالار محمد نادرخان ما او زما ننګیالیو ملګرو ته د اسلامي شریعت په اړه راکړې وو. اعلیحضرت محمد نادرخان. محمد هاشم خان او جرنیل شاه محمود خان ټول په حق رسېدلي وو. محمد ظاهر شاه په هغه تخت باندې ډډه وهلې وه چې موږ د وزیرستان ولس د خپلو مالونو او ځانونو په قربانۍ د حبیب الله څخه ګټلی و.

په دې سفر کښې مې د خپلواکۍ او د وطن د نجات د لیارې د غازي او مجاهد ملګري فرقه مشر صاحب دلباز خان وزیري سره د لیدو نصیب په برخه شو. زما دا غازي او قهرمان مجاهد ملګری تر ما زیات بوډا ښکاریده ولې په همت ډېر غښتلی: ما او فرقه مشر صاحب دلباز وزیري په خپل ملاقات کښې د فرنګیانو په وړاندې د جهاد او د حبیب الله په وړاندې د نجات وطن د سنګرونو د ژوندانه خواږه او ترخه خاطرات راوسپړل: د خپلواکۍ او نجات وطن په جنګونو کښې مو د وزیرستان د ننګیالیو د قهرمانیو یادونه او د جګړو کړاوونه سره یاد کړه؛ د خبرو په ترخ کښې فرقه مشر صاحب راته یادونه وکړه چې د جرنیل شاه ولي خان. اعلیحضرت محمد ظاهرشاه او سردار صاحب محمد داؤد خان سره وګورم زما دا هیله نه وه چې د افرادو سره وګورم؛ ځکه چې زما دا سفر د ناروغۍ د علاج له پاره وُ. زه د ډاکټر لتیولو له پاره کابل ته راغلی وم. نه د لوړو مقاماتو د لیدنې او کتنې له پاره ولې د غرونو او رغونو د یوه ازمویلي او قهرمان ملګري هیله او امید مې هم د ځمکې سره نشو وهلی زما د زوی (سید جان کاروانی) نظر هم د فرقه مشر صاحب دلباز خان وزیري په نظر وُ.

د جرنیل شاه ولي خان سره مې لیدنه او کتنه وشوه. ولې ددې لیدنې او کتنې په خبرو او اترو کښې هغه خوند نه وُ چې مونږ د ۱۳۰۸ کال د میزان په میاشت کښې د لوګر په دو بندي کښې کړې وې. د شاه ولي خان سره زما په دې لیدنه او کتنه کښې هغه نن زمونږ د خانونو او مالونو په برکت د افغانستان د ټولو پوځونو او لښکرو سردار: د کابل فاتح او

مارشال و او زه دده په ورة کښې د ملت د افرادو نه یو بوږ او ژوند خوړلی لکره په لاس عادي فرد وم وتې پرون زه په دوبندي. خونسی. تنګي. زرغون بنار. محمد آغه. چهار آسیاب. هیسدکیو او په حبیب الله باندي د ارګ په محاصره کښې د وزیرستان د ننګیالیو پوخونو قاید او سرلښکر ؤم او دی د بهر نه راغلی په جنوبي کښې د جرنیل محمد عمر خان. عبدالغیاث خان او سپه سالار پردل خان د لاسه ناارامه او سرګردانه. ناامیده او نهیلی. زموږ مجاهدینو د مرستې اړ او محتاج جرنیل و. پرون زه او زما ننګیالي ملګري د هېواد د خپلواکۍ او د وطن د نجات قهرمانان وو ولې نن ده (شاه ولي خان) زموږ هغه ټولې قهرماني هېرې کړې وې. پرون ما دده د پت او عزت د خوندي ساتلو او د وطن د نجات له پاره خپل جنګیالي پر کابل راخپژولي وو. نن جرنیل صاحب هغه ټوله د یاد نه ایستلي وو. پرون ما لره دده مشر ورور اعلیحضرت محمد نادر شاه په خپل لاس لیک د کابل د نیولو د اصلي رکن او مصدر عنوان راکړی و. ولې نن هغه فرمان د سردار صاحب د سترګونه پټ و. په اخبارونو او راډیو کښې بې د خپل قدرت او زور په کارولو سره خانته د کابل د فاتح لقب ورکړی و.

د شاه ولي خان دری ورونه (محمد نادرخان. محمد هاشم خان او شاه محمود خان) زما او زما د وزیرستان د ننګیالیو د احساناتو منونکي وو ولې دده د شاه محمود خان هغه خبره په فکر او خاطر کښې نه وه چې ماته یې ویلي وو: " کابل ته راشه! ستا د مړینې وروسته به هم موږ ستا هډوکي په بنیبنه کښې خوندي کړو او زموږ د کورنۍ غړی به یې سهار او بېګا زیارت کوي" د څښتن تعالی د پېژندنې له پاره دومره بس دي

چې امیران ملنګان کړي او ملنګان امیران. په دوبندي کښې جرنیل صاحب ملنګ وؤ او زه امیر؛ دی کله د ملك عبدالقادرخان علیخېل او کله د حیدرخان جرنیل په وره وؤ؛ ولې زه د وزیرو، مسودو، د وړو او تیږو د څلورنیمو زرو جنګیالیو قاید او جنګي امیر وم. دا هغه جنګیالي وو چې ما دامان الله خان د تاج او تخت د ګټلو له پاره راټول کړي وو.

زما او د سردار شاه ولي خان په دې لیدنه او کتنه کښې څښتن تعالی دا ستر حکمت او اثر ایښودلی وؤ چې زه به یوه ورځ په دې ربړد بدلو لاسونو د افغانستان د تاریخ یوه پاڼه لیکم او یا به د هغه ټول واقعیت بیان ټکي په ټکي رابانديې چاپېر زامنو ته کوم. دا د افغاني تاریخ هغه پاڼه ده چې د هغې په پرانستلو کښې ما قدم اخیستلی او په هر ډګر کښې زما سترګې وربانديې شاهدې دي. د وزیرو او مسودو ونډه پکې ستره ده او دا هغه خاطرات او یادښتونه دي چې تر دې ګنټې پورې چا نه دي لیکلي او نه یې د کوم کس سره اصلي واقعیت او حقیقت شته. د اعلیحضرت محمد ظاهر شاه سره د لیدلو او کتلو وخت په لاس رانغی، ولې د صدراعظم سردار محمد داؤد خان سره مې د هغه په کاله کښې ملاقات وشو. په کندهار کښې مې بې شمېره ورسره کتلي وو او زیات وختونه مو غرمنۍ ډوډۍ په یوه دسترخوان سره خوړله.

هغه وخت محمد هاشم صدراعظم وؤ او هر کله به یې زما په خوښ ساتلو کښې خپل سپېڅلی وراره ته سپارښتنه کوله. دا ځل نوموړی سردار صاحب همهغه مېړه وؤ چې ما دده د قدرت او واك په دوره کښې په کندهار کښې ورسره لیدلي وو. اوس یې مینه نوره خوږه او دوه برابره وه؛ د خبرو څخه داسې راته

بربښېده لکه چې د خپلې کورنۍ د غړو نه زیاتې ګیلې او شکایت لري. د سردار محمد داود خان په اړه دومره بس او کافي ګڼم چې د مېلمه پالنې او زما د احترام پر ځای کولو له پاره یې د خپل لاس ورغوی زما د شیرچایو د پیالې قاب ګرځولی و: کله چې یې له کوره راوتم له ښې اوږې نه یې نیولی وم او راته یې ویل: د خپل تره سردار محمد هاشم خان وصیت پر ځای کوم او د هغه مرحوم یاران او ملګري پالم.

زه په دې سفر کښې د کابل رود د پامیر سینما د موټرونو په تم ځای کښې د چهلستون د موټر په انتظار د خپل زوی سره ولاړ وم. په چهلستون کښې زما د زوم د روکي صاحب زاده د نمسي د عبدالسلام صاحب زاده د زوی د عبدالواجد صاحب زاده کور و. د ماښام د لمانځه وخت نژدې کېدونکی و: سید جان ته مې وویل: بچیه! د ماښام د لمانځه وخت رانژدې کېږي اودس مې هم نشته؛ اوس به اودس او لمونځ چېرته وکړو. زما په همدې وینا سره په څنګ کښې یو نوراني ځوان په خوږه پښتو راته وویل: "تره! راځئ زما په دفتر کښې به هم اودس وکړئ او هم به لمونځ ادا کړئ! دا ځوان موږ نه پېژانده چې څوك او څه کاره دی؛ دا لومړی ځل و چې د هغه نوراني څېره مې ولیدله: د میوند جادې په لور: زما په څېر د ورك سپاهي د چوك په طرف ورسره په بیړه بیړه رااروان شوو. څو قدمه وروسته د میوند په جاده کښې دوهم منزل ته پورته شوو: ځوان د یوې کوټې ور وپرانیستئ اودسونه مو وکړل او لمونځ مو ادا کړ. د لمانځه وروسته هغه غیرتي ځوان د پېژندګلوۍ تپوس رانه وکړ. ما خپل ځان ځنګه چې وم ورته وپېژانده. زما د نوم په اورېدو سره هغه ننګیالی ځوان د ځایه پاڅېده او لاسونه یې

راته ښکل کړه. ماهم ترښه وپوښتل چې بچیه ته څوك يې؟ دا د میرويس، احمد شاه او غازي امان الله خان عکسونه په دې دفتر کښې د څه له پاره ځوړند دي؟ هغه نوراني ځوان په خوږه وطني پښتو راته وويل غازي صاحب! زما نوم حبيب الله رفيع دی او دا وړه کوټه د افغان ملت ستر کور دی. دا کور د میرويس نیکه، احمد شاه بابا، غازي امان الله او ستا کور دی او دا هغه کور دی چې تاسو غازيانو په خپلو وينو راته ساتلی دی. هغه ځوان ( حبيب الله رفيع) د خپل تاريخ او د افغاني نوم ورکو غازيانو سره ډېره مينه درلوده نو ځکه يې زمانه څوځو ځلې هيله وکړه چې په مناسب فرصت کښې د خپلواکۍ او د نجات وطن په اړه خپل د سترګو ليدلی حال ورته بيان کړم.

د حبيب الله رفيع سپېڅلو او نيکو ملي احساساتو او د جرنيل شاه ولي خان سړې ليدنې او کتنې يو ځل بيا په دې فکر کښې کړم چې د افغانانو د تاريخ هغه پاڼه په خپلو رېږدېدلو لاسونو باندې وليکم چې ما او زما ننګياليو ملګرو د خپلو وينو په بهېدو او د مالونو په جارېدو سره پرانستلې ده او په خپلو دې خاطراتو کښې هغه څه رابرسېره او څرګند کړم چې تر او سه پورې پټ ساتل شوي دي. دا هغه خاطرات دي چې زما سترګې يې شاهدې دي. د پښو تپاکې مې د هغه بيان کوي او د کندر، وزيرستان، ژوب، توچې، ګوملې، اورګون، خوست، ځاځيو، لوګر او کابل غرونه، ښار او کوڅې زموږ د جهاد او مجاهدې شهادت ورکوي.

يار محمد وزيري جرنيل

# د مشرانو خاطرات

د خپلې خپلخانې د خدای بخښلیو مشرانو څخه مې په خورلس کلنۍ کښې اورېدلي وو، چې دوی د فرنګیانو سره د خپل هېواد (افغانستان) د خپلواکۍ په سر باندې دوه ځلې په ډېره مېړانه او بهادرۍ سره جنګېدلي دي او هغه دوه ځلې د مسلمانانو د دین او خاورې دښمنانو د دوی په لاس ماتې او شکست خوړلی وُ ولې نصراني تېري کوونکي دښمن هم هر ځلې د غزنوي، غوري، هوتکي او ابدالي کور وران، ویجاړ، کنډواله او لوټلی دی. د غازیانو او وطن پالونکو تورزنو مجاهدینو ویني یې په ویالو ویالو سره بهولې دي.

دا مې هم هغه وخت د خپلو مشرانو څخه په غوږونو اورېدلي دي، چې فرنګیانو دخپل بري او زمور د غرني هېواد د لاندې کولو له پاره په غیرتي افغانانو کښې د بې اتفاقۍ،

اختـلاف او وروروژنـې زړي پاشـل، تربګنـې او ګونـدې يـې پـارولې، د درانـي او غلجـي پـه نـوم يـې پښتانـه، د تـاجک او پښتون پـه نـوم يـې افغانـان يـو لـه بـل څخـه بېلـول. د هېواد پـه يـوه ګوټ کـښې بـه يـې يـوه تـه د سـلطنت او امـارت نيولـو لاس ورکاوه او پـه بـل ګوټ کـښې بـه يـې د هغـه دخپلخـانې بـل کـوم نـژدې غـړی ورتـه راپـاخاوه او لمساوه. او ځنـاورو فرنګيـانو بـه پـه دې خبر سره د افغانستان پـه شـاهي کورنـۍ او دربـار کـښې د شـيطانت او منـافقت ليـاره او ګودر مونـده.

اته اتيا کالـه مخکـې مـوږ د وخـت زړګيـو تـه د خپلـو مشـرانو د ورځني ژونـد دا نکلونـه او داسـتانونه وو او هـر کلـه چـې بـه وزګار وو نو به يـې د مسـلمانانو د ديـن او خـاورې د دښمـن پـه وړانـدې د ميړانې، شـجاعت او سرځارېدنې خـبرې راتـه کولـې. پـه مسـجد او جامع کـښې بـه مـوږ زړګيـو تـه ملاصـاحب د جـهاد او شـهادت د دنيـا او اخـرت ګټې اورولـې. زمـوږ مشـرانو د افغانـانو هـېواد او وطن د اصفهان او مشـهد نـه تـر لاهـور، کشـمير او بلـوچسـتانه او لـه لاهـور او کشـمير نـه ترخيـوا او بخـارا پـورې احمدشـاهي لـوی افغانستان پـېژانـده. او دا بـه يـې هرکلـه مـوږ ځوانـانو او زړګيـو تـه ويل: چې دا لـوی او سـتر کـور د احمـد شـاه بابـا د لمسيانو د بې اتفاقـۍ او اختـلاف پـه اثـر ټوټه ټوټه او ړنـګ شـو. پـه هغـه زمانـه کښې موږ د افغانستان ليکلـی تـاريخ نـه پـېژانـده. زمـوږ د مشـرانو د خولې نکلونه او داسـتانونه مـوږ لـره تـاريخ وُ.

هغـه وخـت چـې زه (۸) کلـن وم. زمـوږ خـدای بخښلـي ننګيـالي مشـران د افغانـانو د سـتر کـور د بيـا جـوړېدو او پيوسـتون له پـاره خپـل اسـونه زيـن ولاړ وو او د دښمـن پـه وړانـدې يـې پـه کـابل کـښې د افغانـانو د امـير يـو وړوکـی حرکـت غوښتـه، هغـوی

ددې ستر کور په پولو کښې ټول مسلمان اوسېدونکي خپل دیني ورونه ګڼل. د هغوی په سپېڅلو فکرونو کښې د دېګان (تاجک) او پښتون خبره نه ګرځېدله او هر کله به یې ویل چې پښتون او دېګان د آرین د زوزات او توکم څخه دي. او هم به یې دا ویل چې د افغانستان ټول اوسېدونکي افغانان دي، په غم او ښادۍ کښې دا قومونه سره شریک دي. زمونږ مشرانو به دا هم ویل چې دا افغان قومونه دي چې افغانستان یې د ایرانیانو، مغولانو، هندانو او فرنګیانو د تېري او تجاوز څخه په ځان او مال باندې تر همدې ګنټو او شېبو پورې ژوندی او خپلواک ساتلی دی.

زمونږ مشرانو به هغه وخت مونږ زنکیو او ځوانانو ته د کفارو سره د جهاد او غزا په اړوند ویل: "کله چې فرنګیانو زمونږ په خاوره باندې تېری او تجاوز وکړ. افغاني غازیانو د هېواد هره لوېشت خاوره، غلیم ته سور اورکړه، د.هېواد په ګوټ ګوټ کښې مجاهدینو د جهاد او مجاهدې جنډې ورپولې د هر کور او هرې خېلخانې څخه د الله اکبر او د چهاریار کبار نارې اوچتې شوې، او مېړه هغه وُ چې د فرنګیانو په وړاندې یې په جهاد کښې د غازیانو سره ګډون کړئ وای."

د فرنګیانو سره په هم هغه غزا کښې د کندر د ولس په مشرۍ زما نیکه خان محمد خان مریانی، زما د نیکه دوُ ورونو تاج محمد خان او ملا میرزا محمد او هم زما پلار بازمحمد خان د غزني د ملا دین محمد اندړ د مجاهدینو او غازیانو په څنګ کښې جهاد کاوه. او هغوی به ویل: "په کابل کې پر تخت ناست امیر زمونږ ټولو افغانانو اولي الامر او د رسول الله (ص) خلیفه وُ. او تر څو چې یې د څښتن تعالی په سیخه او

نېغه لاره قـدم وُ او د رسـول الله (ص) پـه سـنت يـې رفتـار او ګفتـار وُ. اطاعت او امـر منل يـې پـر مـوږ واجـب وو. او پـه وړانـدې يـې هر قيـام او سـرغړونه بغـاوت او شـقاوت وُ".

په ياد مـې دي کلـه چـې زمـا نيکـه او د هغـه سـره تللـي سـړي د جهاد نه واپس خپلـو سـېمو تـه راسـتانه شـول. پـه کـابل کـښې د غازيـانو د توورزنـې او د فرنګيـانو د مـاتې نکلونـه بـه يـې پـه مېلمستونو او مسجدو کښې خلکـو تـه کـول او دا بـه يـې ويـل چـې د کـابل هسـک او دنـګ غرونـه د غازيـانو د لښـکرو نـه ډک وو. پـه دې لښکرو کـښې دېګان، ازبـک، هـزاره، ترکمـن او پښتـون برخـه او ګډون درلـود؛ او ټول پـه يـوه مـورچـل کـښې د فرنګيـانو د تـېري او تجـاوز پـه وړانـدې جنـګېدل. او د کـابل ننګيـاليو اوسـېدونکو نارينـه او ښځينـه، ځوانـانو او زړيـو د غازيـانو مـورچـو تـه اوبـه، مړۍ او درمـل رسـول. او جنګيـالي يـې د غازيـانو سـره اوږه په اوږه په يوه مورچـل کـښې پـه جـهاد بوخـت وو.

## د عبدالرحمن خان سلطنت

ښه مې پـه يـاد او پـه خـاطر کـښې دي او لکـه د همـدې ګنـتې خـبره راتـه يـاد دي. کلـه چـې د لـوی افغانسـتان پـه کـابل ښار کـښې ننګيـالي غازيـان د فرنګيـانو پـه وړانـدې بريـالي شـوه. نـو د مجـاهدينو سـپېڅلو مشـرانو د محمـدزي محمـد افضـل خـان زوی عبدالرحمـن خـان د افغانـانو اولي الامـر وټاکـه. دا وخـت زه نهـه (۹) کلـن زلمـی وم او د عبدالرحمـن خـان د سـلطنت د خوشـالۍ په هغه ملي غونـډه کـښې مـې د خپلـو همزولـو سـره هغـه ډول تـه ځونې غورځولـې دي، چـې زمـا مشـرانو د غـزا نـه د واپـس راتلـو

نه او د سیمې (کندر) ولس جوړه کړې وه. د دوو اخترونو برسېره په نورو عمومي خوشالیو کښې هم دا رنګه سترې غونډې جوړېدې.

په کابل کښې د عبدالرحمن خان په تخت کښېناسته هم زموږ مشرانو ته د اختر او خوشحالۍ ستره ورځ وه. په دې غونډه کښې خانانو تر خپل توان پورې پسونه او غویونه ذبح او حلال کړي وو، وچه مړۍ او غوښه پرېمانه وه. د "سانګې" لوبه روانه وه، ډولزن ډول واهه، د اتڼ او ملي نڅا دایره پراخه او توده وه، یو شمېر ځوانانو د بهر سیمو نه د راغلو مېلمنو پالنه او خدمت کاوه. مشران، خانان، ملکان او ملایان په خپل مینځ کښې سره جرګه وو. زنکیان او ماشومان هم په خپلو لوبو باندې بوخت وو.

پوره او بشپړ مې په ذهن او خاطر کښې دي، چې د وزیرستان د مسودو د ننکیالي قوم روحاني شخصیت او لوی مجاهد ملا پونده آخند او د وزیرو د تورزن قوم روحاني شخصیت او مېړني مجاهد ملا همزالله آخند زما د خېلخانې د مشرانو په بلنه زموږ د سیمې (کندر) په دوو غونډو کښې ګډون درلود. او په یوه غونډه کښې ملا پونده آخند زموږ ځوانانو د جهاد او مجاهدې په اړوند جذابه او زړه راکښونکې وینا وکړه. او په خپله خطابه کښې یې د رسول الله صلی الله علیه وسلم د یارانو د جهاد او مجاهدت کیسې بیان کړې. ملا همزالله آخند په وزیري فصیح او بلیغه‌لهجه سره د احزاب په غزا کښې د پیغمبر د اصحابو استقامت او صبر په ګوته کړ، او زما د پلار تره ملا میرزا محمد خان چې افغاني تاریخ څه ورته یاد ؤ او د ژوند یوه برخه یې په علم او تقوا کښې تېره کړې وه او په

روحانیت کښې یې هم کوم کس شک نه درلود، د سلطان محمود غزنوي او احمد شاه ابدالي د غزاګانو یادونه وکړه.

زما د کورنۍ د مشرانو او د ملاپونده آخند او ملا همزالله آخند اړیکې ډېرې نژدې او دوستانه وې. زموږ کورنۍ هم یوه روحاني کورنۍ وه. زما د کورنۍ ټولو مشرانو د وزیرو او مسودو ننګیالیو قومونو په درنده سترګه سره کتل او هر کله به یې زما د کورنۍ د غړو څخه د خیر او برکت دعاګانې غوښتې. ځکه چې موږ د حضرت حسین نیکه رحمة الله علیه اولاده وو او د کندر د سیند ټوله وقف شوې ځمکه زما په کورنۍ پورې اړه درلوده. او تر همدې شېبو پورې د هغه ځمکې وقف زما د کورنۍ په نوم دی. حضرت حسین نیکه په اوومه هجري پېړۍ کښې د ټولو مرشد او روحاني شخصیت و، کوچیان او لارویان خپل ارزښت لرونکي مالونه د حسین نیکه په مزار کښې بیله څارنې څخه امانت پرېږدي او هېڅ څوک دا زړه نشي کولی چې هغه مال خیانت کړي. هلته په ټوله سیمه کښې یو خاین ته ښېرا په دې ټکو سره کېږي: "خدای (ج) دې د حضرت حسین نیکه (رح) د زیارت ګیدړه کړه".

ملا صاحب پونده آخند رحمة الله علیه په مړوندو غښتلی په رنګ سور بخن اوپه قد میانه سړی و. ټنډه به یې هر کله ورینه او خوله به یې هر کله د مسکۍ خندا څخه ډکه وه. په ځوانانو تر اندازې زیات مهربان او مشفق و. ملاهمزالله آخند (رح) په ځوانانو باندې په خپله مهربانۍ شفقت کښې تر ملا پونده آخند په کم نه و.

په رښتیا چې هم هغه د خوشالۍ ورځې او شپې وې. مړونه مېړني او غیرتمن وو، دوه رنګي او دوه مخي په چا کښې نه

موندل کېده دا هغه وخت وُ چې د افغانانو په خپل کور کښې د فرنګي سره نامار کلچه وهلې وه. د پښتانه افغان په خاوره کښې فرنګي او ګورکه پوځونه مېشته شوي وو، د افغانانو په هر کور او کهول باندې د نوي ژوند نارې ګډې شوې وې؛ د مېلمنو تله او راتله وو، د مېلمستونونو وروبه د هر مېلمه پر مخ بېرته وو؛ په ولس کښې ورورولي او خواخوږي وه؛ ننګياليو د سبانی غزا په هيله وزېږي ګړندي اسونه نهالول او سيلاوې تر ملا دنګه غاړه په غزه او راغه کښې ګرځېدل. د خاورې په خپلواکی باندې سيالی او سيالداری روانې وې، مبارکي هغه کور او خېلخانې ته وه چې ځوانان يې د فرنګيانو سره په مخامخ غزاکې د ټېر په ټپ په شهادت رسېدلي وای.

زه چې زلمی شوی وم؛ پلار مې راته مشکی اس بخښلی وُ او هر کله مې د خپل مهربان نيکه خان محمد خان مريانې پېشقوزه تر ملا وه. زما د زلميتوب په اړه د پلار هغه وينا مې تر اوسه هم په غوږونو کښې انګازې کوي، چې راته ويل به يې: "زويکه! خښتن تعالی زلمي کړې! ته په خپله خېلخانه کښې لومړنی زلمی يې چې زما خخه به وروسته د خېلخانې او قوم ټولې چارې په تا پورې اړه پيدا کړي، زموږ کورنی روحاني کورنی ده، د حضرت حسين نيکه(رح) له رويه ټول قومونه زموږ خېلخانې ته په درنده سترګه ګوري: ما او نيکه ګانو دې ښه قلعه اباده کړې ده. پام کړه چې زموږ په نشتوالي کښې د وزيرو او مسودو د قوم خخه دوستانه اړيکې پرې نه کړې، د هغوی سره په اړيکه کښې ستا د بخت او اقبال ستوری ځلېږي. سلېمانخېل دې خپل ماما خېل دي؛ مريانې دې قوم او ټبر دی، هغوی کوچيان دي چېرې چې يې هغوی به دې

مل او ملګري وي. نو زما بچيه دا مې درته وصيت دی چې زما په ژوند دې بايد اس زين ولاړ وي، نن د ميړانې او سرڅارېدنې وخت او زمان دی."

زمونږ خلک چې د فرنګي او ګور که پوځونو سره نژدې ګاونډ وو او فرنګي د پښتانه په خپله خاوره کښې عسکري تاڼې او چوڼۍ ابادې کړې وې. په هم هغه ګنتو او شپبو کښې درست پښتون ولس د فرنګيانو او ګورکه په وړاندې د عبدالرحمن خان له لوري د جهاد او غزا د اعلان په انتظار شپې سبا کولې او ددې انتظار يې ايسته چې امير عبدالرحمن خان د جهاد اعلان وکړي. هغه وخت ملايانو او شېخانو د جهاد او مجاهدت تبليغ د منبرونو پر سر او په غونډو کښې کاوه. خانانو او ملکانو په خپلو مينځو کښې د سرو' خوراکې او سپرليو ژمنه کړې وه. زمونږ په کاله کښې زما د پلار تره تاج محمد خان، زما پلار بازمحمد خان او زه د غزا له پاره په ګوته او تاکل شوي وو. نيکه مې د قوم او سيمې د سمبالښت لارې او چارې په غاړه درلودې؛ ملا ميرزا محمد په سيمه کښې د فرنګيانو په وړاندې د جهاد په تبليغ او دعوت بوختۇ. دا وخت د ملايانو او مشرانو په هدايت کله نا کله د فرنګي او ګورکه د خرمه پوځونو سره زمونږ غلچکي بريدونه او نښتې کېدې. په وزيرستان کښې هم کاکا صاحب، ملا پونده اخند، ملا همزالله اخند او ملا صاحب اډکړ د وزيرو او مسودو د ننګياليو په ميړانه په فرنګيانو پورې ځمکه سور اور کړې وه. اودا پرېکړه شوې وه چې بايد د فرنګيانو او ګورکه پوځونه د افغان په خاوره کښې ارام خوب او ژوند ونه کړي او په دې

پوه کړی شي چې موږ مجاهدینو جهاد ته تیاری نیولی دی خو د امیر عبدالرحمن خان د امر او اور انتظار کاږو.

شپې سبا شوې، ورځې میاشتې شوې او میاشتې کلونه په هر کور او کهول کښې په ګوته شوي ځوانان د غزا له پاره تیارسئ وو؛ سپین ږیرو هم د جهاد له پاره نومونه ورکړي وو. د حضرت حسین نیکه، حضرت موسی نیکه او حضرت ماما رحم الله علیهم په مزارونو باندې د مشرانو غونډې او جرګې هر وخت کېدلې. ولې د کابل څخه د امیر عبدالرحمن خان له خوا د جهاد امر او د مرستې ژمنه نه وه رارسېدلې. ټولو قومونو هم دا انتظار ایسته، موږ بې پروا ځوانانو د فرنګي په پوځونو خپل غلچکي بریدونه تر سره کول او کله کله به مو د فرنګي او ګورکه پوځیان او افسران وژل او مالونه به مو لوټل. په هم دې وخت کښې زه پوره یوویشت کلن زلمی وم. په هم هغه وخت کښې ناڅاپي چې ۱۲۷۲ لمریز کال (۱۸۹۳ع) وُ په درست وزیرستان؛ ږوب او کندر کښې اوازه او ډنډوره وګرځېدله، چې امیر عبدالرحمن خان د فرنګیانو سره د روغې او جوړې تړون لاس لیک کړی دی او دا انګازې وې چې عبدالرحمن خان او فرنګیانو په خپله روغه او جوړه کښې راته راپاتې وړوکی احمدشاهي کور په دوو برخو ووېشه.

## د امیر عبدالرحمن خان او فرنګیانو په تړون کښې زموږ برخلیک

کله چې په ۱۲۷۲ لمریز کال کښې په وزیرستان، ږوب او کندر کښې د امیر عبدالرحمن خان او د فرنګیانو د استازو په

تړون کښې د افغاني غښتلي او قوي وجود څخه د لاس او پښو د پرې کېدو اوازه او ډنډوره ګډه شوه. نو زموږ په ټولو سيمو کښې د وير او ماتم ټغر ولوېد. د هرې سيمې غازي او مجاهد مشران، خانان، ملکان او ملايان هک پک او حيران پاتې شول او کومې هيلې او اميدونه چې د افغانانو د مرکزي امير نه کېده هغه په يوه ګڼه او شبه کښې خاورې او ايرې شوه. موږ د سيمو ځوانانو چې د فرنګيانو سره د سبانۍ غزا له پاره په څومره مينه ځانونه سمبال کړي وو او د شهادت په ارمان مو سپينې خمتايي جامې سهار او بېګا په تن وې په هم هغه جهادي تودو هيلو او ارزوګانو مو په يوه ګړۍ د کابل څخه په رارسېدلې ډنډوره سره سړې اوبه تويې شوې او د ځوانۍ د احساساتو په درلودلو سره نور نو د کابل پر تخت ناست او ډېره وهلی سلطان د افغانانو امير او اولي الامر نه راته ښکارېده؛ او نه يې د امر د پر ځای کولو فرضيت پاتې وُ. ما چې ديني علوم لوستي وو. په ليک او لوست ښه پوهېدم. دا مې هم د احاديثو په کتابونو کښې لوستي وو، چې د ګناه په چارو کښې اطاعت واجب نه دی. او هم د "اطيعوالله واطيعوا الرسول و اولي الامر منکم" د مبارک ايت په معنی او تفسير باندې پوره پوهېدم. په هم هغه ګڼتو کښې د غزا او د فرنګيانو سره د مجاهدې په اړوند موږ لره خپل مشران او ملايان د کابل د امير پر ځای د جهاد آمرين او د حکم خاوندان وو او د فرنګيانو په وړاندې د جهاد او مجاهدې په مورچل کښې د هغوی په وينا او فتوا اسونه زين کړي او ټوپک په اوږه ولاړ وو.

د امير عبدالرحمن خان او د فرنګيانو د تړون په اړه زموږ ځوانانو احساسات پارېدلي وو او وينه مو په رګونو کښې په

خوتېدو راغلې وه. په هم هغه ګڼو کښې زمونږ مشرانو مونږ تنکي ځوانانو ته دا تسلأ او د زړه ډاډېينه راکوله: " ننګياليو ځوانانو سينې مو ارتې کړئ؛ بې هيلې کېږئ مه. ستاسو په غاړه د وطن د خپلواکۍ دنده ده: د شهادت له پاره سپينې په تن جامې مه باسئ، د فرنګيانو د مکر او تګۍ په وړاندې بېداره او ځيرک واوسېږئ، تر څو چې د لوېدلې او ګډې شوې ډنډورې او آوازې اره بنه مونږ له ره څرګندېږي د امير عبدالرحمن خان د اطاعت او اوامرو څخه سرمه غړوئ. هغه د درست افغان ولس قانوني او شرعي امير او حاکم دی. د هغه د امر اطاعت په هر مسلمان افغان باندې واجب دی. مونږ به نن او سبا د ټولو سيمو مشران، خانان او علمأ سره جرګه شوو د پکتيا حکمران او امير صاحب ته به ليکونه او سړي ولېږو څو زمونږ په سيمو کښې د لوېدلې اوازې او خپرې شوې ډنډورې په اړه بشپړ معلومات راوړي".

په رښتيا چې مونږ څه ښکلي او سپېڅلي بهادر مشران او لويان درلودل. په کابل کښې پر تخت ناست امير خومره پرې ګران او زړه ته ورتېر وُ او څومره يې ورباندې ويسأ او باور وُ او په څه ارته او سړه سينه سره يې د خپل حکومت او خپل امير په اړه د هرې اوازې له پاره د ثبوت او شهادت غوښتنه او پلټنه کوله او څومره يې د خپلو کارونو د پخولو له پاره د احتياط څخه کار اخيسته. اندېښنو ته يې په خپلو سپېڅلو فکرونو کښې لاره نه ورکوله او د کوڅې او بازار په لوېدلې اوازې او خپره شوې ډنډورې يې خپل غوږونه نه نغوړل.

د امير عبدالرحمن خان او د فرنګيانو د لاس ليک د بشپړ معلومات له پاره په هغه وخت کښې زمونږ مشرانو په ګډه مشوره

سره کشتوري خان غازي د څو سرو سره چې زيات يې غښتلي ځوانان وو د پکتيا حکمران سردار ګل محمد خان ته ولېږه. د ځوانانو په هغه ډله کښې زه هم د کشتوري خان غازي سره مل وم. هغه ليک چې زموږ مشرانو د غازي صاحب په لاس سپارلی و، په هغه ليک کښې يې د پکتيا حکمران ته د ګډې شوې اوازې او خپرې شوې ډنډورې د صحت معلومولو په اړه داسې ليکلي وو:

" جناب حکمران صاحب! دلته اوازه لوېدلې ده او څرګنده نه ده چې دا اوازه د کوم لوري خپره شوې ده، چې امير صاحب عبدالرحمن خان د فرنګيانو سره په يوه موافقه کښې د وزيرو او کاکړو ټوله علاقه سرو کفارو ته سپارلې ده. موږ لره د لوېدلې اوازې په اړه پوره واقعيت معلوم نه دی. غازي صاحب کشتوري خان مو د يو شمېر سرو سره ستاسو جناب حضور ته درولېږه، چې د خپرې شوې ډنډورې اصلي واقعيت او حقيقت ستاسو د خولې نه څرګند کړي".

افسوس چې د پکتيا حکمران سردار صاحب ګل محمد خان د امير عبدالرحمن خان او د فرنګيانو د تړون په اړوند زموږ د ننګياليو مشرانو استول شوي استازي او ورسره سرو ته څه معلومات په لاس ور نه کړه او نه د تړون په اړه څه غوڅه څرګندونه زموږ ليږل شوو سرو خپلو مشرانو ته راوړه. ولې زموږ مشرانو ته د سردار صاحب د بې خبرۍ څخه ددې پته لګېده، چې د امير عبدالرحمن خان او د فرنګيانو تر مينځ څه تړون شوی دی. په هم هغه وخت کښې زموږ غلچکي بريدونه د فرنګيانو پر پوځيانو باندې د پخوا په څېر وو. په نوبت سره د هرې سيمې جنګيالي په هغه سيمه کښې دې غلچکي جنګونو

او بريدونو ته سره راټولېدل او د فرنګي پوځيانو په مرکزونو به ور ختل. يوه تياره شپه چې تر همدې ګڼتو مې په ياد او خاطر کښې دي، چې سهار ته قريب نه وه. زه هم د کندر د غازيانو سره د څخوبې پرچاونې باندې د بريد له پاره ووتم. او هلته مو د فرنګي د ګورکه پوځيانو نه پنځه تنه ووژل او د سهار په خوا کښې چې روښنايي پر تياره نه وه غالبه شوې بېرته خپلو کورونو ته راستانه شوو.

زمونږ مشرانو او ملايانو دا لوړه او ژمنه کړې وه، چې فرنګيان به په خپل ګاونډ کښې په ارامه نه پرېږدو. مالونه به يې لوټوو او سرونه به يې له تن څخه بېلوو او دا يې هم پرېکړه کړې وه، چې که چېرې دا د څښتن تعالی ددين دښمنان يوه ګڼته په ارامه پرېښودل شي نو دا سره لېوان به مسلمان افغانان د پسونو په څېر وخيري.

## د وانه غونډه او جرګه

هغه وخت چې د پکتيا د حکمران سردار ګل محمد خان څخه زمونږ سړي او کشتوري خان غازي خالي لاسونه بېرته راستانه شول. دوې اوونۍ وروسته د سيمو مشران، خانان او ملايان د مبارکې جمعې په ورځ د وزيرستان د وانه په مرکز کښې سره راغونډ شول. په دې ورځ زيات ولس راټول شوی وُ. لوی غازي او ننګيالی مجاهد ملا صاحب پونده آخند او ملاصاحب همزالله آخند هم په دې غونډه کښې حاضر وو. زما د قوم په نمايندګۍ زما د پلار تره ملا ميرزا محمد، زما پلار باز محمد خان مرياڼي او ما په دې غونډه کښې برخه درلوده.

زما د پلار دا عادت و، چې د وړوکوالي نه به یې زه د ځان سره هر لوري ته بېولم، څو مې خلکو او مشرانو ته ورپېژني. نو ځکه د وانه په سفر کښې هم ورسره مل وم. په دې غونډه کښې د هر قوم: هري قبيلې او هرې سيمې مشر او ملا په خپل وار سره ولس ته د جهاد، هېواد پالنې، اسلامي او افغاني غيرت او مېړانې په اړوند جذابې ويناوې او خطابې وکړې. هر ننګيالي مشر او ملا په ټينګار سره د فرنګيانو دښمني او مکاري په ګوته کړه. اوبيا د ټولو نه وروسته لوی مجاهد ملا پونده آخند د جمعې د لمانځه په خطبه کښې خپله جهادي وينا ولس ته وکړه. د ملا صاحب جهادي بيان د ټولو حاضرينو د بدن وينې په خوټېدو راوستلې او د ځوانانو احساسات يې په حرکت راوستل او که چېرې په هغه ګنټه کښې ملا صاحب پونده آخند ولس ته د غزا قومانده ورکړې وای. نو په هغه شېبه به ولس پاځېدلی وای او فرنګيانو ته به يې ځمکه سور اور ګرځولې وای. ملا صاحب پونده آخند د خپلې وينا او خطبې په اخري برخه کښې وويل: "مشرانو ورونو او ځوان غازيانو! هغه اوازه او ډنډوره چې زمونږ په سيمو کښې زمونږ د برخليک په ارتباط لوېدلې ده، مونږ مشران او علمأ د ګډې شوې اوازې د رښتيا او دروغو څه انتظار کارو. سردار محمد ګل خان د پکتيا حکمران هم مجاهد کشتوري خان غازي ته چې هم دلته ناست دی څه معلومات په لاس نه وو ورکړي، چې زمونږ دې د اسلامي او ملي غيرت په اساس په هغه باندې تسلأ او دزړه ډاډ وشي، نو ښه به دا وي، چې مونږ ټوله بيا هم يو څه انتظار وباسو. اسلام هم دا وايي، او بيا نو د غزا او جهاد لياره زمونږ او تاسو مخه چا نه ده نيولې. د فرنګيانو په

وړانـدې دا د مـوړ او تاسـو اوسـني واړه واړه جنګونـه هـــم جـــهاد دی. د څښتن تعـالی چـې څه امـر دی پـه هغـه بـه ان شاالله چـې خپل عمل کـــوو."

مـوړ ځوانـان د غـزا پـه خمتـايي کـالو کـښې تيارســئ ولاړ وو او هغـه د جـهاد او شـــهادت هيلـــې مشـــرانو او علمـــاو يـــو ځل بيـــا راپکـښې تـودې کــړې. د مـــلا صـــاحب پونـــده اخنـــد جذبـــاتي خطـابې او روحـــاني خبرې پـه مـوړ ځوانـانو بـاندې ځانـګړی اثـــر وغـورځاوه. د جمعـې د لمـانځه وروسـته ټولـــو وګړو د مســـجد پـــه انـــګړ کـــښې د غرمـــې ډوډۍ وخوړلـــه. درســـت ولـــس پـــه يـــوه دســـترخوان بـــاندې لاس کښتـــه کـــړی و. د ډوډۍ خوړلـــو نـــه وروسته ملاصـاحب پونـده اخنـد، مـلا صـاحب همـزالله اخنـد، مـلا ميرزا محمد زما د پـلار تـره، کاکـا صـاحب او نـور دلـيري او نـژدې سيمو څخـه راغلـې مشـران ځانتـه ګوښې سـره جـرګه شـوه او ټولـو پـه يـوه خولـه پرېکـړه وکـړه چـې مـــلا صـــاحب دې خپلـــه امـــير عبدالرحمـن خـان تـه ليـک وليکـې او نـور مشـران او علمـا دې پـه هغـه لاسليک وکـړي. او کـه پـه دې ليـک ســـره د امـــير صـــاحب لخوا ځواب تـــر لاسـه شـو دا بـه ډېره غـوره وي. او کـه نـه نـو مـلا صاحب پونده اخند دې خپلـه نيغ پـه نېغـه د زيـات شـمېر سـړو سـره کـابل تـه ولاړ شـي او هلتـه دې د امـير عبدالرحمـن خـان سره مخـامخ وګوري.

## د لوی مجاهد ملا پونده اخند سره د کابل په سفر کښې

څه وخت ووتـو هغـه ليـک چـې مـلا صـاحب ليکلـی و، مشـرانو او علمـاو پـه هغـه بـاندې خپـل لاسليکونه کـړي وو. د هغـــه ليـک

ځواب رانغی. او هغه د امیر عبدالرحمن خان او فرنګیانو تر مینځ د ترون اوازه او ډنډوره چې زمونږ د سیمو ولس اوریدلې وه او هیڅ وربا ندې یقین او باور نه کاوه، هغه خپره شوې اوازه رښتیا راوختله او امیر عبدالرحمن خان مونږ فرنګیانو ته لاس تړلي سپارلي وو. اوس نو ملا صاحب پونده اخند مجبور شو چې بیله کوم ځنډ څخه د ډیرو سړو سره د کابل په لور وخوځیږي چې امیر عبدالرحمن خان د خپل تړون څخه واړوي او د فرنګیانو په وړاندې یې د جهاد اعلان ته وپاروي. د ملا صاحب سره د هر قوم او هرې سیمې خلک ملګري شول. زه هم د خپل پلار په سپارښتنه د کندر د یو شمیر ځوانانو سره د ملا صاحب د کابل د سفر ملګری شوم. ملا صاحب همزالله اخند، ملک هفتي خان، انګور خان او دلباز خان هم په دې سړو کښې وو. په لاره کښې حکمران سردار ګل محمد خان هڅه او تلاش وکړ چې مونږ د کابل د تلو څخه پښیمانه کړي. ځکه زمونږ نیت او اراده هغه ته د هغه لیک له مخه څرګنده وه، چې څه وخت مخکې ملا صاحب دده له لارې امیر عبدالرحمن خان ته لیږلی و.

د سردار ګل محمد خان کوښښونو او تلاشونو د لوی مجاهد ملا صاحب پونده اخند او د هغه د ننګیالیو غازیانو په عزم او اراده باندې اغیز ونکړ. مونږ خپله د سفر لاره تعقیب کړه او څه چې مو اراده کړې وه، د هغې ارادې او عزم د سرته رسولو له پاره مو د لارې او سفر ټول کړاوونه په ځان باندې منلي وو. څو خپل ځانونه کابل ته ورسوو او هلته د امیر صاحب عبدالرحمن خان په نیت باندې پوه شو. زمونږ د سفر په لاره کښې کلیوالو د لوی مجاهد ملا پونده اخند او ملا

همزالله اخنـد د جـهادي قـافلې ملـګرو تـه مېلمسـتونونه پرانيسـتلي وو. خـان او غريـب مـوږ لـره پـړاو پـه پـړاو هرکلــی او ښه راغلـئ وايـه. د پسـونو او غويونـو وينـې وې چـې د مـلا صـاحب او د هغـه سره د مل سړو د ويـاړ او ښه راغلاسـت لـه پـاره پـه هرکلـي او هـره بانـډه کـښې پـه ويـالو ويـالو بـهېدلې. د خانـانو، ملکـانو، مشـرانو او علماو سـره پـه هـر پـړاو او مـنزل کـښې د وزيرسـتان د مجـاهدينو د قايد ملا صــاحب پونـده اخنـد ليدنـه او کتنـه وه او د جـهاد پـه اړه بـه يـې جـرګې کولـې. د ورځې بـه مـو د کـابل پـه لـور ځمکـه پرېکولـه او شـپه بـه مـو پـه لاره کـښې د ننګيـاليو افغانـانو پـه مېلمسـتونونو کـښې سبا کولـه. يـوه ورځ او دوې شـپې د موسـهي لـوګر د صـاحب زاده خېلـو چـې پـه ختـه حسـين خـېل دی پـه کلـي کـښې تېال شـوو. څو دلتـه د اوږده منزلـه سـتړيا واچـوو. پـه همـدې ځای کـښې مـلا صـاحب پونـده اخنـد د مـلا فيـض محمـد صـاحبزاده اونـورو مشـرانو او علمـاو سـره د خپـل سـفر پـه اړه خبرې وکـړې. د دوو شـپو او يـوې ورځې نـه وروسـته مـو د کـابل په لــور حرکـت وکـړ. او د همـدې ورځې د ماسـپښين د لمـانځه پـه وخـت زمـوږ جـهادي کـاروان د ملاصـاحب پونــده اخنــد او مــلا صاحب همزالله اخند پـه قيـادت او مشرۍ د کـابل ښار تـه ننـوت.

زمـوږ د رسـېدو څخــه وړانـدې د کــابل پــه ښار کــښې اوازه ګرځېدلـې وه، چـې لـوی مجـاهد مـلا پونـده اخنـد او د وزيرسـتان د سـيمو مجـاهدين د فرنګيـانو پـه وړانـدې د جـهاد د اعــلان او د امير د مرستې تر لاسه کولـو لـه پـاره د کـابل پـه لـور راروان دي.

کابل ته زمـوږ د جـهادي کـاروان او قـافلې پـه رسـېدو سـره بـې له ځنډه د امير عبدالرحمـن خـان سـړي مـلا صـاحب پونـده اخنـد تـه راورسـېدل. د مـلا صـاحب او زمـوږ لـه پـاره يـې حکومتـي

مېلمستون کښې د استوګنې ځاى وټاکه. شپه مو تېره کړ؛ هلته مو د سفر سترياړفع شوه. سهار د کابل په ټولو اوسېدونکو خوشحالي ګډه وه. دکابل د ولس د لويانو، خانانو او ديني علماو کوښښونه او هاندونه وو، چې د ملا صاحب پونده اخند او ملا صاحب همزالله او زموږ د قافلې د نورو مجاهدو مشرانو سره وګوري. او د هر کس دا هڅه وه، چې د جهاد په دوړو لړلي لوى مجاهد ملا صاحب پونده اخند زيارت وکړي او هغه کس يو ځل په خپلو سترګو ووينې، چې د جهاد د مورچل د اتلوليو نکلونه يې د افغان ننګيالي ولس کور په کور کېدل. ولې له بده مرغه د امير عبدالرحمن خان ګومارل شويو حکومتي خلکو به هغه افراد او اشخاص د ملا صاحب پونده اخند ملاقات ته راپرېښودل، چې به د حکومت سړي وو.

## د امير عبدالرحمن خان سره د ملا صاحب ملاقات

پوره دوې ورځې او شپې موږ او زموږ قايد ملا صاحب پونده اخند په حکومتي مېلمستون کښې د امير عبدالرحمن خان د ملاقات په انتظار تېرې کړې. پس له دوو ورځو نه امير عبدالرحمن خان، ملا صاحب پونده اخند ته د ملاقات وخت ورکړ. په دې ملاقات کښې امير عبدالرحمن خان د ملا صاحب کوم بل ملګري ته بلنه نه وه ورکړې. که څه هم ملا صاحب پونده اخند امير عبدالرحمن خان ته د يوولس مشرانو او علماو نومونه د ملاقات تر لاسه کولو له پاره لېږلي وو. زموږ د کاروان قايد او د وزيرستان د بهادر او جنګيالي ولس مجاهد مشر په

تنهايي سره د امير عبدالرحمن خان سره ليدنه او کتنه وکړه.
او دا ملاقات د هغه څه په برخه کښې و، د کوم مطلب له پاره چې مونږ دا اوږد سفر پيل کړی و. او هغه دا چې د هېواد په پولو او په هغه سيمو کښې چې پېرنګيانو خېټه اچولې وه امير عبدالرحمن خان د فرنګيانو او ګورکه په وړاندې جهاد او د مجاهدينو مرستې او لاس نيونې ته وپاروي. ولې افسوس چې امير عبدالرحمن خان د فرنګيانو په لومه او د مکر او فرېب په جال کښې سخت راښکېل شوی و. د امارت تاج او تخت د غرور او تکبر پر نيلي باندې سپور کړی و او د خپل مجاهد او ننګيالي ولس څخه يې پرېکړې وه. او ځان يې فرنګيانو ته سپارلی و. د خپل رعيت تېرې اتلوالۍ او د فرنګيانو شرمنده ګۍ يې له ياد او خاطر څخه وتلې وې. نو ځکه يې د وزيرستان د خلکو لوی مجاهد ملا صاحب پونده اخند ته په خپل ملاقات کښې په ډاګهاوزغرده سره وويل:
"د ږوب او وزيرستان ټوله سيمه د فرنګيانو سره د جنګ د مخنيوي په خاطر په هغوی پورې اړه لري او ما دا مصلحت وليد چې د افغانستان دا يوه ټوټه خاوره دې د نور افغانستان د موجوديت په صورت کښې تر څو چې فرنګيان په هندوستان او بنګال کښې وي په همدوی پورې تړلې وي. د فرنګيانو سره نن ورځ جهاد کول مشکل دی. دوه ځله جګړې افغانستان وران کړ. ولې فرنګيان تر هغه هم په قوت کښې دي تاسو ولاړ شئ او څنګه چې مو خوښه وي په هم هغه څېر د فرنګيانو سره معامله وکړئ او که ستاسو د ولس دا خوښه نه وي چې په کاکړستان او وزيرستان کښې ژوند وکړي افغانستان د دوی

کور دی دلته به موږ ورته د ژوند کولو لاره او چاره برابره کړو."

لوی مجاهد او د فرنګیانو سرسخت سیال او دښمن ملا صاحب پونده اخند او په کابل کښې موږ ورسره یوه جهادي قافله ملګري د امیر عبدالرحمن خان د ستوغ ځواب حاصلولو او د هغه د شوم او ناولي نیت څرګندېدنې نه وروسته بې له کوم ځنډ څخه د خپلو سیمو په لور د کابل څخه ستانه شوو. د کابل څخه په هغه لاره باندې په خټ روان شو او چې کابل ته پرې راغلي وو. هغه وخت چې زموږ جهادي قافله د کابل څخه د وزیرستان په لور روانېده د کابل ننګیالي په لیار او کوڅو کښې زموږ د خدای په امانی له پاره راوتي وو او یاد مې دي چې د زیاتر کسانو له سترګو نه اوښکې څڅېدې او هرکس به دا ویل "مجاهدینو ښتن تعالی مو د نصرت مل شه". په لاره کښې ملا صاحب پونده اخند ټول هغه قومي مشران، خانان، ملکان او جید علماء د وزیرو، مسودو، مریانو، دوړو او کاکړو قومونو او قبیلو د برخلیک په اړوند د امیر عبدالرحمن خان له نیت او قصد څخه اګاه کړل.

## بې د امیر عبدالرحمن خان له مرستې نه زموږ جهاد

وزیرستان ته زموږ د جهادي قافلې په رسېدو سره ملا صاحب پونده اخند د درست وزیرستان او ږوب ننګیالي د پلورل شوي امیر عبدالرحمن خان او د فرنګیانو سره د تړون او لاس لیک په برخه کښې اګاه او باخبره کړل. په ټول

وزیرستان او ړوب کښې وی ولوېد، د امیر عبدالرحمن خان د نوم سره د واړه او زاړه نفرت راپیدا شو اولس چې د کابل له دربار څخه بې هیلې او ناامیده شو نو د قوم مشرانو، خانانو او مجاهد علماؤ ډېر ژر په یوه قومي غونډه کښې چې ملا صاحب پونده اخند، ملا صاحب سید اکبر، ملا صاحب همزالله اخند، زنګي خان، عالم خان زلیخېل، انګور خان، حاجي محمد خان سرکی خېل، تدین خان اتمانزی، مشرف خان، رمضان خان، علیبت خان مسود، بنګل خان کاکړ، شېرجان کاکړ او نورو ننګیالیو پکښې ګډون درلود د فرنګیانو سره د جهاد په اړه دا پرېکړه او فیصله وکړه چې ټول به د ملا صاحب پونده اخند تر قیادت او هدایت لاندې د فرنګیانو په وړاندې جهاد او مجاهده جاري ساتي. څو فرنګیان له خپلې خاورې نه بهر کړي او هم داسې وشوه، چې د هر قوم او قبیلې مشر، خان او ملا پخپله سیمه او علاقه کښې د ملا صاحب پونده اخند تر قیادت او هدایت لاندې د فرنګیانو او ګورکه د پوځونو په وړاندې جهاد جاري وساته. لوی مجاهد او غازي ملا صاحب پونده اخند د فرنګیانو په ولکه کښې ننګیالي افغان ولس ته د جهاد او مجاهدې فتوا ورکوله او د جهادي کارونو په اړوند ملا صاحب د ټول ولس امیر او اولي الامر و. نورنو زموږ ولسونه د امیر عبدالرحمن خان په اطاعت او فرمانبردارۍ باندې اړ نه وو. د شریعت محمدي هم دا حکم و. ځکه امیر عبدالرحمن خان په خپل لاس باندې موږ د خپل اطاعت څخه ازاد کړي وو.

زموږ مجاهدینو جهاد په ټوله هغه سیمه کښې روان و، چې امیر عبدالرحمن خان فرنګیانو ته سپارلې وه. ولې فرنګیانو

کوښښ او تلاش کاوه چې ملا پونده اخند او نور مجاهدين د خپل جهادي عزم او ارادې ښخه واړوي. ولې لوی مجاهد او د وزیرستان د ولس د مجاهداتو افتخار ملا پونده اخند او نور غازیان ترهغه وخته چې ژوندي وو، د فرنګيانو په وړاندې د جهاد جنډه اوچته وساتله. د خدای کارونه دي چې ملا صاحب او نور ژوندي وو او د فرنګيانو سره په هم هغه جهادي مورچل کښې په مېړانه سره جنګېدلو چې امير عبدالرحمن خان د خپل امارت د بقا له پاره فرنګيانو ته سپارلی و. ولې امير عبدالرحمن خان پرته د دښمن له ګولۍ نه په ۱۲۸۰ (۱۹۰۱ع) ومړ.

## امیر حبیب الله خان

د امير عبدالرحمن خان د مړينې نه وروسته د هغه شهزاده زوی سردار حبیب الله د خپل پلار د امارت پر څوکۍ کښېناست. دا وخت زه ۲۹ کلن وم. زما د خېلخانې ښه مشران په حق رسېدلي وو. زما پلار او د هغه تره د هندوستان او بخارا په سودا ګرۍ بوخت وو او د ژمي په فصل کښې به د هغو سره د کلکتې او مدراس په سفر کښې مل وم. هندي او انګرېزي مې هلته ښه ولوستله. پښتو مې خپله ژبه وه او فارسي مې په مسجد او د پلار له تره مېرزا محمد ښه ياده کړې وه. د اوړي په موسم کښې به په خپله مېنه اوسېدم. نيکه مې خان محمد خان مړيانی يو سل اوولس کلن بوډا و. د مشرانو جرګې او غونډې ته به مو په ډولۍ کښې رساوه. د کور او کهول قوم او قبيلې ټولې چارې زما غاړې ته لوېدلې وې. د يوه پلو نه د فرنګيانو په وړاندې د جهاد مسئووليت راته په

اوړو و او د بـل لـوري نـه د کورنـۍ لارې او چـارې راتـلـل پـه غـاړه وې. د پـلار، نیکـه او ترونـو شـتـه مـې ډېر وو. د غازیـانو او مجاهدینو ډلـې سهار او بېګا تلـې او راتلـې زمـوږ مېلمسـتون د هـر لاروي او مسـافر پـر مـخ پرانیسـتلی و. او د عـام او خـاص اسـتوګنځی ګرځېدلی و. د وزیـرو، مسـودو او کـوچـي ننګیـالي قومونـو او قبیلـو ټولـو افـرادو پـه هـم هغـه روحـاني سـترګه راتـه کتـل. وزیـرو او مسودو د حضـرت حسـین نیکـه (رح) اولاده پـه سیدانو کـښې شـمارله او سلېمانخېل مـې مامـا خـېل وو او د خـور د زوی په سـترګه یـې رابـاندې مـهرباني او پېرزوینـه وه.

د مشـرانو خانـانو او ملایـانو غونـډې او جـرګې بــه کلــه کلــه زموږ پــه سیمه کـښې زمـوږ پـه مېنـه کـښې کـېدې او د فرنګیـانو او ګورکه پوځونو پــه وړانـدې بـه یـې د غلچکـي بریدونـو پرېکـړې او فیصلـې کولـې مشـرانو او علمـاو دا احساس او درک کـړی و چــې کـه چـېرې د فرنګیـانو پــه وړانــدې زمــوږ مقـاومت او غلچکــي بریدونه تم شي نو د درست افغان ولـس پـه زیـان بـه تمـام شـي.

امیر حبیـب الله خـان زمـوږ د سیمو پـه اړه هـم د خپـل پـلار امیر عبدالرحمـن خـان پـه قـدم بـاندې قـدم اوچـت کـړ او څنګه چې زمـوږ د ولسـونو ترېنـه هیلـه او ارزو کېدلـه پـه هغـه څېر یـې د فرنګیانو په وړاندې زموږ د جهاد ملاتـړ پـه نېغـه سـره اعـلان نـه کـړ او د فرنګیـانو سـره یـې د خپـل پـلار امـیر عبدالرحمـن خـان او سـردار محمـد یعقـوب خـان تړونونـه قبـول کـړل. د امـیر حبیـب الله خـان ورور سـردار نصرالله خـان زمــوږ پــه لــوري پاملرنــه او توجـه درلـوده. دا چـې پـه دې پاملرنــه او توجـه کــښې د امـیر حبیب الله خان څومـره لاس و اویـا تـر کـوم حـد پـورې د امیر پـه هدایت وو. هغه مــوږ د دربـار څخـه لـیرې مشرانو او علمـاو تـه نـه

خرګندېده. سردار صاحب نصرالله خان زمونږ مجاهدينو سره د خپلو اړيکو ساتلو له پاره حاجي صاحب ملا عبدالرزاق خان اندړ غوره کړی و. او کله کله به سردار نصرالله خان د حاجي صاحب په لاس زمونږ مجاهدينو سره مالي مرسته او مدد کاوه. ولې دا مرسته او مدد دومره زيات نه و چې د هغه په ذريعه دې فرنګيان زمونږ د خاورې نه بهر شي. دا وخت زمونږ د ټولو مجاهدينو قايد او امير ملا صاحب پونده اخند و او د هغه تر قوماندې او هدايت لاندې په وزيرستان، ږوب او کندر کښې مجاهدينو د فرنګيانو په وړاندې جهاد او مجاهده کوله او دا مو هم پرېکړه او ژمنه کړې وه، چې څښتن تعالی دې په کابل باندې سخته نه راولي او که بيا سخته ورباندې راغله نو مرستې او مدد ته به يې خپل ځانونه او مالونه په شپه کښې رسوو.

## د لوی مجاهد او غازي ملا صاحب پونده اخند مړينه

زمونږ مجاهدينو د جهاد او مجاهدې مورچل د فرنګي او ګورکه پوځونو په وړاندې په وزيرستان، ږوب او کندر کښې هم هغسې تود و. لکه چې مو پيل کړی و. زمونږ د برخليک په اړه د امير عبدالرحمن خان او امير حبيب الله خان بې پروايی زمونږ په جهاد کښې يوه ذره بدلون او تغير هم رامخکښې نه کړ. مونږ د فرنګيانو سره په هغه وسله جهاد کاوه چې مو په غلچکي جنګونو کښې ترېنه غنيمت کوله. فرنګيان زمونږ له بريدونو څخه په زياته ويره او ډار کښې لوېدلي وو او د فرنګيانو هم دا وېره او ډار و چې څو ځله يې امير حبيب الله

خان ته شکایت وړاندې کړ. مور په خپلو سیمو کښې د جهاد په چارو کښې خپلواک وو. او د امیر حبیب الله خان پلار د خپل رعیت د حساب نه ایستلي وو. امیر حبیب الله خان هم هغه لاره نیولې وه. او هم دا وخت و چې په ۱۲۹۳ (۱۹۱۴ع) کښې د وزیرستان، ړوب او کندر د ننګیالیو مجاهدینو قاید غازي ملا صاحب پونده اخند په حق ورسېد. د ملا صاحب په مړینه د فرنګیانو په ولکه کښې په ټوله پښتونخوا کښې د وېر او ماتم ورځ اعلان شوه. د ولس د سترګو نه د اوښکو پر ځای وینې څڅېدې. د ملا صاحب د هر مجاهد پتمنو هم په ساندو ژړل. د لیرو سیمو نه د ملا صاحب پونده اخند(رح) جنازې ته ولس راغونډ شوی و. او فکر کوم چې د امیر عبدالرحمن خان پر جنازه به دومره خلک نه وو راغونډ شوي لکه چې د ملا صاحب پر جنازه راغونډ شوي وو. ملا صاحب پونده اخند د مجاهدینو یو ملي قاید و. هغه امیر نه و او نه یې امارت درلود. د هغه امارت د فرنګیانو سره د مرګ تر ګنټو پورې جهاد او مجاهده وه. او که هغه د جهاد نه لاس اخیستی وای، نو فرنګیانو به د امیر محمد یعقوب او امیر عبدالرحمن خان په څېر زموږ د سیمو امارت ورکړی وای. او هغه وخت چې موږ د کابل له جرګې نه وزیرستان ته راغلو او ملا صاحب ولس جهاد ته هڅاوه. فرنګیانو ورته امارت وړاندې کړ. ولې ملا صاحب د فرنګیانو وړاندیز د جهاد د مورچل له لارې رد کړ.

د ملا صاحب پونده اخند په مړینه فرنګیانو او د ګورکه پوځونو د ډېرې خوشالۍ او مسرت څخه په خپلو پوځي چونیو او مرکزونو کښې د ټوپکو او توپونو ډزې کولې. او دا یې اټکل کړی و چې د ملا صاحب پونده اخند په مړینه به

دجهاد او مجاهدي مورچل د دوی په وړاندې مات شي. ولې د فرنګیانو اتحکل بې ځایه و. د وزیرستان، ږوب او کندر د مجاهدینو جهادي مورچل نور هم قوت او طاقت ومونده. ملا همزالله اخند الحمدلله ژوندی و، په کابل کښې ملا عبدالرزاق خان اندړ زموږ "مجاهدینو" ملاتړ او خواخوږی و.

د لوی مجاهد او غازي ملا پونده اخند رحمه الله علیه د مړینې نه وروسته د هغه زوی ملا فضل الدین اخند چې موږ (مجاهدینو) ورته د ګرانښت او اخلاص نه شهزاده صاحب وایه، د ملا صاحب پر ځای کښیناست. دټول ولس سترګې په شهزاده صاحب دکېدې. او د بل لوري نه د ملا صاحب پونده اخند په فراق کښې په شهزاده صاحب باندې د مجاهدینو او غازیانو د زړه سوده او تسلا کېدله او د پلار په څېر یو وتلی قاید او مجاهد و. د فرنګیانو په وړاندې په ټولو جنګونو کښې د غازیانو او مجاهدینو په خنګ کښې جنګېده.

## نړیوال عظیم جنګ او زموږ د خپلواکۍ مناسب وخت

هغه وخت چې فرنګیانو زموږ پر سیمو خپله خېټه اچولې وه او په کابل کښې حبیب الله خان امیر و. په نړۍ کښې عظیم جنګ ونښت د جنګ عظیم د اور لمبې د اسیا براعظم ته هم رارسېدونکې وې. د ترکانو اسلامي خلافت په جنګ عظیم کښې د جرمن او ایټالیا په طرف ولاړ و. روس، فرنګ او فرانس په یوه پلو وو. د جګړه مارو هېوادونو دا کوښښ او هڅه وه چې په اسیا او افریقا کښې جنګیالي ولسونه په خپل خنګ

کښې ودروي. دا هغه وخت و چې لوی مجاهد ملا صاحب پونده اخند په حق رسېدلی و. زموږ جهاد د ملا همزالله اخند تر قیادت لاندې روان و. فرنګیان زموږ د بریدونو او جنګونو څخه په تنګ راغلي وو او سخت په ډار کښې وو او دا ویره یې په زړه کښې لوېدلې وه، چې هسې نه ترکان او جرمن دې جنګیالي ولس ته لاس ورکړي. او په افغانستان کښې امیر حبیب الله خان د فرنګیانو په وړاندې د ترکیې مسلمانانو په څنګ کښې ودرېږي. د جرمن او ترکانو سړي هم په کابل کښې په دې فعالیت باندې بوخت وو او دا یې هاند و چې امیر حبیب الله خان په خپل طرف واړوي.

د افغانستان د پوره خپلواکۍ د ترلاسه کولو او زموږ د سیمو د ازادۍ په ارتباط هغه څه ښه او مناسب وخت و چې امیر حبیب الله خان زموږ مجاهدینو ملاتړ د جهاد تر سرلیک لاندې اعلان کړی وای. موږ مجاهدین دې لره تیار او اماده وو، چې د امیر حبیب الله خان په لر مادي او معنوي مرسته سره فرنګیان د پښتنو افغانانو له ټولې خاورې نه شړلي وای. په هندوستان کښې هم مسلمانانو او هندوانو د فرنګیانو په وړاندې ملي قیام ته تیاری نیولی و. او د افغان مسلمانانو د یوه حرکت له پاره سترګې په لیاره وو. فرنګیانو هم چاره نه درلوده او مجبور وو چې د افغانستان خپلواکۍ او زموږ ازادۍ ته تسلیم شي. ولې افسوس چې امیر حبیب الله خان هغسې ونکړل. څه چېورباندې واجب او لازم وو.

امیر حبیب الله خان په جنګ عظیم کښې د افغانستان د خپلواکۍ او د خپلې خاورې او خپل ولس د ازادۍ په اړوند د فرنګیانو فرېب او دوکه وخوړله. په جنګ عظیم کښې یې خپل

ناپيلتوب ښکاره کړ. د جنګ عظيم په پيل کښې کله چې ترکانو او جرمن هڅه کوله چې افغانستان په خپل څنګ کښې ودروي. فرنګيانو د امير حبيب الله خان د دوکه کولو له پاره د امير سره ژمنه وکړه چې د جنګ په پای کښې به د افغانستان استقلال په رسميت سره پېژني. ولې زموږ د برخليک په برخه کښې خبره هغه وه، چې د امير پلار د فرنګيانو سره لاس ليک کړې وه.

هغه وخت چې جنګ عظيم پای ته ورسېد ترک - جرمن او ايټاليا مغلوب شول. فرنګيان د امير حبيب الله سره په هغه خپله پخوانۍ وعده او ژمنه ونه درېدل. د افغانستان استقلال يې په رسميت ونه پېژانده. په عظيم جنګ کښې غالب فرنګيان نور هم په ځان غره او د تکبر پر نيلي يې پښه واړوله. افسوس چې امير حبيب الله خان نه د ځان له پاره څه وکړل او نه يې موږ ته څه ګټه راورسېده. موږ خو د خپل جهاد او مجاهدې په برکت په خپلو هسکو غرونو کښې د فرنګيانو څخه خپلواک وو، که څه امير عبدالرحمن خان راسره جفا کړې وه او فرنګيانو ته يې لاس تړلي سپارلي وو. د کور، کهول، مسجد، ځان او مال واک مو په خپل لاس کښې وو او دا واک مو د توري په زور د فرنګيانو څخه ترلاسه کړی وو. ولې د فرنګيانو په وړاندې امير حبيب الله نه د ځان او نه د مال اختيار درلود او په افغانستان کښې د فرنګيانو يو لاس پوخي امير و.

موږ د امير عبدالرحمن خان او د فرنګي ډيورنډ په لاس د افغانستان د ستر وجود څخه په پرېکړه شوې سيمه کښې هر وخت د فرنګيانو او ګوډاګه پوځونو سره په جنګ او جګړه بوخت وو او زموږ د سيمو هر نارينه اوسېدونکی يو نوميالی

مجاهد و دا د ټولو وګړو هاند او کوښښ و چې یوه ورځ نه یوه ورځ به په وزیرستان، کندر او ړوب کښې د فرنګي او ګورکه لښکرې تباه او نابود کوو. زموږ جهاد د ملا همزالله اخند تر قیادت لاندې په همهغه څېر د فرنګیانو په وړاندې روان و چې امیر حبیب الله خان په لغمان کښې شهید شو. دا یو ناخاپي خبر و چې موږ مجاهدینو ته راورسېد.

## تر جنګ عظیم وروسته زموږ په سیمو کښې د فرنګیانو د پوځونو سوقیات

فرنګیانو چې عظیم نړیوال جنګ د ترک، جرمن او ایټالیې څخه ګټلی و. نو د خپل غرور او تکبر پر نیلي باندې یې پښه اړولې وه. سهار او بېګاه یې دا هڅې او تلاشونه وو، چې موږ غرني قومونه او قبیلې پوره رانښکیل کړي څو زموږ په ښکیلولو سره په پراخ او ارام هندوستان او بنګال باندې خپله واکمنې په اساني سره وساتي. نو ځکه یې زموږ د ښکیلولو له پاره په هر لور باندې سړکونه غځول او پړاو په پړاو یې په وزیرستان، ړوب او کندرکې نظامي چونۍ ابادې کړې او زموږ د ښکیلولو خبره وه، چې فرنګیانو د جنګ عظیم نه وروسته زموږ په سیمو کښې د انګرېزي او ګورکه پوځونو په زیاتولو باندې زور واچاوه. او د بل لوري نه یې زموږ پښتنو په مینځ کښې د اختلاف او بې اتفاقۍ راپیداکولو له پاره د څه پښتنو نه ملیشایي پوځ جوړ کړ. او ددې کار د بري له پاره یې په هر لور شته او نعمتونه وشیندل، ملېشا ته یې سترې تنخواګانې او معاشونه وټاکل او دایې زیات هاند او تلاش و چې د قومونو او

قبیلو یو شمېر مشران، خانان، ملایان او ملکان په خپله خوا کښې ودروي. د قومونو او قبیلو په اتحاد او یووالي کښې اختلاف او بې اتفاقي په دې توګه سره را پیدا کړي، چې قومونه او قبیلې په خپلو منځو کښې په جنګ او جګړې بوخت کړي. څو په اسانۍ سره زموږ په سیمو کښې خپلې ناولې هیلې او ارزو ګانې تر لاسه کړي. دا وخت د امیر حبیب الله خان د امارت وروستۍ ګنتې وې. د امیر نظر او پاملرنه زموږ په سیمو کښې د فرنګیانو د نظامي سوقیاتو څخه د خپل ځانګړي ژوند په لور ګرځېدلې وه او نه یې موږ نور په خپل رعیت کښې شمارلو. ځکه د امیر حبیب الله خان پلار فرنګیانو ته سپارلي وو. او امیر ته دا ګرانه ښکارېده، چې د فرنګیانو سره د خپل پلار شرمېدلی تړون مات کړي.

هغه وخت چې فرنګیانو زموږ په سیمو کښې په هر لور جنګي پوځیان لېږل او پړاو په پړاو یې چونۍ ابادولې. موږ هم لاس تړلي نه وو ناست. په هره سیمه کښې په فرنګیانو باندې زموږ غلچکې بریدونه وو. دا چې تاریخ به زموږ هغه جنګونه لیکلي وي او که نه ما لره پته نه شته. زموږ جنګونه د فرنګیانو سره په هغه ډولکو وو، چې موږ د فرنګیانو څخه په غلچکي جنګونو او د کاروانونو په لوټولو کښې ترلاسه کول. د امیر حبیب الله خان لخوا زموږ سره مرسته نه کېده او هغه مرسته چې به سردار نصرالله خان د حاجي صاحب ملا عبدالرزاق اندړ په لاس کوله هغه مرسته هم درېدلې وه. زموږ د جهاد پلویان او خواخوږي د امیر صاحب په دربار کښې هم د امیر لخوا په کورونو باندې کښېنول شوي وو. د حاجي صاحب ملا عبدالرزاق خان څخه هم واک او اختیار اخیستل شوی و.

فرنګیانو ته هر څه معلوم وو او هم دا خبره وه چې فرنګیانو خپل زیات پوځي مرکزونه زموږ په سیمو کښې اباد کړل. د هسکو او دنګو غرونو څرکوته یې لارې او سړکونه وایستل. او زموږ د ورکاوۍ او نابودۍ له پاره یې پلانونه او نقشې درلودې.

## د فرنګي په پوځ کښې پښتانه ملېشا

داسې اوونۍ او داسې ورځ نه وه چې زموږ دې په فرنګي او ګورکه نیپالي پوځونو باندې ناڅاپي غلچکي بریدونه او حملې نه وې شوې او ضرور به د فرنګ او ګورکه لس او شل پوځیان په بېلابېلو سیمو کښې د غازیانو لخوا وژل کېده. د فرنګیانو په قافلو او کاروانونو باندې به د مجاهدینو له لوري چپاو روان و. او چېرې چې به د فرنګیانو د خوراکي څیزونو او جنګي لوازمو کاروان او قافله مجاهدینو ته په لاس ورتلله، نو بې له ځنډ نه به ننګیالیو غازیانو هغه لوټله او هر څه به یې د مجاهدینو لخوا غنیمت کېده.

د امیر عبدالرحمن خان او فرنګیانو په ناولې کړنه کښې د ټولو سیمو قومونه او قبیلې د فرنګیانو د پلانونو او نقشو په وړاندې بېدار او سره متحد وو. د قومونو، قبیلو او سیمو تر مینځ د اختلاف او بې اتفاقۍ نخښه او نښانه نه لیدل کېده. که څه هم فرنګیانو هاند کاوه، چې د قومونو، قبیلو او مختلفو سیمو مشران او خانان په خپل مینځ کښې سره بې اتفاقه کړي. او قومي جنګونه رامخکښې کړي. ولې موږ پوهېدو چې فرنګیان څه غواړي او څه کوي. زموږ ټولو مشرانو زړونو ته دا راتېره

شوې وه چې که هر وخت دا کفار بې له جنګ نه په ارامه پرېښودل شي، بیا به نو توان او طاقت تر لاسه کړي، چې مونږ د وزیرستان، ږوب او کندر پر ګنې د خپل ظلم د تناره په اور کښې وریت کړي. د خپلو جنګونو غچ به رانه واخلي. زمونږ پت او عزت به یرغمل کړي او دا غرنۍ سیمې او دا ننګیالی اولس به د هند، پنجاب، سند او بنګال د وګړو په څېر خپل غلام وګرځوي.

لوی څښتن دې مشرانو، خانانو، ملکانو، ملایانو او اولس ته ددنیا او اخرت ګټې او برکتونه ور په برخه کړي، چې په هم هغه سختو شېبو کښې یې خپل یووالی او پیوستون وساته؛ او نه کوم کس او یا کومې قبیلې د زړه له کومې د فرنګیانو خدمت وکړ او نه کوم مشر، خان، ملک او ملا د دښمن څخه بدې واخیستې. کوم افراد چې زمونږ په سیمو کښې د فرنګیانو ملېشا شوي وو. هغه زمونږ د مشرانو په سلا او مشوره ملېشا شوي وو. د هغوی زړونه او فکرونه زمونږ سره وو او د فرنګیانو نه یې یوازې د تنخوا پرېکړه کوله او هم دا زمونږ په سلا او مشوره ملېشا شوي سړي وو چې هر کله به یې د فرنګیانو د قافلو او کاروانونو د حرکت او په قافله کښې د ورسره شتو او پوځیانو خبر مونږ مشرانو ته رارساوه. او مونږ به د هغه کاروان او قافلې د لوټولو او چپاو له پاره ننګیالي مجاهدین او غازیان لېږل.

داپوزې په ښار ګوټي کښې غازي مشوخان د فرنګیانو له لوري د ملېشا د لښکرو صوبدار مېجر و. د ږوب په سیمه کښې لوی غازي اجمیر خان شهید د اختر محمد خان مندوخېل زوی د فرنګیانو لخوا صوبدار مېجر و. په مېرانشاه کښې پت خان او تدین خان چې دوه ننګیالي او مېړني پښتانه وو د

فرنګیانو لخوا د ملیشا د پوځ قوماندانان وو، غازي عصمت الله خان هم د فرنګیانو له خوا صوبدار میجر و. ددې بهادرو پښتنو زړونه د خپل قوم او اولس د مشرانو سره وو. او په قوم کښې یې ستر ځای او مقام درلود. فرنګیان هم په دې باندې غوریدلي وو، ولې چاره یې نه درلوده.

## د امیر حبیب الله په شهادت د امیر په خپلخانه کښې بې اتفاقي

امیر عبدالرحمن خان که څه هم زمونږ په حق کښې جفا وکړه او په خپل لاس لیک یې فرنګیانو ته لاس تړلي وسپارلو. ولې د هغه د امارت په دوران کښې د افغانستان په خاوره کښې د ورونو او د تره د زامنو تر منځ کورنی جګړه پای ته ورسیده. د امیر حبیب الله د امارت زمانه هم د هغه د پلار په خیر وه. ولې کله چې امیر حبیب الله خان په شهادت ورسید، یو ځل بیا د پخوا په څیر د تره او وراره تر منځ بې اتفاقي راغله. د امیر حبیب الله زوی، شهزاده امان الله خان په کابل کښې او د امیر ورور سردار نصرالله خان چې د امیر حبیب الله خان د مشرقي د سفر ملګری و په جلال اباد کښې د امارت جنډه ورپوله او هر یوه دا هڅه او تلاش کاوه چې د خپل امارت د تائید له پاره د خلکو او مشرانو بیعت تر لاسه کړي.

مونږ د وزیرستان، ږوب او کندر مجاهدینو او غازیانو سردار صاحب نصرالله خان او شهزاده امان الله خان دواړه ښه پیژندل او د فرنګیانو په وړاندې د دواړو عقاید او نظریات ښه راته معلوم او څرګند وو. د امیر حبیب الله خان د امارت په

اوږدو کښې سردار صاحب نصرالله خان د حاجي صاحب ملا عبدالرزاق خان اندړ په لاس زموږ د جهاد مادي او معنوي مرسته کوله او په جنګ عظیم کښې د خپل ورور د ناپیلي فکر په خلاف وو او دا یې هڅه وه، چې افغانان د فرنګیانو په خلاف د ترک او جرمن ملګرتیا وکړي. د شهزاده امان الله خان عقاید او نظریات د فرنګیانو سره د نفرت او دښمنۍ پر بنیاد حاجي صاحب موږ مجاهدینو ته پخوا بیان کړي وو او هم مو له دې تکي څخه معلومات درلود چې شهزاده امان الله د خپل پلار د امارت په دوره کښې د امیر د غوره شوي سیاست سره مخالفت درلود او د فرنګیانو سره د جنګ او جګړې پلوي و.

د امیر عبدالرحمن خان او امیر حبیب الله خان د امارتونو په زمانه کښې که څه هم دوو امیرانو موږ د وزیرستان، ږوب او کندر اوسېدونکي د افغانستان په اولس کښې نه شمارلو او دواړو امیرانو زموږ برخلیک فرنګیانو ته سپارلی و، ولې په دې ټوله اوږده زمانه کښې د امیر عبدالرحمن خان او د هغه د زوی د جفا او بې غورۍ سره موږ دا فکر او خیال نه کاوه، چې موږ د خپل توکم څخه بېل اولس یو. زموږ هم دا احساس او د وینې ګډون و، چې په افغانستان کښې د دوو جنډو اوچتولو او د دوو امارتونو اعلان سخت غمګین او په اندېښنو کښې واچولو. موږ مشرانو او خانانو ته په زړونو کښې وسوسه او وېره راولوېده چې څناور فرنګیانو بیا افغان جنګیالي اولس ته څه د مکر او فریب دامونه اېښودلي دي. نو هم دا وېره او اندېښنه وه، چې په ټوله سیمه کښې د مجاهدینو د مشرانو

خانانو، ملکانو او ملایانو جرګې پیل شوې. په ګډه دا پرېکړه وشوه چې مجاهدین او غازیان دې خپل ځانونه سنبال کړي.

ارمان چې دا ځل د مجاهدینو د مشرانو په غونډه او جرګه کښې لوی مجاهد ملا صاحب پونده اخند نه لېدل کېده. هغه غازي او د فرنګیانو دښمن د سپېرو خاورو په کور کښې بندي و. ملا صاحب همزالله اخند هم څه بوډا او په تن زهیر شوی و. دا وخت زما د کورنۍ ټول مشران په حق رسېدلي وو. او زه په خپله خېلخانه کښې یوازینی مشر او سرپرست پاتې وم.

د ملایانو او علماو په لوړ مقام کښې بوډا ملا همزالله اخند، د ملا پونده اخند زوی شهزاده صاحب، قاضي صاحب اشکي او قاضي صاحب امیر شاه خان قریش ناست وو او د شریعت په چارو کښې د فتوا اخیستلو لاسونه دوی لره اوږدېده. د مشرانو، خانانو او ملکانو په کتار کښې د ږوب، وزیرستان او کندر څخه نیولې تر ګوملې پورې لوی مجاهد موسی خان مسود، انګور خان، ملک هفتي خان، زنګي خان، دلباز خان، مشرف خان، ملک دندخان، شېرک خان کاکړ، سردار حسن خان کاکړ، قایم خان کاکړ، اختر محمد خان مندو خېل، ملک فتح خان سلېمانخېل، نواب خان سلېمانخېل، شېرجان خروټی او نعمت خان خروټی او ما ګډون درلود.

زموږ غونډې او جرګې روانې وې، چې د پکتیا نه زموږ سیمو ته احوال راورسېد چې سردار صاحب نصرالله خان د امیر حبیب الله خان وروړ په جلال اباد کښې د خپل امارت له دعوا نه لاس واخیست او د خپل وراره شهزاده امان الله سره یې بیعت وکړ. د هم هغه نېک او بختور خبر په اورېدو سره موږ هر مشر او خان په خپله سیمه کښې په مسجدونو کښې

خیراتونه وکړل. د منبرو پر سر باندې افغان اولس او نوي امیر ته د خیر او برکت دعاګانې وشوې. مونږ د کندر اوسېدونکو د حضرت حسین نیکه رحمه الله علیه په زیارت کښې پسونه او غوایه حلال کړل. د کندر درستو وګړود شهزاده امان الله خان سره خپل بیعت او د وفادارۍ لوړه او ژمنه وکړه.

د شهزاده امان الله په پادشاه کېدو سره د فرنګیانو او ګورکه پوځونو په وړاندې چې زمونږ په سیمو کښې یې چونۍ او مرکزونه جوړ کړي وو. زمونږ مجاهدینو د جهاد وینې نورې هم په خوټېدو شوې او د اعلیحضرت شهزاده امان الله خان څخه مو په زړونو کښې دا هیلې او امیدونه راوپارېدل، چې د فرنګیانو په وړاندې به نن او سبا د جهاد اعلان کوي او دا ځوان اعلیحضرت به په خپل لاس د جهاد جنډه اوچتوي.

## د اعلیحضرت امان الله خان د پاچا کېدو سره زمونږ امید او اندېښنه

مونږ د ډیورند او امیر عبدالرحمن خان د تړون په پوله کښې د افغانستان څخه د بیلې کړی شوې سیمې د پښتنو قومونو او قبیلو مشران، خانان، ملکان او ملایان په دې سوچونو او فکرونو کښې ډوب تللي وو، چې د امیر حبیب الله خان زوی او د امیر عبدالرحمن خان لمسی اعلیحضرت امان الله خان چې په کابل کښې د پلار د شهادت نه وروسته د افغانانو پادشاه ګرځېدلی دی، هغه به په افغانانو باندې د فرنګیانو د تیري او تجاوز په وړاندې څه لاره او چاره غوره کوي؟ د پلار او نیکه په څیر به د فرنګیانو تر حمایت او

سیوري لاندې د ذلت او خوارۍ ژوند اختیاروي او که به د افغانانو د یوه خپلواک اولي الامر په خبر د جهاد جنډه اوچتوي.

زموږ سره دا امېدونه او اندېښنې وې. د مشرانو په غونډو او جرګو کښې دا خبره ګرځېدله او راګرځېدله، دا موږ لره ډېره مهمه او حیاتي خبره وه. د نر او ښځې، د زاړه او واړه ورباندې بحث و. د مشرانو په خپل مینځ کښې ورباندې مشورې او جرګې کېدلې او د هر چا د خولې نه هغه وخت دا اورېدل کېده: " چې که د څښتن تعالی د ننګیالي او مسلمان اولس د خپلواکۍ په لور رضا او اراده وه او که اعلیحضرت امان الله د فرنګیانو په وړاندې د ازادۍ او جهاد اواز اوچت کړ، نو په دې عظیم جهاد کښې به زموږ د سیمو اسلامي او افغاني دنده او ونډه څومره وي؟ او هم ددې عظیم جهاد په نتیجه کښې به زموږ د اولس برخلیک څه وي؟ او اوس چې ځوان شهزاده امان الله خان د خپل نیکه او پلار پر تخت باندې ناست دی، د هغه پرېکړه او خیالات زموږ د ازادۍ په اړه څه دي؟

موږ د وزیرستان ږوب او کندر اوسېدونکي چې د امیر عبدالرحمن خان د امارت د شپږو نه بیا د امیر حبیب الله خان د شهادت تر ګنټو پورې فرنګیانو په خپله پلرنۍ خاوره کښې سخت ځورولي او کړولي وو. کورونه یې راته وران کړي وو او مالونه یې راته د باروتو په سره اور کښې وریت کړي وو. هره شپه او هره ګنټه مو د خپل ازاد برخلیک په اړوند فکرونه او سوچونه وو. او په کابل کښې چې به هر بدلون رامخکښې کېده. د هغه سره به امیدونه او اندېښنې راته پیدا کېدې.

هغه وخت چې په نړۍ کښې ستر جنګ ونښت او فرنګیان د ترک او جرمن سره په جګړه بوخت وو. د امیر حبیب الله خان نه زمونږ دا هیلې او امیدونه وو، چې دا ګړۍ او دا ګنته به د خپل ځان او زمونږ د ازادۍ له پاره د فرنګیانو په وړاندې د جهاد اواز پورته کوي او مونږ لره به مالي او معنوي مرسته او قوماندې راکوي چې د فرنګي او ګورکه پوځونه د افغان پښتون له خاورې نه تر بنګال پورې و تړتو او په پنجاب، لاهور او کشمیر کښې هم خپله جنډه هسکه کړو. نو ځکه مو اوس هغه هیلې او امیدونه دځوان شهزاده اعلیحضرت امان الله خان ځخه وو. د هم دې هیلو او امیدونو په ځنګ کښې دا وېره او اندېښنه هم زمونږ په زړونو کښې رالوېدله چې خدا ی دې نکړي چې ځوان شهزاده د خپل پلار او نیکه په قدم باندې قدم اوچت نکړي. او زمونږ د سیمو اولس بیا هم د فرنګیانو په منګولو کښې رانښکېل پاتې وي.

## په کابل کښې د اعلیحضرت امان الله خان په ژبه د خپلواکۍ او جهاد اعلان

هغه وخت چې په وزیرستان، ړوب او کندر کښې فرنګیانو خپل قدم کښېښود. نو د هم هغه زمانې ځخه فرنګیانو زمونږ په ازادو او غزنیو سیمو کښې خپلې پوځي چونۍ او مرکزونه اباد کړه او په هر لور یې سرکونه وغځول. په وزیرستان، ړوب او کندر کښې د فرنګیانو تر پنځوس نه زیاتې چونۍ او مرکزونه وو. پر دې چونیو او مرکزونو باندې هر وخت زمونږ د

مجاهدینو لخوا بریدونه او شبخونونه وو او دا بریدونه او شبخونونه له هغه وخت څخه موږ په فرنګیانو باندې پیل کړي وو کله چې هغه کفارو زموږ سیمو ته لاس را اوږد کړ او هڅکله مو د خپلو د دین او د افغانانو د خپلواکۍ دښمن په ارامه نه و پرېښودلی. زموږ غلچکي بریدونه د فرنګیانو په چونیو؛ پوځي مرکزونو او قافلو باندې هم هغسې روان وو، چې د ۱۲۹۷ (۱۹۱۹ع) کال د حوت په میاشت کښې زموږ سیمو ته احوال راغی چې اعلیحضرت امان الله خان د افغانستان د علماو او مشایخو څخه د فرنګیانو په وړاندې د جهاد فتوا تر لاسه کړې ده او خپله اعلیحضرت امان الله د فرنګیانو سره د غزا کالي په تن کړي دي. دا اوازه زموږ په سیمو کښې په ډېره بېړه خپره او وګرځېده.

وزیرستان، ږوب او کندر ته د اعلیحضرت امان الله خان له لوري د جهاد د خبر په رارسېدو سره بیا هم زموږ مشرانو، خانانو، ملکانو، او ملایانو شک او اندېښنه وه او بشپړ یقین او باور مو نشو کولای. په دې چې د امیر عبدالرحمن خان او امیر حبیب الله خان د امارتونو په وخت کښې موږ دا رنګ زیات خبرونه او اوازې اورېدلې وې. نو د پوره یقین حاصلولو له پاره زموږ د سیمو غازیانو او مجاهدینو شپې او ګنټې شمارلې. او ددې په انتظار کښې وو چې که رارسېدلی خبر واقعیت ولري، نو نن او سبا به د اعلیحضرت امان الله خان استاځي زموږ د مرستې غوښتلو له پاره زموږسیمو ته د پیغام سره راځي او د اعلان شوي جهاد او خپلواکۍ په اړه به موږ مشرانو، ملکانو، ملایانو او خانانو ته خبر او معلومات راکوي.

# د اعلیحضرت امان الله خان استاځي او د قومونو په نوم ورسره فرمانونه

مور ټولو د قومونو مشرانو، خانانو، ملکانو او علماو په وزیرستان، ږوب او کندر کښې د جهاد او خپلواکۍ د اعلان د خبر په اړوند د اعلیحضرت امان الله خان د استاځي انتظار ایسته، چې د ۱۲۹۸ کال د حمل په میاشت کښې نا څاپي د لمر پرېوتو په مهال نور فضیلت ماب حاجي ملا عبدالرزاق خان اندړ د دوو نورو ملګرو سره زما میلمستون ته راننوتل او هغه دوه تنه یو ملا عبدالغني د ښرنی او بل ادم خان و. ما د حاجي عبدالرزاق سره د ډېر پخوا نه پېژندګلوي او معرفت درلود. دا هغه حاجي صاحب و، چې د امیر حبیب الله خان د امارت په زمانه کښې یې زموږ مجاهدینو د جهاد خواخوږي او ملاتړ کاوه او د امیر حبیب الله خان وروړسردار نصرالله خان خپلې مرستې او امداد زموږ مجاهدینو سره دده په لاس کاوه.

د مېلمه پالنې او پښتني دود سره مې سم په هم هغه تیاره کښې حاجي صاحب او د هغه دوو تنو ملګرو ته پسه حلال کړ، د ماسخوتن ډوډۍ مو سره وخوړله، لمونځ مو په جومات کښې په ګډه سره ادا کړ، په مسجد کښې حاجي صاحب ملا عبدالرزاق خان د کلي د خلکو سره لیدنه وکړه او بېرته زما مېلمستون ته راستانه شول. د ماسخوتن چای مو سره وڅښه. ولې د چای څښلو په اوږدو کښې چې د حاجي صاحب پیاله په لاس کښې وه په موسکۍ خندا او ورینه تنده سره راته وویل: "د مریانو خان او مشره! وه دې نه پوښتل چې زه د څه

له پاره پس له کلونو کلونو نه ستاسو سيمې ته راغلی يم. ملا صاحب او ادم خان په لاره کښې زما د سفر مله شوه. دوی ته مې په ښرنه کښې څرګنده کړې ده چې زه د څه له پاره کندر ته راروان يم." د پښتني دود او رسم په نظر کښې نيولو سره په هغه شيبه کښې د حاجي صاحب عبدالرزاق خان نه پوښتنه کول ګران راته معلوم شوه ولې پس له څه سکوت نه مې حاجي صاحب ته د هغه د پوښتنې ځواب په دې څېر سره ورغبرګ کړ: مېلمانه او عزيزان دې څښتن تعالی دا د غرونو او رغونو سېمو ته هر کله راولي. ستاسو جناب او خواږه عزيز نه به زما د پوښتنې څه حاجت وي. ولې حاجي صاحب ملا عبدالرزاق خان چې پوه او عالم سړی و په همهغه ګنته يې په سپينه او ډاګسره زما د وينا ځواب دا رنګ را غبرګ کړ: " تاسو مشرانو ته به احوال راغلی وي او ضرور چې راغلی خو به وي، چې اعليحضرت امان الله خان د فرنګيانو په وړاندې د افغانستان د خپلواکۍ او جهاد اعلان کړيدی. او ماله يې وظيفه سپارلې ده چې په سرحد کښې مېشته مشرانو، خانانو. ملکانو او مشايخو ته د اسلام د پادشاه فرمانونه ورسوم او څنګه چې زما په څېر يو فرد ته سخته ده چې د انګرېزانو په ولکه کښې د پښتنو په خاوره کښې په ازاده وګرځم او هغه وخت چې د کابل نه راوتلم دا مې په نظر کښې وو چې د وزيرستان او ړوب مشرانو. خانانو. ملکانو او علماو ته به دا فرامين د يار محمد خان مرياڼي په لاس رسوم په ښرنه کښې عبدالغني ملا صاحب هم زما دا پرېکړه راسره خوښه کړه. اوس دا درنده اسلامي وجيبه ستا پر اوږو ابږدم چې د اعليحضرت امان الله خان دا فرمانونه په وزيرستان او ړوب کښې د ټولو قومونو او

قبیلو مشرانو، خانانو، ملکانو او ملایانو ته چې د هر یوه کلی او کور تا لره معلوم دی ورسوې او زه انشاءالله چې په سبا به درنه د کابل په لور روانېږم هلته هم زما مسوولیت زیات دی، د جهاد نه به وروسته که ژوند وفا وکړه سره ګورو".

## د وزیرستان او رږوب په لور زما ماموریت

نور فضیلت ماب حاجي ملا عبدالرزاق خان صاحب په هم هغه شپه د اعلیحضرت امان الله خان فرمانونه ما لره وسپارل، څو یې په وزیرستان او ږوب کښې د قومونو او قبیلو مشرانو، خانانو، ملایانو او ملکانو ته لاس په لاس ورسوم. او هم یې یو د اعلیحضرت امان الله خان فرمان په ځانګړې توګه ما لره راکړ. حاجي صاحب په سبا د سهار د چای څښلو نه وروسته د خپلو دوو ملګرو سره د کابل په لور ما نه رخصت واخیست او د روانېدو په وخت کښې یې لاسونه اوچت کړل او دا دعایې په آه کښلو سره وکړه: "ستاسو غازیانو او مجاهدینو دې په دې عظیم جهاد کښې الله ملګری او مرستندوی واوسي. اې الله! د وزیرستان، ږوب او کندر مجاهدین پوره پښتون کاله ستا ددین د دښمنانو سره په مجاهده بوخت دي. ته یې نصرت وکړې".

د حاجي صاحب ملاعبدالرزاق خان د تلو نه وروسته ماهم بې له کوم ځنډه او درنګ څخه د اعلیحضرت امان الله خان فرمانونه چې زیات شمېر وو، په ډېره خوشالۍ او بې له کومې ستړیا څخه په یوه اوونۍ کښې د ږوب په علاقه کښې شیرک

خان کاکړ، سردار حسن خان کاکړ، قایم خان کاکړ، اختر محمد خان مندوخېل، د ګوملې په سیمه کښې نواب خان سلیمانخېل، ملک فتح خان سلیمانخېل، شېرجان خان خروټي، نعمت خان خروټي او په وزیرستان کښې ملا همزالله اخند، قاضي صاحب شکي، عصمت خان، شېرمحمد خان انګور خان، ملک هفتي خان، دلباز خان، اختي جان خان، ملک دندخان، عبدالله خان، مشرف خان، زنګي خان، عبدلي موسی خان، قطب خان، امیرشاخان، قاضي صاحب میراجان خان شابهرام خان او ملا فضل الدین اخند(شهزاده اخند) ته ورسول.

اعلیحضرت امان الله خان په هغو فرمانونو کښې چې ما د وزیرستان او ږوب د قومونو او قبیلو مشرانو، خانانو، ملایانو او ملکانو ته ورسول لیکلي وو "ما د افغانستان ددیني علماو، مشایخو او روحانیونو څخه د انګرېزانو په مقابل کښې د افغانستان د خپلواکۍ او د جهاد فتوا اخیستې ده. هلته ستاسو غیرتي قومونو د مشرانو څخه زما دا هیله او امید دی، چې خپل قوم او قبیله په ځان او مال باندې د جهاد له پاره وهڅوئ. انشاءالله و تعالی چې د جهاد له مورچل نه ازادي نژدې ده".

اعلیحضرت امان الله خان.

## د جهاد او خپلواکۍ په اړه په وانه کښې زمونږ مشرانو غونډه

هغه وخت چې ماد اعلیحضرت امان الله خان فرمانونه د افغانستان د خپلواکۍ او د فرنګیانو په وړاندې د جهاد د

اعلان په اړوند په وزیرستان، ړوب او ګومله کښې د قومونو او قبیلو مشرانو، ملایانو، خانانو او ملکانو ته رسول. نو د ټولو ننګیالیو مشرانو دا هیله او ارزو وه، چې د عمومي جهاد د پیل نه مخکښې باید د کندر، ړوب ، ګوملي او وزیرستان د قومونو او قبیلو نماینده مشران او ملایان په یوه ځای کښې سره راغونډ شي. زما په دې ماموریت کښې د ټولو مشرانو سره دا پرېکړه او فیصله مینځ ته راغله او د هر ننګیالي او غیرتمن مشر هم په دې باندې اتفاق وشو. چې د ۱۲۹۸ (۱۹۱۹ع) د ثور د میاشتې په اولو کښې به د هرې سیمې د مشرانو څخه درې او یا څلور مشران او علما چې فرنګیان خبر تر لاسه نکړي د وانه د اشکي په کلي کښې سره راغونډېږو. اشکي د ملا صاحب حمزالله اخند کلی و. او ټول اوسېدونکي یې د ملا صاحب په لاس د جهاد په مورچل کښې روزل شوي مجاهدین وو. زه هم په خټ کندر ته ستون نه شوم په اشکي کښې د مشرانو او ملایانو د غونډې جوړېدو پورې وځنډېدم. په دې چې د فرنګیانو د وېرې نه تګ او راتګ راته ګران و. او فرنګیان د خپلو جاسوسانو له لارې په دې باندې غوربدلي وو چې زه په خانانو. ملکانو، ملایانو او مشراتو باندې د اعلیحضرت امان الله خان فرمانونه وېشم. او هم یې دا خبر تر لاسه کړی و، چې حاجي صاحب ملاعبدالرزاق خان ماله د امان الله خان فرمانونه سپارلي دي. او د هغو د وېشلو دنده یې ماله سپارلې ده.

د ۱۲۹۸ کال د ثور میاشت راورسېده د وانه د اشکي په لور باندې له هرې خوا نه خانان، مشران، ملکان او ملایان راروان وو د اشکي اولس دمېلمنو د ښه راغلي او هر کلي له

پاره تیاری نیولی و اوهم یې ددې له پاره ترتیبات نیولي که چېرې فرنګیان پر اشکي باندې د غونډې د مشرانو د نیولو له پاره برید وکړي. نو اولس به یې په مرګسره مقابله کوي. دا ټول ترتیبات او تیاری په پټه او ارامه سره وو. او که فرنګیان د مشرانو په دې غونډې خبر شوي وای، نو د اشکي درست کلی به یې د اور په لمبو کښې سوځولی وای. او هغه څه چې د غونډې نه وروسته راتلونکي وو. نو هغه به نه وای پېښ شوي. زموږ مجاهدینو او د اعلیحضرت امان الله خان پلانونه او نقشې به ټولې شنډې او ویجاړې شوې وای. د څښتن تعالی احسان او نصرت و، چې زموږ د غونډې څخه نه د فرنګیانو جاسوسان او نه فرنګیان خبر شول.

د اشکي په تاریخي غونډه کښې چې وروسته یې د جنوب په جبهه کښې د فرنګیانو د پوځي ځواک په وړاندې د افغانستان خپلواکي تامین کړه زموږ د سیمو د قومونو او قبیلو دغو ننګیالیو مجاهدو مشرانو، خانانو، ملکانو او ملایانو برخه او ګډون درلودی:

## د وزیرو د ننګیالي قوم مشران:

لوی مجاهد ملا همزالله اخند، قاضي صاحب اشکي، انګور خان، شېرمحمد خان، دلباز خان، هفتي خان. قایم خان غازي، ملا زنګي خان، زرمعین خان، ملک ګل خان. سید خان، ملک زقیم شاه خان، مشرف خان او پایو خان

**د مسودو د ننګيالي او بهادر قوم مشران:**

ملا فضل الدين اخند (د لوی مجاهد ملا صاحب پونده اخند زوی)، ملک موسی خان، قطب خان، قاضي صاحب او امير شاه خان قريش.

**د کاکړو د ننګيالي قوم مشران:**

سردار حسن خان، اختر محمد خان مندوخېل او سردار قايم خان.

**د سلېمانخېلو د مېړني قوم مشران:**

ملک فتح خان او نواب خان.

**د خروټو د ننګيالي قوم د مشرانو په نماينده ګۍ:**

نعمت الله خان خروټی.

**د کندر د ټولې علاقې په نماينده ګۍ:**

زه يار محمد مريانی.

## د اشکي په غونډه کښې زموږ د مشرانو پرېکړه

د اشکي په غونډه کښې چې د فرنګيانو په وړاندې د اعليحضرت امان الله خان له خوا د افغانستان او خپلواکۍ د جهاد د اعلان په ملاتړ موږ مشرانو جوړه کړې وه. په پيل کښې ملا همزالله اخند، امير شاه خان قريش او ملا افضل الدين اخند د قوم مشرانو خانانو او ملکانو ته د جهاد او مجاهدې د دنيوي او اخروي ګټو او د ازادۍ د مفاداتو په ارتباط ويناوې وکړې. مشران يې د جهاد في سبيل الله د بريااليتوب له پاره وحدت او يووالي ته وبلل. او هم يې د اختلاف او بې اتفاقۍ

دنیوي او اخروي زیانونو ته ګوتې ونیولې. د ملا صاحب همزالله اخند، ملا صاحب فضل الدین اخند او قاضي صاحب امیر شاه خان قریش د ویناو څخه وروسته د هر قوم او قبیلې او سیمې مشر او ملک په خپل وار او نوبت سره بیان او خطابه وکړه. او هر کس په جهاد کښې د خپلې سیمې او خپل قوم د سړو د برخه اخیستلو ذمه ووهله، او ژمنه یې وکړه چې په ځان او مال به په جهاد کښې ونډه اخلي.

ملک موسی خان په خپل نوبت کښې د غونډې ټولو ګډون کوونکو ته مخ واړاوه او په خپله وینا کښې یې داسې وویل: "موږ ټول په دې پوهیږو او بشپړ معلومات لرو، چې د افغانستان دولت د فرنګیانو په وړاندې کوم مالي او پوځي توان او طاقت نه لري چې د فرنګیانو په وړاندې د جهاد په مورچل کښې د ټولو مجاهدینو سره ورباندې مرسته وکړي. زه په یقین سره ویلی شم چې اعلیحضرت امان الله خان خاص په څښتن تعالی باندې توکل کړیدی او د فرنګیانو په وړاندې یې ددې عظیم جهاد اعلان کړی دی.

فرنګیانو چې جنګ عظیم یې ګټلی دی. په خپل پوځي څواک باندې ډیر مغرور او متکبر دي. ترک، جرمن او ایټالیې ته دوی په جنګ عظیم کښې ماتې ورکړه. او دا فرنګیان موږ په خپلو سیمو کښې وینو چې څومره زیات پرمختللي جنګي افزار لري. په ټول افغانستان کښې دوه او درې منظمې پوځي فرقې نشته دي. په درست جنوبي (پکتیا) کښې د اعلیحضرت امان الله خان دوه درې پوځي کنډکه دي. دا پوځیان تر کومه چې ماله پته ده په ګېډه او هم په تن باندې خوار دي. زیات یې سپین روبي او خانګي پوځیان دي. جنګي ټول افزار یې

امیر شیر علیخاني او بغل پوري ټوپکي دي. ولې ددې ټولو ربړو او مشکلاتو سره ازادي ډېره خوږه او ستر نعمت دی.

تاسو د قومونو مشرانو ته پته ده، چې فرنګیان او د هغو ګوډکه اجیر پوځیان د جهاد او مجاهد د نوم څخه سخت ډارېږي. هغوی زموږ دې وړو وړو بریدونو په وزیرستان، ړوب او کندر کښې په ویره او ترس کښې اچولي دي. اوس د جهاد د اعلان سره په پوره ویره کښې دي. فرنګیانو ته د افغان مجاهدینو مېړانه او ایمان معلوم دی. افغانانو دوه ځلې د جهاد په مورچل کښې فرنګیانو ته ماتې ورکړې ده او انشاالله چې دا ځل به هم ماتې ورکوي. ولې باید ووایم چې په دې جهاد کښې زموږ مسئولیت درونـد دی. او هغه څه چې موږ غوښته. هغه اوس اعلیحضرت امان الله خان اعلان کړي دي. اوس پر موږ مشرانو ده چې دا ملي مسئولیت په خپل اتحاد او اتفاق سره ادا کړو....

د ملک موسی خان له اوږدې وینا څخه وروسته ما (یارمحمد مریاڼي) د اشکي په غونډه کښې د قومونو، قبیلو او سیمو مشرانو ته په خپله وینا کښې وویل: هغه وخت چې جناب نور فضلیت ماب حاجي صاحب عبدالرزاق خان اندړ زما په مېلمستون کښې ماله د اعلیحضرت امان الله خان فرمانونه تسلیم کړل. چې په ړوب، ګوملي او وزیرستان کښې یې د قومونو او قبیلو مشرانو، خانانو، ملکانو او ملایانو ته وسپارم. هغه اسلامي او ملي راپه غاړه کښې لوېدلې وظیفه ما سهار او بېګاه په پلي مزل وهلو سره الحمد لله سر ته ورسوله. او کله چې مې د اعلیحضرت امان الله خان فرمان هر ننګیالي مشر ته وړاندې کاوه، نو د جهاد او خپلواکۍ سره د عشق او محبت

لرلو په اساس به يې په لوړ اواز سره د الله اکبر ناره کوله. او د اعليحضرت امان الله خان فرمان به يې ښکلاوه او له ډېرې مينې نه به يې په ټېر پورې موږه، ماچې هغه زموږ د غيرتمنو مشرانو احساسات او د جهاد سره مينه په سترګو ليدلې ده. په دې يقين او باور يم، چې انشاالله و رحمن دا د جنګ عظيم په سوبه او برې مغروره کفار به زموږ د مشرانو د يووالي او د الله اکبر په چيغو له افغانستان او هندوستان څخه وځي. د هندوستان او بنګال وګړي هم د ازادۍ تږي دي. او تر کومه ځايه چې ماته د مدراس او کلکتې په سفرونو کښې په ګوته شويده. هندوان او بنګاليان زموږ د حرکت انتظار کاږي. او هم دا نن ورځ ده، چې موږ مشران د خپل يووالي او اتفاق له لارې د جهاد او خپلواکۍ سره عشق او محبت په ځان او مال سره څرګند کړو. او دا غونډه او جرګه به زموږ د ځينو وروستي ديدن وي.

## په غونډه کښې زموږ د مشرانو پرېکړې

د اشکي په غونډه کښې د مشرانو، خانانو، ملايانو او ملکانو د خطابو او ويناو نه وروسته ټولو راغونډ شوو مېړنو په اتفاق او يوه ژبه سره لاندينۍ پرېکړې او فيصلې وکړې:

۱. د مسلمانانو د اولي الامر له لوري د کفارو په وړاندې د جهاد اعلان په هر نژدې او ورخرمه مسلمان باندې په ځان او مال باندې فرض عين دی. او دا زموږ مشرانو دنده ده، چې خپل اولس جهاد ته وهڅوو.

۲. هغه کسان چې د جهاد ځانې توان او طاقت نه لري. پرې واجب دی، چې د شتو لرلو په حالت کښې په مال باندې جهاد وکړي. او د الله(ج) د لارې مجاهد په مال سره سمبال کړي: ټوپک، کارتوس او کالي ورته برابر کړي.

۳. په هغه کهاله کښې چې دوه ځوانان وي. یو کس یې ضرور چې د جهاد مورچل ته ووځي.

۴. د فرنګیانو څخه چې په جهاد کښې څه غنیمت کېږي. غنیمت د هم هغه سیمې په مجاهدینو پورې اړه لري.

۵. په یوه سیمه کښې د جهاد په پیل سره، باید په ټولو سیمو کښې جهاد پیل شي. څو د فرنګیانو او ګورکه پوځونو قوت او طاقت کمزوری شي.

٦. د هرې سیمې مشر د خپلې سیمې او خپل قوم او قبیلې جهادي قوماندان دی. د قوم په ټولو سرو باندې د هغه اطاعت واجب دی.

۷. خدای دې نکړي که په یوه سیمه کښې د فرنګي او ګورکه پوځیان پر مجاهدینو باندې غالب شي. د نورو سیمو پر مجاهدینو باندې واجب دی، چې بې له ځنډ څخه د مغلوبې سیمې د مجاهدینو ملاتړ ته ځانونه ورسوي.

۸. د فرنګیانو د زیات خطر په حالت کښې باید په کلو کښې پاتې ځوانان د کلو زاړه، واړه او ښځینه خوندي ځایونو ته ورسوي. څو د فرنګیانو په لاس کښې د مجاهدینو ناموس کښېنوځي.

۹. د جګړې په ډګر کښې د ټپیانو او شهیدانو د پالنې او انتظام له پاره دې هر مشر په خپله انتظام جوړ کاندي.

۱۰. د فرنګي پوځيان او جاسوسان دې زمونږ له فيصلو څخه بې خبره وساتل شي.

۱۱. جنګونه دې د پخوا په څېر هم هغسې غلچکي روان وي. او بيا دې يو ځايي بريدونه پيل شي.

۱۲. د جاسوسانو کار دې د جنګ تر ختمېدو پورې بشپړ شي. او په دې حالت کښې دې حساب نه ورسره کېږي. خو قومي او قبيلوي فتنه را اوچته نکړي. او فرنګيان قومي او قبيلوي فتنه غواړي.

۱۳. د افغانستان دحکومت مالي او ځاني امداد ته زمونږ اړتيا او ضرورت نه شته. او په دې برخه کښې بايد مونږ د کندر، وزيرستان، ږوب او ګوملې مشران اعليحضرت امان الله خان او يا په پکتيا کښې د هغه د حکومت سرو ته ډاډ ورکړو. او ملا همزالله اخند دې په خپله ليک ورته وليکي.

۱۴. ملا همزالله اخند او شهزاده صاحب دې په مناسب وخت کښې د وزيرو او مسودو د قومونو او قبيلو د مشرانو يوه جرګه د جهادي چارو په اړه په پکتيا کښې د حکومت کسانو ته ولېږي.

۱۵. د وزيرستان، کندر، ږوب او ګوملې د مشرانو، خانانو ملايانو او ملکانو نه غير دې چاته اجازت نه ورکول کېږي چې زمونږ د سيمو په جهادي کارونو کښې لاسوهنه وکړي. ځکه د بهر سړي نه زمونږ د اولس سره پېژندګلوي لري او نه زمونږ په دود، رسم او جنګي چارو پوهېږي. د غيرو سلا او مشوره د اورېدو ده. ولې په هغه باندې عمل او رفتار کول زمونږ د مشرانو په واک او اختيار کښې دی.

۱٦. ملا همزالله اخند زموږ مشرانو د سيمو د جهاد جرنيل دی. او دده جهادي قومانده او فتوا ټولو مشرانو او مجاهدينو ته د منلو او اطاعت وړ ده.

## د عمومي جهاد او خپلواکۍ تر لاسه کولو له پاره تيارئ

د اشکي په غونډه کښې موږ د قومونو او قبيلو ګډون کوونکي مشران پوره دوې ورځې ايسار شوو او د هغه نه وروسته هر کس په ښه خپلې سيمې ته د غونډې او جرګې د پرېکړو او فيصلو سره روان شو. او يو د بل سره مو په ډېره مينه او ورورولۍ خدای په اماني وکړه. خپلو سيمو ته د ستنېدو سره زموږ د هر يوه قومي او قبيلوي مشر پر اوږو باندې د جهاد درونده بار و او د غونډې د ټولو پرېکړو د عملي کولو امانت زموږ د هر يوه مشر په غاړه لوېدلی و او دا مو ژمنه کړې وه، چې د ژوند تر اخيرې سلګۍ پورې به د فرنګيانو په وړاندې درېږو.

دا وخت زموږ د مشرانو مسئوليت ډېر ريات و. ځکه اعليحضرت امان الله خان جهاد اعلان کړی و او موږ هم د خدای(ج) نه دا غوښته. د جهاد عمومي د اعلان نه مخکښې د فرنګيانو په وړاندې زموږ جنګونه غلچکي بريدونه وو او اوس بايد موږ جبهوي جنګ ته تياری نيولی وای. په غلچکي جنګونو کښې نه دومره مجاهدينو او د هغوی خوري ته ضرورت و. لکه اوس چې په جبهوي جنګ کې ورته اړتيا ليدل کېده. نو ځکه موږ مشران په خپلو سيمو کښې دې لره محتاج

وو، چې خپل خلک د جهاد له پاره تيار او سمبال کړو. د جهاد له پاره غښتلي او تکړه کسان په ګوته کړو. جنګي وسايل او خوراکي مواد له هر لوري نه راټول کړو. دندې او وظيفې په خپلو مينځو کښې ووېشو.

څنګه چې خبره دٌ جنګ او خپلواکۍ وه. د پښتني غيرت او مېړانې د څرګندولو ګنټه را رسېدلې وه. نو هرکس او هر فرد په ډېره مينه او اخلاص سره په جهاد کښې د نوم ورکولو له پاره د خپل قوم او قبيلې مشر ته ځان رساوه. او د فرنګيانو په وړاندې يې دجهاد مورچل ته د خپل تګ او برخه اخيستو ژمنه کوله.

په کندر کښې زما (يار محمد مرياڼي) سره د کندر ټولو اوسېدونکو وګړو په جهاد کښې په ځان او مال باندې تعهد وکړ. شته لرونکو د جهاد له پاره خپل شته بسپنه کړه. او په سنګر کښې د ګډون ژمنه يې هم وکړه. د کندر ټولو ځوانانو د جهاد له پاره خپل تياري ښکاره کړ. ما ټول اولس ته د اشکي د جرګې پرېکړې بيان کړې. او بېله کوم اختلاف څخه درستو پرګنو د اشکي د جرګې په فيصلو باندې د امين دعا وکړه او زه (يار محمد مرياڼی) يې د کندر د مجاهدينو د عمومي مشر په توګه غوره کړم. زموږ دا ټول کارونه او جرګې د فرنګيانو څخه په پټه روان وو ممکن چې فرنګيان زموږ په حرکت او فعاليت باندې چې موږ سهار او بېګاه په کار اچولي وو. غوږېدلي وي. ولې د جګړې د پيل نه مخکښې يې جنګي اقدام ونه کړ.

# په جهاد او د خپلواکۍ په جګړه کښې د ملايانو ستره ونډه

د کندر، وزيرستان، ړوب او ګوملې په سيمو کښې کله چې اعليحضرت امان الله خان د فرنګيانو په وړاندې د جهاد اعلان وکړ. د ملايانو او مشايخو برخه د اولس په راپارولو کښې ستره وه. حقاني ملايانو د سهار، ماسخوتن او د جمعې په لمونځونو کښې پر ګښې جهاد او مجاهدې ته پارولې. په هغه لنډ وخت کښې کور په کور او کلي په کلي به پلي ګرځېدل. د جهاد برکتونه او د مسلمانانو په لاس د کفارو ذلت او خواري به يې بيانوله. په خطابونو او بيانونو کښې به يې د قران پاک هغه ايتونه او د نبوي احاديثو نه به يې هغه احاديث قرائت او ترجمه کول، چې د جهاد، مجاهد او شهادت په اړوند وو. د رسول الله صلى الله عليه وسلم د مبارکو اصحابو د جهادونو قهرمانۍ او د اسلام په لاره کښې د هغوی لخوا هغه ګالل شوې ربړې به يې په ګوته کولې. د تاريخونو نه به يې خلکو ته د سلطان محمود غزنوي د سومنات د جنګ نکلونه کول.

ملا خير الدين مرياني او سليمانخېل ملا شفيق الله اخند چې په سوات او پېښور کښې يې د لويو لويو ملايانو او مولويانو نه لوست کړی و. ډېر تکړه مبلغين وو. د دوی وعظ ته به خلکو ژړل او خبرې به يې په زړونو ننوتلې. دوی به د فرنګيانو په لاس د ترک د عثماني خلافت د مينځه وړل په خپلو خطابو کښې بيانول او د ولس پام به يې دې لوري ته را اړاوه، چې که چېرې د فرنګيانو په وړاندې نن موږ مسلمانان په ځان او مال باندې جهاد ونکړو، نو فرنګيان چې د يورپ

 څخه راغلي کفار دي او د مسلمانانو په خپله خاوره کښې يې اړولي دي. دلته د مسلمانانو د غلام کولو له پاره راغلي، د مسلمانانو عزت او ناموس تر پښو لاندې کوي.

ملا خيرالدين مرياڼي او سليمانخېل ملا صاحب په سياست هم پوهېدل د خپل ولس نه هم ښه اګاه وو. دوی به پرګنو ته ملا دين محمد اندړ او ملا صاحب پونده اخند(رح) د جهاد مثالونه وړاندې کول او دا ځکه چې اولس د ملا صاحب دين محمد اندړ د جهاد قهرمانۍ اورېدلې وې د جهاد او مجاهدې نکلونه يې په هر لور کېدل. ملا صاحب پونده اخند زياتو خلکو په خپلو سترګو ليدلی و او څه کسان هم وو چې د ملا صاحب سره يې په جهاد کښې ونډه درلوده.

ښتن دې هغو ملايانو ته د اخرت نعمتونه ور په نصيب کړي، چې په هغو سختو ګنټو کښې يې خپله اسلامي او ملي وظيفه ترسره کړه، اولس يې جهاد ته وپاراوه، اتحاد او يووالی يې د وګړو په مينځ کښې ټينګ کړ، نه يې د فرنګيانو زور ته اراده سسته شوه او نه يې د هغو کفارو څخه بډې واخيستلې. د خپل اولس سره اوږه په اوږه په مورچل کښې وجنګېدل او تر هر کس مخکې يې د شهادت برخه په نصيب شوله. مرياڼي او سليمانخېل ملا صاحب هغه اولي افراد وو، چې د فرنګيانو سره په جهاد کښې شهيدان شوه او مرياڼي ملا صاحب نه يو زوی د نورالدين په نوم پاتې شو، ملا شفيق الله صاحب څه نه درلودل.

# زموږ او د اعلیحضرت امان الله خان له اړیکونه د فرنګیانو خبرېدل

په وزیرستان، ړوب، کندر او ګوملـه کښې مـوږ مشـرانو دا هڅه کوله، چې فرنګیان زموږ د جهادي فعالیت څخه احوال تر لاسه نه کړي. د اشکي په جرګه کښې مشرانو هم دا پرېکړه او فیصله کړې وه. ولې زموږ د مجاهدو پرګنو د جهاد مینه او ځوږ کله پټ پاتې کېدی شو. د فرنګیانو جاسوسي دستګاه او اداره ډېره فعاله وه. فرنګیانو ته پته ولګېده چې زموږ د مشرانو په تحریک او مشرۍ باندې د کندر، وزیرستان، ګوملې او ړوب اولس د جهاد له پاره تیاری نیسي او موږ د قومونو او قبیلو مشران، خانان، ملایان او ملکان د کابل سره اړیکې لرو.

فرنګیان د خپلو یو شمېر جاسوسانو په ذریعه چې زموږ په اولس کښې یې روزلي وو. زموږ د اشکي د غونډې او د هغې جرګې له فیصلو څخه هم خبر شوي وو.

زه دا نه وایم چې د اشکي په غونډه کښې کوم ګډون کوونکی د فرنګیانو جاسوس و. د هغې جرګې ټول ګډون کوونکي سپېڅلي مجاهد مشران، خانان، ملکان او ملایان وو. هغوی د فرنګیانو په وړاندې د جهاد په مورچه کښې په ځان او مال باندې ولاړ ننګیالي او مېړني مشران وو.

فرنګیانو دا هڅه او تلاښ کاوه چې د قومونو او قبیلو د مشرانو په مینځ کښې د خپلو جاسوسانو په لاس اختلاف او بې اتفاقي راولي او د فرنګیانو دښمن قومونه په خپلو مینځونو کښې په جنګ او جګړه بوخت کړي. ناولي دښمن کوښښ وکړ، چې د وزیرو او مسودو، د مریانیو او سلېمانخېلو قومونو او

قبیلو په مینځ کښې د خپلمنځي جګړو د اور لمبې پورته کړي. د یوه قوم او قبیلې مشران د خپلو جاسوسانو په لاس په پټه او ښکاره وژني او بیا یې سبا په بل قوم او قبیله پورې وتپي.

د فرنګیانو د شوم او ناولي نیت او پلان څخه موږ مشران هم خبر شوي وو. موږ د دښمن په ملېشا کښې ډېر ننګیالي پښتانه درلودل، چې د زړه هر څه یې د خپل قوم د مشرانو سره شریک وو او د فرنګیانو څخه یې یوازې د تنخواه پرېکړه کوله. عصمت الله مېجر صوبدار، پت خان مېجر صوبدار، ترین خان جمعدار په وزیرستان کښې مشوخان مېجر صوبدار او اجمیر خان مېجر صوبدار د اخترمحمد خان مندوخېل زوی په ژوب کښې موږ د قوم مشران د فرنګیانو د ټولو پلانونو او نقشو څخه اګاه کولو. او د فرنګیانو د هر حرکت احوال به یې موږ ته رالېږه.

فرنګیانو ته زموږ د اړیکو په ښکاره کېدو سره. زموږ په تګ او راتګ باندې لږ څه بندیز ولګېدی. که څه دا بندیز عام او رسمي نه و. ولې موږ احساسوله چې څه پلان او نقشه لري. نو موږ هم په خپل تګ او راتګ او د جرګو په جوړېدو کښې څه کمې راوست. او ددې نه وېرېدو چې د فرنګیانو جاسوسان کومه ناخاپي فتنه پیل نه کړي. او بیا به جهاد پاتې وي په فتنه کښې به را ښکېل یو.

## زموږ سیمو ته د فرنګیانو د بې شمېره پوځونو سوقیات

له ډېرې اوږدې زمانې څخه فرنګیانو په وزیرستان، ژوب او کندر کښې پوځي چوڼۍ او مرکزونه ودان کړي وو. سرکونه

يې غزولي وو. د غرونو هسکو څوکو ته يې لارې ايستلې وې. او زموږ د ښکېلولو له پاره يې د پخوا نه تلاښونه او کوښښونه جاري کړي وو. ولې موږ غرني افغان ولس ته چې له هر څه نه خپلې ازادۍ او خپلواکۍ زيات ارزښت درلود او د هغې د ساتلو له پاره مو ځان او مال په مخکې ايښودلی و. د فرنګيانو د زور او طاقت چلولو ته مو سر ټيټ نه کړ. او فرنګيانو ته مو د جنګ او جګړې د ډګر له لارې دا معلومه کړې وه، چې موږ ازاد او خپلواک ولس يو او نه د امير عبدالرحمن خان او فرنګي ډيورند په تړون او لاس ليک باندې پابند يو.

کله چې اعليحضرت امان الله خان د ۱۲۹۷ کال د حوت په مياشت کښې د فرنګيانو څخه د افغانستان د ازادۍ او خپلواکۍ نيت او اراده روښانه کړه. او د افغانستان حکومت نېغ په نېغه د حاجي صاحب ملا عبدالرزاق خان اندړ په ذريعه زموږ د سيمو د مشرانو، ملايانو، خانانو او ملکانو سره د عمومي جهاد په اړه ارتباط او اړيکې ټينګې کړې. نو کله چې فرنګيانو ته د خپلو جاسوسانو له لارې معلومات په لاس ورغی. هم هغه و چې په کندر، وزيرستان او ږوب کښې يې د خپلو پوځي مرکزونو د تقويې او ټينګولو له پاره د هندوستان او بنګال څخه د فرنګي او ګورکه لښکرې زموږ سيمو ته سوق او اداره کړې. لوی لوی توپونه او ماشين ګنې يې زموږ سيمو ته راوړې. دا وخت فرنګيانو زموږ په سيمو کښې د خپلو موټرو له پاره لارې هم درلودې. قومانده او د پوځونو اداره يې د مخابرې له لارې کېده، او جنګي هوايي جهازونو يې زموږ د سيمو پر کلو باندې الوتنه کوله. خو زموږ پرګنې چې د جهاد اراده يې کړې وه ووېروي.

د فرنګيانو درست پوځيان ځوانان او په ځان غښتلي ښکارېدل. نيپالي او هندي ګورکه ځخه يې هغه په ځان غټ پوځيان راټول کړي وو. او د پوځونو قومانده او اداره يې د هغو جرنيلانو او کرنيلانو په لاس ورکړې وه چې د جنګ عظيم د سوبې افتخار يې ګټلی و او په جګړه کښې پوره ازمايل شوي وو. جرنيل اودت فرنګي د ټولو پوځونو اعلی قوماندان و. زموږ د سيمو د جنګي محاذ شاته په ډېره غازي خان، ډېره اسماعيل خان، بنو، کوهاټ او بولان کښې هم فرنګيانو خپل زيات شمېر پوځيان ځای پر ځای کړي وو. د فرنګي او ګورکه پوځونو نه برسېره دښمن زموږ په سيمو کښې د مليشا پوځ درلود. فرنګيانو په پوځي چونيو او مرکزونو کښې بېل او ځانله جنګي قوماندانان غوره کړي وو؛ په کندر، ږوب، ګوملې او وزيرستان کښې فرنګيانو تر پنځه پنځوس زياتې چونۍ او مرکزونه درلودل. چې په هره چونۍ او مرکز کښې په متفاوت شمېر سره فرځونه پراته وو. داسې چونۍ او مرکز هم و چې تر پنځه زرو نه يې زيات پوځيان پکې راغونډ کړي وو. او په اټکل سره چې د بنو، کوهاټ، بولان، ډېره غازي خان او ډېره اسماعيل خان د پوځيانو په حساب فرنګيانو په دې محاذ کښې درې لکه پوځيان مېشته کړي وو.

فرنګيانو د خپلو درې لکه پوځيانو په څنګ کښې زموږ د جهادي ارادې د ماتولو له پاره خپل جاسوسان هم ګمارلي وو، چې په اولس کښې شوم او ناولی تبليغ وکړي. او د جهاد په مورچل کښې د اولس اتحاد او پيوستون مات کړي. د دښمن د بې شمېره پوځونو، زياتو جنګي وسايلو او ګمارل شوو جاسوسانو سره؛ زموږ د اولس په جهادي نيت کښې د يوه

وښتـه پـه خېر بدلـون رانغـی او نـه پـه درسـت وطـن کـښې کـــوم کـس را پیـدا شـو چـې د فرنګیـانو پـه خـوا کـښې ودرېږي. زمـوږ د اولس پــه اراده کـښې بـه ولـې بدلـون راتـه. مـوږ خـو د ځانونـو او مالونو د قربانۍ لـه پـاره د جـهاد او وطـن پـه لیـاره کـې څښتـن تـه لاسـونه اوچـت کـړي وو. او هغـه ګیـنـتـې را رسـبدلې وې. د فرنګیـانو هغـه درې لکـه پوځیـان، درانـده تـوپونـه او ماشـین ګنې، الوتکـې او پـه جنـګ عظیـم کـښې ازمویـل شـوي کرنیـلان او جرنیـلان مـوږ مجـاهدینو او غازیـانو تـه د یـوې وړې مرغـۍ ښکـار هم نه ښکـارېده.

# ګردېز ته زموږ د خلکو جرګه

د وانه د اشـکي پـه غونـډه کـښې مـوږ د وزیرسـتان، روب، ګوملـې او کنـدر د سیمو خانـانو، ملکـانو، ملایـانو او مشـرانو دا پـه اتفـاق سـره فیصلـه او پرېکـړه کـړې وه، چـې زمـوږ د سـیمو مجـاهدین او غازیـان د خپلواکـۍ او فـي سـبیل الله جـهاد پـه لار کښې د کابل د حکومـت مـالي او ځانـي امـداد تـه اړتیـا نـه لـري. پـه دې چـې مـوږ پـوره ټوپکـې او کـارتوس درلـوده. داسـې کـس نـه مونـدل کـېده چـې پـه کـور کـښې یـې یـو او دوه جـاغوري ټوپک نـه وي. دا هغـه ټوپکـې او کـارتوس وو چـې مـوږ د فرنګیـانو د قافلو د لوټلو او پـه پـوځـي مرکزونـو بـاندې د بریدونـو پـه نتیجـه کـښې تـر لاسـه کـړي وو. زمـوږ د سـیمو هـر وګړی د جنـګ او جـګړې پـه چـاره ښه پوهـېده. د وطـن لـوړه او ژوره ښه ورتـه معلومـه وه. او دا هـم ورتـه پته وه، چـې ددښمـن پـه وړانـدې د کومې تیرې او په کوم لاښ او کمـر کـښې ورتـه مـورچـل ونیسـي.

د اشکي په غونډه کښې مو دا هم سپينه کړې وه چې زموږ د سيمو د سرو څخه بهر کسانو ته دا اجازت نشته دی چې زموږ په جهادي چارو کښې لاسوهنه او مداخله وکړي. ځکه چې بهر او بېګانه سړي زموږ په دود او رواج باندې نه پوهېږي، په ولس کښې اشنايي او پېژندګلوي نه لري يوه کندهاري او کابلي پښتون ته دا ډېره ګرانه وه چې د وزيرو، مسودو، کاکړو او يا د وړو په لهجه دې وپوهېږي او پارسي ويونکو ته دا د غره چپه کول وو.

د اشکي په غونډه کښې زموږ دا فيصله او پرېکړه په دې معنی نه وه چې ګواکي موږ د اعليحضرت امان الله خان جهادي قوماندې ته غاړه نه ږدو. د هغې پرېکړې څخه زموږ هدف او مقصد دا و چې زموږ په جهادي چارو کښې وراني او ګډوډي رانه شي. او بيا به فرنګيان بريالي شي.

هغه وخت چې د ۱۲۹۸ کال د ثور په مياشت کښې د اعليحضرت امان الله خان له لوري سپاه سالار محمد نادر خان د خپل مل پوځيانو او ملګرو سره د ګرديز پوځي چوڼۍ ته راورسېد. نو سمدستي د وزيرستان څخه د يو شمېر مشرانو جرګه د ګرديز په لور وخوځېده. او هلته يې له محمد نادر خان سره د اشکي د جرګې د پرېکړو په برخه کښې خبرې وکړې. د محمد نادر خان او د هغه د مل ملګرو يې ورباندې قناعت حاصل کړ. په ګردېز کښې محمد نادر خان د وزيرستان د مشرانو او ملکانو سره دا ومنله چې د افغانستان د حکومت يو فرد به هم د ږوب، ګوملې، کندر او وزيرستان د ولس په جهادي چارو کښې لاسوهنه نه کوي. او د ضرورت په وخت کښې به دواړه پلوه سره مرسته او مدد کوي.

د ۱۲۹۸ کال هم هغه د ثور میاشت وه چې د وزیرستان د مشرانو جرګه چې انګور خان، امیر شاه خان قریش، عبدالله جان خان، سلیم خان، شېر محمد خان، قطب خان، دند خان او مشرف خان پکښې وو، د ګردېز ښخه په ځټ راغله او په هغه څه چې د دوی او د محمد نادر خان، صاحب زاده صاحب موسهی لوګر او نور المشایخ سره موافقې ته رسېدلي وو د ټولو مشرانو غوږو ته ورسوله.

## د سپاه سالار د ورور شاه ولي خان له ګردېز نه اورګون ته راتګ

د ګردېز نه زموږ سړو پوره د مه او هوساینه نه وه کړې، چې احوال مو تر ګوتو کړ چې د سپاه سالار محمد نادر خان کشر ورور سردار شاه ولي خان د یو شمېر کابلي پوځیانو سره د اورګون عسکري چوڼۍ ته راغلی دی. او د اورګون ښخه غواړي چې د کندر، ګوملې، ږوب او وزیرستان د ولس جهادي چارې تر خپلې قوماندې لاندې اداره او نظارت کړي. د همدې احوال په ترلاسه کولو سره بې له ځنډه ملاصاحب همزالله اخند د وزیرستان د ولس د مشرانو ښخه جرګه جوړه کړه. دا وخت لوی مجاهد د فرنګیانو سر سخت دښمن ملا همزالله اخند څه کم سل کلن و. د سترګو دید یې هم کمزوری شوی و. ولې په مېړانه او غیرت د جهاد او مجاهدت په چارو کښې تر سلو تنکیو ځوانانو غښتلی و. شپه او ورځ د خانانو، ملکانو ملایانو او مشرانو د یووالي او پیوستون په کار

بوخت و. ملا صاحب همزالله اخند د هرکس په زړه کښې ځانګړی ځای درلود او ټولو ورته د ابا لقب ورکړی و. په رښتیا چې ملا صاحب د ټول ولس ابا او بابا و.

ځکه چې وخت لنډ و د ټولو سیمو د مشرانو غونډه نه شوه جوړېدای نو ملا صاحب په خپل انتخاب سره اورګون ته بیا د هغو مشرانو جرګه ولېږله چې ګردېز ته هم تللي وو او هلته یې د محمد نادر خان او نورو مشرانو په حضور کښې د شاه ولي خان سره معرفت حاصل شوی و.

اورګون ته د وزیرستان د مشرانو د جرګې غړو د اورګون په پوځي چونۍ کښې د سردار شاولي خان سره خپله لیدنه وکړه. هغه لره یې د وانه د اشکي د غونډې پرېکړې چې مونږ د کندر، ړوب، ګومل او وزیرستان مشرانو کړې وې د ګردېز په خبر ورته بیان کړې او هم یې په ګردېز کښې د محمد نادرخان لخوا ژمنه ورته په زړه کړه. زمونږ د جرګې سرو سردار صاحب ته دا هم په ګوته کړې وه چې په کندر، وزیرستان، ړوب او ګومله کښې د فرنګیانو او ګورکه پوځیانو نه د چونۍ او مرکزونو نیول زمونږ د ولس په ذمه دي. ځکه هغه لارې چې د فرنګیانو چونیو او مرکزونو ته ختلې دي. د هغو لیارو په کښتو او پورتو کښې یوازې زمونږ د سیمو مجاهدین مهارت لري ځکه چې هم دا ننګیالي مجاهدین دي چې په همدې سیمو کښې دنیا ته راغلي دي او هم یې دا شاه ولیخان ته په ګوته کړې وه چې د نیول شوو چونیو او مرکزونو ساتنه به مونږ کابلي پوځ ته سپارو او زمونږ مجاهدین به په وړاندې ځي. تر څو چې فرنګیان د پنجاب او ملتان نه تېر کړي.

زموږ د جرګې مشران د اورګون نه واپس وزیرستان ته راورسېدل. شاه ولیخان هر څه ورسره منلي وو. د جرګې غړو د اورګون څخه د راتګ په وخت کښې د جهاد په اړوند څه اعلانونه هم راوړل. هغه اعلانونه د کلو په مسجدونو کښې په دېوالونو باندې وځړول شول او په ځینو مسجدونو کښې به د ملایانو لخوا د سهار او ماسخوتن د لمنځونو نه وروسته اورول کېدل.

## د فرنګیانو په وړاندې د جګړې محاذونه

کله چې محمد نادر خان د کابل نه د یو څو تنو غونډ مشرانو، کندکمشرانو، مشایخو او یو شمېر پوځیانو سره د ګردېز پوځي کلا ته راورسېد نو هلته د جنوبي محاذ د جګړې په نقشه بوخت شو. د جنوبي ولس د خانانو، ملکانو او مشرانو سره یې ملاقاتونه پیل کړل. د وزیرستان نه هم د قوم د مشرانو جرګه ګردېز ته ولاړه او هم بېرته په مناسب وخت کښې د وزیرستان د ولس جرګه راستنه شوه.

سپاه سالار محمد نادر خان چې د اعلیحضرت امان الله خان له لوري د جنوبي محاذ اعلی قوماندان ټاکل شوی و نویې د فرنګیانو د بې شمېره پوځیانو او جنګي وسایلو په وړاندې او هم په افغانستان باندې د فرنګیانو د تېري او پېش قدمی دمخنیوي له پاره د جنوبي په سمت کښې د افغانستان د حکومت محدود شمېر پوځیان او د جنوبي ولس د قومونو جنګیالي په دریو جبهو باندې ووېشل. د ګردېز نه د خوست جبهې ته په خپله محمد نادر خان او څه ورسره پوځیان

راروان شول. او هم یې خوست خپل مرکز وټاکه، د ځاځیو جبهې ته یې خپل ورو سردار شاه محمود خان ولېږه چې هلته دځاځیو او نورو قومونو د مجاهدینو قومانده په لاس کښې ولري او بل کشر ورور سردار شاه ولیخان یې د اورګون نظامي کلا ته راولېږه څو د اورګون د نظامي کلا نه د وزیرستان، کندر او ږوب د ننګیالیو مجاهدینو د جهاد څارنه وکړي. د سردار شاه ولي خان سره د اورګون په کلا کښې یو کندک پوځیان هم نه وو او نه یې دومره وسایل په لاس کښې درلودل، چې د هغو په ذریعه د فرنګیانو د پوځونو سره مقابله وکړي.

محمد نادر خان د خوست، ځاځیو او اورګون درې د جګړې جبهې په جنوبي کښې په افغانستان باندې د فرنګیانو د تېري او پېش قدمۍ د مخنیوي له پاره ټاکلې وې. ځکه چې د فرنګیانو د جنګي او پوځي طاقت په لیدو سره دا وېره او اندېښنه د محمد نادر خان سره وه، چې د جنګ په پیل سره دې فرنګیان د افغانستان خاورې ته ننوځي لکه څنګه چې په مشرقي او کندهار کښې فرنګیان د خپلو پوځونو سره د افغانستان خاورې ته ننوتل. ځکه نو سپاه سالار محمد نادر خان د خپل اټکل سره د جنوبي په سمت کښې دغه درې جبهې چې خپله محمد نادر خان او ورونه یې قوماندانان وو د فرنګیانو د تېري او پېش قدمۍ له پاره پرانستلې وې. نه پر فرنګیانو باندې د تېري او تجاوز له پاره. فرنګیانو هم دا اټکل کړی و چې د کابل د حکومت پوځونه دا شیمه په ځان کښې نه لري چې د "ډیورند- عبدالرحمن" د پولې نه یو قدم اوچت کړي. او لکه چې د فرنګیانو سره د جګړې په پیل کښې څرګنده شوه، تر هغه چې زمونږ د سیمو غازیانو او مجاهدینو د

فرنګي او ګورکه پوځونه نه وو کوتلي، د سپاه سالار صاحب درې واړو جبهو ځانته حرکت هم ورنه کړ.

## د فرنګيانو په وړاندې زموږ مشرانو د جګړې نقشه

د اشکي په غونډه کښې چې د روب، کندر، ګوملي او وزيرستان د قومونو د مشرانو يو شمېر استاځو ګډون کړی و. په هغه غونډه کښې موږ دا پرېکړه او فيصله وکړه، چې هر کس دې په خپله سيمه کښې د فرنګي او ګورکه پوځونو په وړاندې جهاد کوي او د زيات ضرورت په وخت کښې دې نږدې سيمو ته خپله مرسته د مال او سرو سره ورکوي او دا مرسته دې هغه وخت وي چې د مرستې ورکوونکي سيمې مجاهدين د فرنګيانو په وړاندې د جهاد په مورچل کښې سوبمن وي او يا يې سوبه په برخه شوې وي.

د وانه د اشکي په غونډه کښې موږ مشرانو په فرنګي او ګور که پوځونو باندې د تېري او بريد له پاره د فرنګيانو تر ولکې لاندې سيمه او هغې سيمې ته د فرنګيانو نږدې چوڼۍ او پوځي مرکزونه په څلورو جهادي محاذونو باندې ووېشل او په غونډه کښې هر استاځي دا ژمنه او په قرآن دا لوړه وکړه چې د ځان او خپل قوم او قبيلې په ځان او مال به په خپل محاذ کښې د مرګتر شېبې د فرنګيانو په وړاندې جهاد کوي او موږ قومي مشرانو د خپلواکۍ په جګړه کښې د فرنګيانو په وړاندې خپل جهادي محاذونه په دې توګه سره وېشلي وو:

۱ - د وزيرستان محاذ: د وزيرو او مسودو د ننګياليو قومونو او قبيلو مېړنيو مشرانو دا په غاړه واخيستل چې د دوی بهادر

مجاهدین به د وزیرستان په ټوله سیمه کښې د فرنګي او ګورکه پوځیانو پر چونیو، مرکزونو او کاروانو باندې بریدونه کوي او تر هغه به د فرنګیانو په وړاندې جهاد او مجاهده کوي چې د نورو درو محاذونو مجاهدینو د فرنګیانو په وړاندې بری نه وي حاصل کړی.

۲ - د ږوب محاذ: د جهاد په دې محاذ کښې دې د کاکړو او مندوخېلو ننګيالي د فرنګي پر پوځونو برید وکړي. د فرنګي او ګورکه پر ټولو چونیو او مرکزونو باندې دې د مجاهدینو د وړو وړو ټولګیو په لیږلو سره برید وکړي. او مجاهدین دې دا بریدونه تر هغه کوي څو فرنګیان مات او تښتېدلي نه وي.

۳ - د کندر محاذ: په دې محاذ کښې دې د مریاني سلېمانخېل او کوچي قومونو او قبیلو ننګیالي د فرنګي او ګورکه پوځونو پر چونیو او مرکزونو خپل بریدونه وکړي.

۴ - د ګوملې محاذ: د خروټو او سلېمانخېلو د قومونو ننګیالي دې په ګډه سره د ګوملې په محاذ کښې د فرنګیانو په وړاندې د جهاد ډګر ته ور ووځي او د هر قوم او هرې قبیلې مشر دې د خپل ولس قوماندان وي، غنیمت دې د قوم د جنګي سړو په سرباندې ووېشل شي.

## د افغانستان د مشرقي محاذ د ماتې خبر

د فرنګي او ګورکه پوځونه په بلوچستان، پېښور او وزیرستان کښې د امیر دوست محمد خان د وخت نه مېشته وو.

بلوچستان کندهار ته خرمه ؤ. پېښور چې فرنګیانو په زور سره غصب کړی ؤ د جلال آباد سره په پوله کښې پروت ؤ، وزیرستان چې د عبدالرحمن خان او ډیورنډ په تړون کښې د افغانستان نه فرنګیانو په ولکه کښې راوستلی ؤ په جنوبي پورې نښتی ؤ او هغه وخت چې اعلیحضرت امان الله خان د خپلواکۍ او جهاد اعلان د فرنګیانو په وړاندې وکړ نو یې د هغه سره جوخت د فرنګیانو د مقابلې له پاره د جګړې درې محاذونه وټاکل. د جنوبي محاذ ته یې سردار محمد نادر خان د قوماندان په توګه راولېږه او هغه درست جنوبي په دریو جنګي جبهو باندې تقسیم کړ. اعلیحضرت امان الله خان د کندهار محاذ ته سردار عبدالقدوس خان اعتمادي د اعلی قوماندان په نوم ولېږه او د مشرقي محاذ ته یې صالح محمد خان د حکومتي پوځیانو او ولسي لښکرو د لیکو د انتظام له پاره واستاوه.

د افغانستان د هغو دریو محاذونو سره په ګاونډ کښې فرنګیانو خپل په زرونو پوځیان مېشته کړي وو. د هغوی د امن او حفاظت له پاره یې ټینګې او محکمې چونۍ او تانې ابادې او تعمیر کړې وې. ټولو پوځي مرکزونو ته یې لارې او سړکونه غځولي وو. د چونیو او پوځي مرکزونو تر مینځ یې د مخابرو په ذریعه اړیکې او ارتباطات ټینګ کړي وو. د موټرونو او اورګاډو څخه په استفاده یې اوږدې اوږدې لارې رالنډې کړي وې او هم یې لوړې او ژوې د خپلو پوځیانو د تګ او راتګ له پاره هوارې کړې وې.

د اعلیحضرت امـان الله خـان لـه لـوري د فرنګیـانو پـه وړانـدې د جـهاد د اعـلان پـه وخـت کـښې د افغانسـتان حکومـت او ملـت څه نه درلـودل. نـو ځکـه د اعلیحضـرت امـان الله خـان لـه لـوري د فرنګیـانو پـه وړانـدې د خپلواکـۍ او جـهاد اعـلان د هغـه د ایمان او افغاني غـیرت یـوه نښانـه وه. هغـه د خپلواکـۍ د تـر لاسـه کولو لـه پاره پـه څښتـن تعـالی توکـل کـړی و او د خپـل ولـس پـه افغاني غیرت او مېړانـه یـې پـوره بـاور او یقـین حـاصل و. نـو ځکـه یې جهاد اعلان کړ او پـه هغـه کـس کـښې چـې د ایمـان او افغـاني غـیرت نخـښه نـه وي د هغـه عقـل هېڅکلـه هـم دومـره درانـده بارته اوړه نـه ورکـوي.

هغـه وخـت چـې اعلیحضـرت امـان الله خـان د خپلواکـۍ او جـهاد اعـلان د فرنګیـانو پـه وړانـدې وکـړ د جنوبـي سـمت د مجـاذ لارې لـوړې او ژورې وې، هسـک او دنـګ غرونـه پـه مخکـښې وو، سړکونه هـم نـه وو غـځېدلي نـو د هغـو لـوړو او ژورو او هم د هسـکو او دنګو غرونـو څخـه تـېرېدل افغـاني پوځیـانو تـه ګران وو او زیـات وخـت پـرې تـېرېدو چـې د ضـرورت پـه وخـت کـښې د کـابل او یـا نـورو سیمو څخـه د جنوبـي محـاذ تـه مرسـته ورسـېږي. د کندهـار محـاذ هـم دا ربـړې او مشـکلات درلـودل هغـه لیـاره کـه څه هـم هـواره وه ولـې اوږده وه. پـه یـوه اوونـۍ کـښې هـم نـاممکن وو چـې د هغـه محـاذ اخبـار دې اعلیحضـرت امـان الله خـان تـه ورسـېږي. ولـې د کندهـار او پکتیـا د دوو محـاذونو پـه خـلاف د مشـرقي محـاذ د جـهاد او خپلواکـۍ لویـې قوماندانۍ ته پـه نـژدې واټن کـښې پـروت و د هغـه محـاذ اولسـونه هـم ننګیـالي او غرونـه یـې پـه ګـڼو ځنګلونـو بـاندې پټ وو. د فرنګیـانو د راوړانـدې کېدو پـه مخکـښې د خیـبر اوږده دره پرتـه

وه او د بل پلو څخه اعلیحضرت امان الله خان د هغه محاذ د جهادي چارو د اداري او د فرنګیانو سره د مقابلې له پاره خپل اعتمادي د جنګ وزیر صالح محمد خان د محاذ اعلی قوماندان ټاکلی و.

مور د قومونو مشران په دې یقین او باور وو چې د فرنګي او ګورکه فوځونو ماتې او شکست به د مشرقي له محاذ څخه پیل کېږي او د هغه محاذ د قوماندان صالح محمد خان د مېړانې په برکت به وي چې زمور مجاهدین به په خپل محاذ کښې د دښمن په وړاندې بریالیتوبونه تر لاسه کوي. مور د قومونو مشران، خانان، ملایان، او ملکان د وزیرستان، رږوب، کندر او ګوملې په محاذاتو کښې دخپلو مجاهدینو په تیاري او دندو وېشلو باندې بوخت وو، چې د مشرقي محاذ د ماتې او د فرنګیانو څخه د صالح محمد خان وزیر جنګ او محمد ګل خان مومند د تر شا کېدو خبر مو تر غوږ شو.

د مشرقي په محاذ کښې د افغاني پوځیانو د ماتې او تر شا کېدو اوازه زمور د سیمو مشرانو او ننګیالیو مجاهدینو ته یوه غمګینه اوازه او خبر و. او په دې مو باور او یقین نه راته، چې په مشرقي کښې به فرنګیانو وړاندې والی کړی وي ځکه چې هغه محاذ مور تر نورو دوو محاذونو نه محکم او ټینګ محاذ ګڼلی و او ډېر مجاهد علما هلته د جهاد په تبلیغ او دعوت بوخت وو. په هغه ګڼتو او شېبو کښې مور هر یوه دافکر او خیال وکړ، چې شاید فرنګیانو زمور د سیمو د مشرانو او مجاهدینو د جهادي عزم او ارادې د سستولو له پاره چل جوړ کړی وي ځکه چې فرنګیانو زمور سره په تېرو جنګونو کښې دا راز اوازې په ځو ځله اچولې وې. بیا هم څنګه چې د

فرنګیانو سره په جنګونو کښې مور راستر شوي وو د هغوی هره مکاري او فریب په ښه توګه راته معلوم وو. نو دا مو غوره او د خپلواکۍ ګټه وګڼله، چې بیله ځنډ او خنډ رامخکښې کیدو نه د فرنګیانو په وړاند ژر تر ژره په کندر، ګوملې، وزیرستان او ږوب کښې خپل جهاد پیل کړو او هغه څه چې په مشرقي کښې رامخکښې شوي دي هغه زمور په سیمو کښې رامخکښې نشي.

## ملا همزالله اخند د جهاد قوماندې صادره کړه

د اشکي په غونډه کښې چې د وزیرستان، ږوب، کندر او ګوملې د قومونو او قبیلو کومو مشرانو او ملایانو ګډون کړی و ټولو په اتفاق او یوه اواز سره دا پریکړه کړې وه، چې سپین ږیري او بوډا مجاهد ملا همزالله اخند دې د ټولو جنګي محاذونو د جهاد اعلی قوماندان وي او د فرنګیانو په وړاندې د ملا همزالله اخند جهادي قوماندې دې ټولو مشرانو، خانانو، ملکانو او علماو ته د منلو او اجرا وړ وي. مور د اشکي په غونډه کښې د ملا همزالله اخند د جهادي قوماندې د پیغام رسولو له پاره د وزیرو او مسودو د ننګیالیو قومونو نه څه سړي وټاکل او دوی په هم هغه وخت کښې هر وخت د ملا همزالله اخند تر څنګ تیار او اماده ناست وو، چې د ملا همزالله اخند له لوري نه دجهاد د قوماندې په صادریدو سره، قوماندې د کندر، ږوب، ګوملې او وزیرستان د قومونو اوقبیلو مشرانو ته بیله ځنډ او خنډ نه ورسوي. لوی مجاهد غازي ملا همزالله

اخند چې د خپل ژوند زياته برخه يې د فرنګيانو سره په جهاد او مجاهده کښې تېره کړې وه او د فرنګيانو په وړاندې د جهاد او مجاهدې نازک او خطرناک حالات ورته ځرګند او معلوم وو او هغه وخت چې يې د سپاه سالار صالح محمد خان او محمد ګل خان مومند د ماتې اوازه تر غوږو ورسېده او بيا يې په اورېدلي خبر باندې يقين حاصل شو، چې په مشرقي کښې افغاني پوځيانو ماتې خوړلې ده او فرنګي پوځونه ډکې ته ننوتلي دي نو د جهاد د نازکو او خطرناکو مرحلو څخه اګاه قهرمان ملا همزالله اخند د وزيرستان، ږوب، ګوملې او کندر د مجاهدينو د وينو د راخوټېدو له پاره بېله کومې معطلۍ څخه د جهاد قومانده د قومونو او قبيلو مشرانو ته صادره کړه او دا هغه ګنټې دي چې په خوست، ځاځيو او اورګون کښې سپاه سالار محمد نادرخان، سردارشاه محمود خان او سردار شاه ولي خان د راتلونکو پېښو او واقعاتو په انتظار باندې ناست وو او په مشرقي کښې د افغاني پوځيانو ماتې او د فرنګيانو بري په وېره او اندېښنه کښې اچولي وو او که چېرې د ګوملې، ږوب، کندر او وزيرستان د ننګياليو مجاهدينو مېړانه نه وای، نادر خان، شاه محمود خان او شاه ولي خان به هم د صالح محمد خان په څېر نوم تر لاسه کړی وای.

د اشکي په غونډه کښې په ګوته شوو د وزيرو او مسودو د قومونو سرو د ملا همزالله اخند د جهاد قومانده د دوو ورځو په اوږدو کښې د کندر، وزيرستان، ږوب او ګوملې ټولو مشرانو، خانانو، ملکانو او ملايانو ته ورسوله او هم هغه و چې يو په بل

پسې د فرنګي او ګورکه پوځونو په چونیو، مرکزونو او قافلو باندې زموږ د مجاهدینو بریدونه او شبخونو نه پیل شول.

## د ملا همزالله اخند د قوماندې سره جوخت په فرنګي پوځونو برید

۱) د وزیرستان په محاذ کښې:

په وزیرستان کښې د وزیرو او مسودو ننګیالي قومونه مېشته دي په همدې محاذ کښې د فرنګیانو په وړاندې د جهاد او مجاهدې دنده د وزیرو او مسودو د قومونو او قبیلو مېړنو مشرانو په غاړه باندې اخیستې وه. د هر قوم او قبیلې مشر او سرو یې دا ژمنه کړې وه، چې د جهاد په پیل سره به د فرنګي او ګورکه پوځونه د وزیرو او مسودو له خاورې نه د بنګال او هندوستان په لور شړي.

هغه وخت چې ملا صاحب همزالله اخند د فرنګیانو په وړاندې د جهاد قومانده د ړوب، کندر، وزیرستان او ګوملې مشرانو ته ولېږله، دا د ۱۲۹۸ کال د ثور د میاشتې اخري ورځې وې، زموږ استول شوي سړي د اورګون ځخه هم زاغلي وو، په مشرقي کښې د صالح محمد خان او محمد ګل خان ماتې زموږ د سیمو په ولسونو کښې وینې په خوټېدو راوستلې وې او د فرنګي او ګورکه پوځونو په وړاندې د جهاد او مجاهدې مورچل ته د دانګلو په ارمان بې صبره او تلولي وو.

د فرنګي او ګورکه پوځونو په وړاندې زموږ د ولسونو د وینو خوټېده او د جهاد مورچل ته د دانګلو بې صبري وه،

چې زمونږ د سیمو د څلورو محاذونو د جهادي قاید لوی مجاهد او بوډا ملا همزالله اخند له لوري نه د قوماندې په صادرېدو سره جوخت د احمدزي وزیرو د قوم ننګیالیو ځوانانو او قهرمانو مجاهدینو د خپلو مشرانو (ملا همزالله اخند، عبدالله جان، اختي جان خان، انګور خان، شېرمحمد خان، عصمت خان، قاضي صاحب او سلیم خان)تر هدایت او جهادي لارښودنې لاندې د ثور د میاشتې په ۲۴مه نېټه د سروکي پر پوځي چوڼۍ باندې ناڅاپي برید وکړ او د سروکي د چوڼۍ د برید سره جوخت د وزیرو او مسودو د قومونو ټولو ننګیالیو او په پت مینو او د مجاهدینو هغو قهرمانانو چې د نورو پوځي چوڼیو د برید له پاره ګومارل شوي وو خپل بریدونه په هغو ټاکلو چوڼیو باندې په ډېره مېړانه او شجاعت سره پیل کړل. په وانه کښې د پرنګیانو په پوځي مرکز باندې هم د احمدزي وزیرو د سرتېرو برید اغاز شو او د پرنګیانو او ګورکه پوځونو دا ستر پوځي مرکز هم د مجاهدینو تر محاصرې لاندې راغی او د هغه فتحه د ۱۲۹۸ کال د جوزا د میاشتې په ۲ مه نېټه د غازیانو په لاس وشوه. د وانه د پوځي مرکز د سوبې سره په هم دې حدوداتو کښې د احمدزي وزیرو مجاهدینو د خپلو غازي مشرانو تر نېغې قوماندې لاندې یو په بل پسې کجیره، نیلي، سپینکی کڅ، تنایي او د توی چوڼۍ د فرنګي او ګورکه ځناورو څخه ونیولې.

مونږ د قومونو او قبیلو مشرانو چې لوړه او پرېکړه کړې وه چې د جهاد د قوماندې په صادرېدو سره باید د ټولو قومونو اوقبیلو جنګیالي مجاهدین بېله ځنډه او درنګ نه په یوه وخت کښې هر قوم هره قبیله په خپله سیمه کښې د فرنګیانو په

چونیو او مرکزونو باندې برید وکړي نو د هم هغه افغاني او پښتني لوړې او پرېکړې سره سم د مسودو د بهادر قوم ننګیالیو مجاهدینو د خپلو قهرمانو مشرانو (عبدلي موسی خان، قطب خان، ملا فضل الدین اخند، قاضي صاحب امیر شاه خان، ... او موسی) تر قوماندې او هدایت لاندې په رزمک، سیفلي توی، سپاره راغه، ډبره او نجي چونۍ باندې خپل بې امانه بریدونه پیل کړل او د مسودو د بهادر او تورزن قوم جنګیالیو د خپلې سیمې او علاقې د فرنګي او ګورکه پوځونو ټولې چونۍ او مرکزونه په ډېر لږ وخت کښې د فرنګیانو له لاس نه ازاد او خپلواک کړل او د هغه سره جوخت د توچي د بندر په سیمه کښې د ملاخېل وزیرو د قوم غیرتمنو مجاهدینو او غازیانو د خپلو مېړنو مشرانو (ملک دند خان، عبدالله خان او زنګي خان) په قومانده او مشرۍ د مېرانشاه او تته خېلو چونۍ د فرنګي پوځونو څخه په پوره مېړانه او غیرت سره فتح کړې.

په هنګو او مېرانشاه کښې مجاهدینو د فرنګیانو او ګورکه پوځونه تر خپلې محاصرې لاندې راوستل او هلته مجاهدینو ددې انتظار ایسته چې پښتانه ملېشا د فرنګي پوځ څخه ځانونه په سلامت رابېل کړي او بیا به په هنګو او مېرانشاه باندې د الله اکبر په یوه چیغه او ناره سره برید او حمله کوي، د هنګو او مېرانشاه محاصره لږ شانته اوږده شوه او هغه په دې چې پښتنو او مسلمانو ملېشاو د فرنګي د پوځونو له مینځ څخه خپله د فرار لیاره نه شوه موندلی هلته د پښتنو ملېشاه قایدین مېجر صوبدار پت خان او جمعدار ترین خان وو، دا دوه ننګیالي هر کس په مېړانه او پښتونولۍ سره پېژندل او د مجاهدینو ورسره ټینګې اړیکې وې نو ځکه مجاهدین په دې انتظار وو چې دا

دوه ننګيالي لـه خپلـو سـړو سـره د فرنـګي او ګورکـه پوځونـو ځخـه ځانونـه رابـېل کـړي، د مجـاهدينو د څه انتظـار ايسـتلو نــه پـت خـان او تريـن خـان د خپلـو سـړو سـره د يـوه نغـم پـه کښلـو سـره د فرنـګي لـه پوځونـو څخـه رابـېل شـول او بيـا پـه ډاډ سـره مجـاهدينو د ملېشـا پـه ګډون پـه هنـګو او مېرانشـاه بـانديې خپـل بريدونـه پيـل کـړل او مجـاهدينو پـه ډېره بيـړه سـره د فرنـګي او ګورکه پوځونو دا دوه مرکزونه هـم پـه مېړانـه سـره فتـح کـړل.

د فرنګيـانو پـوځي مرکــز ټل چــې د فرنــګي پوځونــو زيـات قـوت پکښې موجـود و، مجـاهدينو تـر خپلــې محــاصرې لانــدې راوسـتلى و. ننګيـاليو مجـاهدينو د ۱۲۹۸ کـال د جـوزا پــه ۳ نــېټه د فرنګيـانو دا ســتر او قــوي مرکــز چــې د جنوبــي ســمت او د محمـد نـادر خـان تـر قومـاندې لانـدې پوځونـه يـې تـر خطـر او تهديد لانــدې راوسـتلي وو، ونيـو او بيـا پـه زړه سـپېڅلو مجـاهدينو د محمد نادر خـان نـه هيلـه وکـړه چـې د فرنګيـانو دا سـتر نظـامي مرکـز پـه تشريفاتي تـوګه فتـح کـړي او د ټل د سـوبې مراسـم پــر ځاى کړي. محمد نادر خــان چــې تـر هـم هغـه ګنتـو يـې د ټوپـک نه يوه ګولــۍ هـم د فرنګيـانو پـه لـور ويشتلې نـه وه؛ د ټل پـوځي مرکز يې په تشريفاتي توګه د تـوپونـو د ګوليـو پـه اور سره فتـح کـړ او بيا يـې پـه ډېره بـې انصافـۍ او بـې عدالتـۍ سره د ټل فتـح پـه خپل نـوم سـره ونومولـه او پـه خپـل نـوم سره يـې د هغـو ننګيـالو مجـاهدينو نومونـه د يـاد او تـاريخي ثبــت نــه واچــول چــې دا نظـامي مرکـز يـې د خپلـو وينـو پـه برکـت فتـح کـړى و، هـم هغـه وخت موږ د محمـد نـادر خـان نـه هيلـه وکـړه چـې د فرنګيـانو نـه فتـح شـوې هـره چــونۍ او مرکــز دې د مجــاهدينو او غازيــانو د

يـوه يـوه مشر پـه نـوم ونومـول شـــي ولـــې د هغــه دا لوروـنــه د مجاهدينو په مشـرانو ونــه شــوه.

۲) د ګوملې په محاذ کښې:

د فرنـګي او ګورکـه پوځونـو سره د جـهاد پـه هيلـه د ګوملـــې سيمه هم يــو مـهم او اصلــي جنـګي محـاذ و. ځکـه چـې د ګوملـې پـه شـاوخوا کـښې فرنګيـانو لـه ډېر وخـت نـه پـــوځي مرکزونــه او چــونۍ ابـادې کـړې وې او پـه هــم دې مرکزونــو او چونيــو کـــښې يـې زيـات شـمېر پوځيـان مېشـته کـړي وو او هغـــه وخـــت چـــې د سروکي د چـــونۍ پـه بريـد او د وانه پـه محـاصره سـره د احمـدزی وزيرو ننګياليو مجـاهدينو د جـهاد پيـل وکـړ پـه ګوملـه کـښې هـم د خـروټو او سـلېمانخېلو او ځينـو کـوچــي قومونـو او قبيلـو جنګيــاليو د خپلـو مېړنـو او بـهادرو مشـرانو (ملـک فتـــح خـــان ســلېمانخېل، نـواب خـان سـلېمانخيل، شـېر جانخـان خـــروټي او نعمــت خـــان خـروټي) تـــر قومـــاندې او ادارې لانـــدې پـــه فرنـــګي چونيـــو او مرکزونو باندې خپـل بريدونـه اغـاز کـړل.

د سـلېمانخېلو، خـروټو او نـورو کـوچـي قومونـــو مجـــاهدينو او غازيـانو د ګوملـې پـه شـاوخوا سـيمو کـښې د فرنـــګي او ګورکـــه پوځونو ټولـــې چـــونۍ او مرکزونـه ولـو ټل او زيـات شـمېر د فرنـګي او ګورکه پوځيان يــې قتـل او تبـاه کـړل وسـله او مالونـه يـې ترينـه په غنيمــت کـړل پـه دې جنـګو کـښې د مجـاهدنيو څخـه هـم يـو تعـداد ننګيـالي پـه شـهادت ورسـېدل او هـم دا د شـهيدانو د وينـو برکـت او قربـاني وه چـې د ګوملـې مجـــاهدينو فرنګيـــان د ټولـــو پوځي مرکزونـــو او چونيـو څخـه پـه شـا وتمبـول. د اپـوزي ښار پـه جـګړه کـښې چـې هلتـه زيـات شـمېر فرنګيـان او ګورکـه مېشـته وو، د ګوملـې مجـاهدينو ښه سـتره ونـډه درلـوده او هـــم دا د اپـــوزي

جګړه وه چې د خروټو د قوم ننګيالي او غيرتي مشر غازي نعمت خان خروټي په شهادت ورسېد، چې د هغه د اتلولۍ يادونه چې د اپوزي په ښار کښې په ګډه جنګېدو تر همدې شېبو پورې زما په خاطر کښې دي او چېرې چې د ۱۲۹۸ کال د خپلواکۍ ياد کېږي زما غازي نعمت خان او نور شهيدان په ياد او خاطر کښې راګرځي.

۳) د کندر محاذ:

هغه وخت چې په ۱۲۹۸ کال د حوت په مياشت کښې اعليحضرت امان الله خان د فرنګيانو په وړاندې د افغانستان د خپلواکۍ او جهاد اعلان وکړ او د افغانستان علماو او مشايخو د جهاد د فرضيت فتوا ورکړه، په هغه ګڼو کښې زه (يارمحمد مريانی) د کندر په سيمه کښې چې هلته د حضرت حسين (رح) زيارت دی استوګن وم. حاجي صاحب ملا عبدالرزاق خان اندړ د سرحد د قومونو او قبيلو د مشرانو په نوم د اعليحضرت امان الله خان فرمانونه ما لره وسپارل. خويي مشرانو ته ورسوم. ما (يار محمد مريانی) هغه فرمانونه د سرحد ټولو مشرانو ته په لږ وخت کښې ورسول او د وانه په اشکي کښې د مشرانو د جرګې تر جوړېدو پورې هلته تم شوم.

داشکي په غونډه او جرګه کښې د کندر په سيمه کښې د فرنګي او ګورکه پوځونو په مرکزونو او چونيو باندې د حملې دنده ماله وسپارل شوه. ځکه چې په کندر او کندر ته په خېرمه علاقو کښې د ولس مشري زما کورنۍ کوله او زه په خپله خېلخانه کښې يوازينی مشر پاتې وم نور مشران مې په حق رسېدلي وو. د يوه پلو نه د راپاتې يتيمانو او کونډو پالنه او د بل پلو نه د قوم مشري او د فرنګيانو سره جهاد را په غاړه وو،

د کندر په ټوله سیمه کښې د فرنګي او ګورکه پوځونو په حساب نهه نظامي مرکزونه او چونۍ ابادې وې زیات شمېر پوځیان او جنګي وسایل فرنګیانو دې مرکزونو او چونیو ته راوړي وو او دا هغه مرکزونه او چونۍ وې، چې مونږ د کندر د علاقې مجاهدینو به هر وخت وربانديې بریدونه او حملې کولې او کله چې به خوراکي مواد او پوځي وسایل د قافلې او کاروان په ذریعه د فرنګي پوځیانو په بدرګه ورته راوړل کېدل مونږ مجاهدینو به په هغه قافله او کاروان باندې هم برید او حمله کوله او زمونږ مجاهدینو له لوري به د هغوی هر څه لوټېدل، په نظامي مرکزونو او چونیو باندې بریدونه او په کاروانونو باندې داړې وهل، فرنګیان سخت په نا ارامه کړي وو او هم فرنګیانو ته زمونږ د هر مجاهد او قاید پته ځرګنده او ښکاره وه، ولې په فرنګي کښې دا توان او شیمه نه وه چې زمونږ د ټولو مجاهدینو مقابله وکړي د فرنګیانو موجودیت زمونږ د ولس نر او ښځه مجاهدین ګرځولي وو، ښځو به هم ټوپک په اوږه ګرځول.

په هغه ګنټو او شپېو کښې چې ملا همزالله اخند د فرنګیانو په وړاندې د جهاد قوماندې ورکړه، نو مونږ د کندر مجاهدینو او غازیانو زما (یار محمد مریانې) تر مشرۍ لاندې د فرنګي او ګورکه پوځونو په پوځي چونیو باندې د الله اکبر په نارو سره برید پیل کړ او زمونږ ددې برید سره فرنګیان سخت وارخطا او بې زړه ښکارېدل ځکه په وزیرستان او ګومله کښې هم ددوی په وړاندې ولسي پاخون اغاز شوی و او د فرنګیانو هم دا وارخطایي وه چې د دوو او درو ګنټو په جګړه کښې مونږ مجاهدینو د حضرت حسین نیکه(رح) زیارت ته نژدې چونۍ د

فرنګي او ګورکه پوځونو ثخه ونیوله او زیات وکم د همدې چونۍ په جګړه کښې د مجاهدینو او غازیانو په لاس پنځه سوه د فرنګي او ګورکه پوځونو افراد مردار شول. او زموږ مجاهدینو نه اووه تنه په شهادت ورسېدل. دا د محمد مریاڼي، خدای رحیم مریاڼي. شېر محمد مریاڼي، نصرالله سلېمانخېل کوچي، عبدالله خان سلېمانخېل کوچي، دولت خان مریاڼي کوچي، او عبدالرحمن هغه اووه تنه شهیدان وو، چې د حضرت حسین نیکه(رح) زیارت ته نژدې د فرنګي د چونۍ په جنګ کښې شهیدان شول.

د فرنګي او ګورکه پوځونو په وړاندې د عمومي جهاد او مجاهدې په پیل سره، موږ د کندر مجاهدینو د فرنګیانو او ګورکه پوځونو ثخه د هندو باغ، قمرالدین، ګستوی، سره خاهان، ثخوبي، ګل کخ، سره درګه، شین باړي، او د حضرت حسین(رح) زیارت ته نژدې چونۍ ونیولې او د کندر په بندر کښې موږ فرنګیانو او ګورکه پوځونو ته بې شمېره ځاني او مالي تاوانونه وروړسول او کله چې د کندر په علاقه کښې د فرنګي او ګورکه پوځونو زموږ مجاهدینو له لاسه ماتې وخوړه، نو یې پاتې پوځیان د ړوب په لوري په خټ ولاړل، دا وخت د کندر ټوله سیمه د دښمن د پوځونو نه پاکه وه او موږ د کندر مجاهدینو او غازیانو زما (یار محمد مریاڼي) تر مشرۍ لاندې د فرنګي او ګورکه پوځونو په تعقیب د ړوب په لور د جهاد لمن اوږده کړه او هلته د کاکړو، مندوخېلو او شېرانو مجاهدینو په ځنګ کښې د فرنګیانو په وړاندې وجنګېدو.

۴) د روب محاذ:

د امیر عبدالرحمن خان او د ډیورنډ په تړون کښې د روب سیمه هم په فرنګیانو پورې تړل شوې وه. ولې د روب ننګیالي هېڅکله دې ته حاضر نه وو چې د فرنګیانو تر اسارت لاندې د غلامۍ ژوند وکړي او یا د فرنګي او ګورکه پوځونه د دوی په خاوره کښې ازاد قدم ووهي. فرنګیانو د روب د مېړني ولس د ښکېلولو له پاره هغه وخت په روب کښې پاخه او ټینګ مرکزونه اباد او ودان کړل او ددې پخو مرکزونو څخه به یې د روب د ولس د هر ملي پاخون د ارامولو له پاره په جنګي وسایلو سمبال پوځیان سوق او اداره کول او فرنګیانو خپلو دې پوځي مرکزونو او چونیو ته سړکونه او لارې غزولې وې، چې پوځي وسایل او خوراکي مواد په اسانۍ او چټکۍ سره دې مرکزونو او چونیو ته ورسوي. د فرنګیانو پوځیان ښه خورب او په تن پټ وو، پرمختللي جنګي وسایل یې هم درلودل او په هر پوځي مرکز کښې یې د خپلو پوځیانو د ټپیانو او ناروغانو له پاره روغتون او طبیبان درلودل.

د روب په سیمه کښې د فرنګي او ګورکه پوځیانو د موجودیت نه برسېره فرنګیانو ملېشایي لښکر هم جوړ کړی و، چې په دې ملېشایي لښکر کښې د روب یو شمېر پښتنو برخه درلوده او د فرنګیانو هدف او ناولی مرام د هغه نه دا و چې د خپل کور خلک په خپل مینځ کښې سره وجنګوي او په خپله یې ننداره وکړي. په هندوستان او بنګال کښې فرنګیانو هم په دا ځیر سره کړې وه نو ځکه یې هغه په خپله ولکه کښې راوستلې وو. ولې دلته (په روب او وزیرستان کښې) د ملېشا افسرانو او سړو یې د فرنګیانو څخه د تنخوا پرېکړه کوله چې

د هغه اصلي واقعیت او حقیقت یې د ۱۲۹۷ کال د حوت د میاشتې د افغانستان د خپلواکۍ او جهاد په اعلان شوي جنګ او جګړې کښې څرګند او روښانه کړ.

د فرنګیانو په پوځ کښې د پښتانه ملېشا د افسرانو او سړو اصلي نیت او اراده دا نه وه چې د خپل قوم او خپلو ورونو په وړاندې د فرنګیانو د ګټو د خوندي ساتلو له پاره وجنګېږي او یا د خپلو وینو په تویولو سره پر خپله خاوره باندې د پردو ولکه وساتي. دا پښتانه ملېشا په هېڅ رنګ سره دې لره تیار نه وو چې خپله پلرنۍ خوږه خاوره او دنګ په ونو پټ غرونه په کفارو باندې وپلوري.

د ږوب په سیمه کښې شین سترګو او زیړ وېښته فرنګیانو په شمار اتلس پوځي مرکزونه او چوڼۍ درلودې او په هر مرکز او چوڼۍ کښې فرنګیانو په عصري جنګي وسایلو سمبال په زرګونو فرنګي او ګورکه پوځیان د ولس د ټکولو له پاره تیار او اماده کړي وو. او کله چې د فرنګي او ګورکه پوځونو په وزیرستان، کندر او ګومله کښې ماتې وکړه او د ږوب په لور په خټ شوه نو په ږوب کښې د فرنګي او ګورکه پوځونو شمېر څلور برابره شو او دلته فرنګي جرنیلانو دا فکر کړی و چې ږوب به د دوی د پوځیانو د امن او پناه ځای وي.

په ږوب کښې د فرنګي او ګورکه پوځونو په څلور برابره کېدو سره د جنګیالیو مجاهدینو او غازیانو شمېر هم څلور چنده شو. د کندر، ګوملې او درست وزیرستان ننګیالي د خپلو مشرانو سره د ږوب د ولس ملاتړ او د فرنګیانو د تر ټلو له پاره ورسېدل او د ږوب بهادر ولس د خپلو مېړنو مشرانو (سردار حسن خان کاکړ، سردار رحیم خان کاکړ، سردار شېرخان کاکړ،

سردار قلاخان کاکړ، اختر محمد خان مندو خېل، مېجر صوبدار اجمیر خان د اختر محمد خان مندوخېل زوی او مشوخان مریانی د فرنګیانو مېجر صوبدار) تر قوماندې او قیادت لاندې زموږ د کندر ګوملې او وزیرستان د مجاهدینو په ملاتړ په فرنګي او ګورکه پوځونو پورې د روب تړوله مځکه سور اور کړه او دا وخت پښتانه غیرتي ملېشا د اجمیرخان مندوخېل او مشوخان مریانې په لارښودنه د فرنګي له پوځ څخه رابېل شوه.

هغه وخت چې قهرمان مېجر صوبدار اجمیرخان مندوخېل د پښتون ملېشا مشر د خپلو سرو سره د فرنګیانو څخه رابېل شو او د مجاهدینو په لیکه کښې د فرنګیانو په وړاندې د جهاد په مورچل کښې ودرېد. نو دده په رابېلېدو سره فرنګیانو د نوموړي مېړني اولادونه زنداني او بندي کړه ولې هغه ننګیالي پښتون د افغاني غیرت په پام کښې لرلو او په جهاد باندې د عقیدې درلودلو په اساس خپله ټوله اولاده چې د فرنګیانو په لاس کښې زنداني وو هېره کړه او په قلعه سیف الله کښې یې چې د فرنګي او ګورکه پوځیانو مضبوطه چوني وه؛ د خپل قوم او قبیلې د مجاهدینو سره وربرندې برید پیل کړ. د قلعه سیف الله په دې جګړه کښې اجمیر خان غازي هسې قهرماني وکړې چې انساني عقل ورته حیران و. او دده تر قوماندې لاندې مجاهدینو د فرنګي او ګورکه زیات و کم شپږ سوه پوځیان ووژل، د قلعه سیف الله چوني یې د فرنګیانو نه تر لاسه کړه. ولې افسوس چې هغه ننګیالی قهرمان او د مندو خېلو د قوم بهادر قاید غازي اجمیر خان د کلا په جګړه کښې

د سرو کفارو له لاسه پــه شـهادت ورسـېد او پـه غـازي سـربېره يـې د شهيد نـــوم وګاټه.

د صوبـدار مېجـر اجمير خـان منـــدو خـېل پــه خېر صوبـــدار مېجـر مشـوخان شـېرانى چـې د فرنـګي پـه پـــوځ کـښې د ملېشــا مېجـر او قومـاندان و هـم د خپلـو سـړو سـره د جـــهاد پـــه مينـــه د فرنـګي لـه پـوځ څخـه رابـېل شـو. غـازي صــاحب مشـــو خـــان د مجـاهدينو سـره اوږه پـه اوږه پـه ادنـه او مغلکـوټ بـاندې حملـــې پيل کړې او په لـړ وخـت کـښې مجـاهدينو د مشـوخان شـيرانې پـه هدايـت د فرنګيـانو هغـه دوې پـوځي چـونى فتـح کـړې او پــه مغلکـوټ کـښې جنګيـاليو مجـاهدينو د فرنـګي او ګور کـه پوځـونـــو څلورسـوه افـراد تـر خپـل تېغـه وويسـتل او نـورو پـاتې کسـانو يـــې دادنې او مغلکوټ څخــه فـرار وکـړ.

دادنه او مغلکـــوټ د چونيـو د سـوبې او فتحـې نـه وروسـته مـوږ مجـاهدينو د سلېزې پـه پـوځي چـونى بـاندې چـې دا پـــوزي ښار ته نـژدې ودانـه شـوې وه د روژې پـه ۲۵ نـېټه خپـل بريـد اغـاز کـړ او د سـلېزې د بريـد سـره مـو جوخـــت دا پـــوزي ښار تــر خپلـــې محاصرې لانـــدې ونيـو او کلـه چـې فرنګيـانو تـه پتـه ولـګېده چـې پـه ږوب کـښې يـې ټولـې لښکـرې د مجـاهدينو پـه لاس د محـــوې او نـابودى پـه لـوري دي نـو هـم هغـه وچـــې فرنګيـــانو د خپلـــو لښکـرو د خلاصـون لـه پـاره درې زره فرنـګي او ګور کـه پوځـونـــه د اتيا باره کچرو ســره د بـولان لـه درې نـه د سـلېزې د چـونى او پـه اپوزي کښې د محـــاصره شـوو پوځيـانو د مرسـتې لـه پـاره راولـېږل.

مـوږ مجـاهدينو بيلـه ځنـډ څخـــه د فرنګيـــانو پـــه هغـــه درې زره لسيزه رالـېږل شـوي پـوځ بـاندې حملـه اغـاز کـړه چـــې پـــه دې حملـه کـښې فرنـګي او ګور کـه پوځـونـو شـرمېدلې ماتـه وخـوړه.

اکثریت پوځیان یې د مجاهدینو لخوا ووژل شول او د هغه اتیا کچرو څخه اووه اویا کچرې د مجاهدینو په لاس کښېوتې او درې کچرې یې په تېښته ولاړې.

د سلیزې پوځي چوني زمـوږ مجاهدینو ونیوله. او هلته د غازیانو په لاس باندې د فرنګـي او ګورکه پوځونو دوه سوه افراد ووژل شول د اپوزي محاصره هم هغسې. زمـوږ د مجاهدینو لخوا روانه وه او په اپوزي کښې د فرنګیانو پو-لیټیکل جوکم نومي فرنګی و دا پوزې محاصرې ته زمـوږ د مجاهدینو حوصله زیاته تنګه شوه. او مشرانو دا پرېکړه او فیصله وکړه، چې ژر تر ژره دا پوزي محاصره باید د مجاهدینو په سوبه سره پای ته ورسول شي. نو هم هغه و چې زمـوږ مجاهدینو خپلو بریدونو ته شدت ورکړ. په دې بریدونو کښې مشوخان غازي د فرنګیانو درې منصبداران ووژل. ولې افسوس چې دا پوزي په جنګونو کښې غازي صاحب مشو خان او غازي صاحب نعمت خان خروټی د اپوزي د سوبې نه وړاندې د فرنګیانو له خوا په شهادت ورسېدل، د نوموړو دوو قهرمانانو د شهادت خبر او اوازې د مجاهدینو احساسات په حرکت او وینې په خوټېدو راوستلې او اپوزي ته یې اور واچاوه، دا پوزي د اور سره جوخت په فرنګي او ګورکه پوځونو باندې ماتې ګډه شوه، د فرنګي او ګورکه پوځیان څه د مجاهدینو په لاس قتل شوه او یو شمېر یې په تېښته وتښتېدل په اپوزي او ږوب کښې نورې تولې پوځي چوني او مرکزونه د مجاهدینو په لاس کښېوتل.

# د خپلواکۍ په جګړه کښې زمونږ مجاهدينو په لاس فرنګيانو ته اوښتي ځاني تاوان

هغه وخت چې په وزيرستان، کندر، روب او ګومله کښې زمونږ مجاهدينو د افغانستان د خپلواکۍ ګټلو له پاره د فرنګي او ګورکه پوځونو په وړاندې جهاد پيل کړ نو هم هغه وچې په ډېر لږ وخت کښې زمونږ ددې ځلورو جنګي محاذونو مجاهدينو د څښتن تعالی په بشپړ نصرت سره فرنګيانو ته تر شمېر او اندازې نه زيات مالي او ځاني تاوانونه ورپه برخه کړه او چېرې چې په مشرقي او کندهار کښې د فرنګي او ګورکه پوځونو وړاندې والی کړی و د فرنګي او ګورکه پوځونو نه د هغه انتقام زمونږ مجاهدينو په وزيرستان، کندر، ګومله او روب کښې واخيست او زمونږ په سيمو کښې د فرنګيانو هم دا مالي او ځاني تاوان او شومه ماتې وه، چې د افغانستان د خپلواکۍ او خاورې دښمن؛ سمدستي د اعليحضرت غازي امان الله خان نه د جنګ د متارکې درخواست او غوښتنه وکړه.

فرنګيان په دې باندې ښه پوهېدلي وو او دا ورته معلومه وه، چې که چېرې فورا د جنګ د متارکې درخواست او غوښتنه ونکړي نو د جنګ په صورت کښې به مجاهدين تر پنجاب او ملتان پورې ځانونه رسوي. زمونږ مجاهدينو دا اراده کړې وه، چې د فرنګي او ګورکه پوځيان به په لومړي قدم کښې د ډېره غازيخان، ډېره اسماعيل خان، بنو او کوهاټ نه

شرو اوبیا ته د پنجاب او ملتان د مجاهدینو مدد ته ځانونه رسوو. زموږ هم دا تدبیر و . خو ولې د تقدیر په پټو اسرارو نه پوهېدو.

د جهاد او خپلواکۍ په جګړه کښې کوم ځاني تاوان چې فرنګي او ګورکه پوځونو ته په وزیرستان، کندر، روب او ګومله کښې موږ مجاهدینو ور رساوه. هغه په لاندنۍ توګه سره دي:

| د پوځي چونۍ او مرکز نوم | د فرنګي او ګورکه ځاني تاوان |
|---|---|
| تحصیل سیف الله | ۶۰۰ نفـــــره |
| شیغاله | ۳۰۰ // |
| تحصیل روب (د روب مرکز) | ۴۰۰ // |
| قمر الدین | ۲۰۰ // |
| هندوباغ | ۳۰۰ // |
| ماني خواه | ۲۰۰ // |
| حوري | ۳۰۰ // |
| مغلکوټ | ۴۰۰ // |
| نکه | ۳۰۰ // |
| ګرده | ۳۰۰ نفـــــره |
| مرغه | ۴۰۰ // |
| سلیزي | ۲۰۰ // |
| سره درګه | ۳۰۰ // |
| ګستو | ۴۰۰ // |
| د حضرت حسین نیکه زیارت ته نژدې چونۍ | ۵۰۰ // |
| ښخوبی | ۳۰۰ // |
| ګل کڅ | ۲۰۰ // |
| احمدي درګه | ۴۰۰ // |

| د پوځي چوڼۍ او مرکز نوم | د فرنګي او ګورکه ځانـي تـاوان |
|---|---|
| میرعلیخېل | ۳۰۰ // |
| شین باړی | ۲۰۰ // |
| کجیره | ۵۰۰ // |
| نیلی | ۴۰۰ // |
| سپینکی کڅ | ۲۰۰ // |
| سروکي | ۳۰۰ نفـره |
| تناي | ۵۰۰ // |
| توی | ۲۰۰ // |
| رزمک | ۴۰۰۰ // |
| سفلی توی | ۳۰۰ // |
| ساړه راغه | ۴۰۰ // |
| نجی | ۵۰۰ // |
| ډبره | ۹۰۰ // |
| توچي- مېرانشاه او تاتاخېل | ۳۰۰۰ // |

## د فرنګي او ګورکه پوځونو څخه د فتح شوو چوڼیو او مرکزونو نومونه

مـوږ د کنـدر، وزیرسـتان، ګوملـې او ږوب مجـاهدینو د ۱۲۹۸ کـال د خپلواکـی پـه جـګړه کـښې د فرنـګي او ګورکـه پوځیـانو څخه تر پنـځه پنځوس نـه زیـاتې پـوځي چـوڼۍ او مرکزونـه د دوو اوونیـو پـه اوږدو کـښې فتـح کـړل او د فرنـګي او ګورکـه پوځونـه

مـو تـــر ډېره غازيخـــان او ډېره اســـماعيل خـــان پـــورې پـــه خټ وتمبـول. د فرنګيـانو سـره پـه دې جګړه کښې زمـوږ مجـاهدينو د مـرګاو ژوبلـې انـدازه د فرنـګي او ګورکـه پوځـونـو پـه پرتلــه ډېره لـږه وه. مـوږ مجـاهدينو او غازيـانو هـره چـونۍ او مرکـز د دښمـــن نه د وينو پـه تويولـو او د شـهيدانو پـه ورکولـو سـره تـر لاسـه کـړي دي او کـــه د کنــدر، وزيرســـتان، ږوب او ګوملـــې د مجـــاهدينو مېړانـه او د شـهيدانو د وينـو برکـت نـه واى نـو فرنګيـان کلــه پـــه سـوله دې لـره تيـاروو چــې يـوه چـونۍ او يـا مرکـز دې مجـاهدينو تـه تسـليم کـړي او هـم دا زمـوږ د سيمو د مجـــاهدينو او غازيـــانو مېړانه وه؛ چې د جنګ عظيم ســـوبمن هېواد يـې پـه ګونـډه کـړ.

هغـــه پـــوځي چـــونۍ او مرکزونـــه چـــې مـــوږ مجـــاهدينو د فرنګيانو نه د خپلواکۍ پـــه جګړه کښې د جنـګ لـه لارې تـر لاسـه کړه په لانـــدې تـوګه دي:

**الف: د ږوب په بنـــدر او محـاذ کـښې:**

۱ – تحصيـــل ږوب، ۲- قلعـــه ســـيف الله، ۳- دا پـــوزي ښار، ۴- مـــاني خـــوا، ۵- ســـليزي، ٦- بـــرج، ۷- احمـــــدي درګه، ۸- مـــير عليخيـل، ۹- نکـه، ۱۰- بـــابړه، ۱۱-ګرده، ۱۲- مغلکـــوټ، ۱۳- ســـره چـونۍ، ۱۴- موسـزي، ۱۵- مېخـــتر، ۱٦- درابـــن، ۱۷- شـــيغاله، ۱۸- زرکين، ۱۹- ثـــاني مغلکـوټ.

**ب: د کندر په بنـــدر او محـاذ کـښې:**

۲۰- هندوبـــاغ، ۲۱- قمرالديـــن، ۲۲- ســـره خاهـــان، ۲۳- ســـره درګه، ۲۴-ګســـتوى، ۲۵- د حضـــرت حســـين نيکـــه(رح) زيـــارت تـــه نـږدې چـونۍ، ۲٦- خخوبـى، ۲۷- شـين بـارى، ۲۸- ګل کـڅ.

**ج: د ګومل، وانو او توچـــي پـه بنـدر او محـاذ کـښې:**

۲۹- تـوی، ۳۰- کجـیره، ۳۱- نیلـی، ۳۲- سـپینکی کـځ، ۳۳- میـانی کمـر، ۳۴- مرتضـی کـوټ، ۳۵- بـازارګی، ۳٦- شـخ وتـار، ۳۷- مـانجیګره، ۳۸- شـرنه، ۳۹- جتـي کـوټ، ۴۰- ډبـره، ۴۱- وړه (وړه کتـایي)، ۴۲- نجـي (مـانجي)، ۴۳- تنـګه، ۴۴- سـووکي، ۴۵- سفلیٰ تـوی، ۴٦- ساړه راغـه، ۴۷- شـاهي، ۴۸- وانه، ۴۹- رزمـک، ۵۰- سـپین وام، ۵۱- مـیرام شـاه، ۵۲- زرکنـی، ۵۳- تاتـاخېل، ۵۴- شـپانه، ۵۵- خیسـوره.

## د خپلواکۍ په جګړه کښې زموږ مجاهدینو مالي او ځاني خسارات

اعلیحضـرت امـان الله خـان د ۱۲۹۷ کـال د حـوت پـه میاشـت کـښې د فرنګیـانو پـه وړانـدې د افغانسـتان د خپلواکـۍ او جـهاد اعـلان پـه یـوه داسـې حسـاس وخـت کـښې وکـړ چـې فرنګیـانو جنـګ عظیـم ګټلـی و؛ پوځیـان یـې د جرمـن، تـرک، جـاپـان او ایټالیـې په جنګ کـښې پـه خپلـه سـوبه سـره لـه جنـګ څخـه فـارغ شوي وو او بېرتـه د جنـګ عظیـم لـه محـاذ او ډګر نـه خپلـو اصلـي مورچو او سنګرونو تـه سـتانه شـوي وو.

هغـه وخـت د یـوه احتیـاط کـار انسـان عقـل او فکـر دا پرېکـړه او فیصله کولـه چـې د خپلواکـۍ او جـهاد اعـلان بـاید چـې د امـیر حبیـب الله خـان د امـارت پـه دوره کـښې شـوی وای ځکـه هغـه وخـت د فرنـګي درسـت نیپـالي، بنـګالي او هندوسـتاني پوځیـان د جنګ عظیم نـورو محـاذونو تـه اسـتول شـوي وو او پـه هـم هغـه شپو او ورځو کښې فرنګیـان پـه سـخته ربـړه کـښې وو.

اعلیحضرت امان الله خان د خپل پلار د شهادت نه لږ وروسته او د خپل سلطنت په اولي ورځو کښې د خپلواکۍ او جهاد سره د عشق او محبت په اساس د هغه ځواک په وړاندې د خپلواکۍ او جهاد اعلان وکړ چې په جنګ عظیم کښې غالب شوی و. هغوی په ټولو پرمختللیو جنګي وسایلو او الاتو باندې سمبال او مجهز وو اوګاډي، موټر، الوتکې او درندې جنګي ماشین ګنې او بمونه یې په اختیار کښې وو؛ پوځیانو ته یې خوراک او پوښاک په پریمانه اندازه رسېده. او هم یې د بل لوري څخه د امیر عبدالرحمن د امارت له زمانې نه زموږ په سیمو کښې مستحکم او ټینګ؛ په هسکه او هواره باندې تر پینځه پنځوس نه زیات پوځي مرکزونه او چوني ابادې کړې وې.

موږ د وزیرستان، ږوب، ګوملې او کندر د ولسونو مشرانو او هم د افغانستان حکومت دومره پوځي وسایل په لاس کښې نه درلوده چې د درې لکه فرنګي او ګورکه پوځیانو سره وربانديې وجنګیږو، ولې بیا هم موږ د مجاهدینو مشرانو او د افغانستان حکومت د خپلې خپلواکۍ او ازادۍ د لاس ته راوړلو له پاره د فرنګیانو د ستر پوځي قوت په وړاندې د جهاد او مجاهدې مورچل ته ور ودانګل. اعلیحضرت امان الله خان په خپل لاس باندې د مجاهدینو د جنګي روحیې د اوچت ساتلو له پاره د جهاد بیرغ هسک کړ او د څښتن تعالی په توکل او نصرت مو حرکت په لیار پیل کړ.

د وزیرستان، کندر، ږوب او ګوملې غیرتي مجاهدینو د فرنګیانو سره په جنګ او جګړه کښې پوره اشنایي درلوده. موږ د سیمې مجاهدینو او فرنګي پوځیانو له ډېر وخت څخه ښه

سره پېژندل، د جګړې په ډګر کښې فرنګیانو موږ ازمایلي وو. او موږ فرنګیان ازمایلي وو. د فرنګیانو د ټولو نظامي چوڼیو او مرکزونو لیارې او په هغه چوڼیو او مرکزونو کښې د فرنګي او ګورکه پوځیانو شمېر او تعداد بشپړ راته څرګند وو. زموږ مجاهدینو دا معلومات او اشنایي وه چې د پوره دوو اوونیو په اوږدو کښې موږ مجاهدینو د فرنګي او ګورکه پوځیانو څخه ټول مرکزونه او چوڼۍ تر لاسه کړې فرنګیان مو تر دېره غازي خان او دېره اسماعیل خان پورې وتر ټل.

د ۱۲۹۸ کال د خپلواکۍ جګړه د فرنګیانو څخه په زارۍ او دوعا نه ده ګټل شوې او نه فرنګیان دې لره حاضر وو چې افغانانو ته ازادي ورکړي. د فرنګیانو دا نیت او اراده وه چې مېړني افغانان د هغوی ابدي غلامان واوسي، فرنګیانو زموږ مجاهدینو ته د جنګ او جګړې په ډګر کښې زیات ځاني او مالي تاوانونه راواړول او د هغه زیات و کم دوو اوونیو په جګړه کښې فرنګیانو زموږ د سیمو تقریبا دوه زره (۲۰۰۰) مجاهدین په شهادت ورسول، د انې او سروکي د چوڼیو په نیولو کښې په یوه ورځ د مسودو د ننګیالي او قهرمان قوم درې سوه شپېته (۳۶۰) مجاهدین او د وزیرو د بهادر او مېړني قوم یو سل او څلوېښت (۱۴۰) مجاهدین په شهادت ورسېدل، د ټپیانو شمېر د شهیدانو دوه برابره وو.

فرنګیان چې زموږ مجاهدینو په وړاندې په ځمکني جنګ کښې مغلوب شوي وو نویې د الوتکو څخه زموږ مجاهدینو په سنګرونو زموږ په کورونو او زموږ په رمو او ګلو باندې بمونه غورځول او زموږ د مجاهدینو په وړاندې یې هوایي جنګ او جګړه پیل کړه. د اپوزي ښار چې موږ مجاهدینو تر محاصرې

لانـدې راوسـتلی و، پـه ښار کـښې د فرنګيـانو پوليتيکـل چـې جوکـم نوميـده، زمـوږ مجـاهدينو پـه وړانـدې يـې زيـات مقـاومت وکـړ. دا پـوزې پـه محـاصره کـښې د فرنګيـانو لـه لـوري پـر مـوږ مجـاهدينو بـاندې لـه هـوا نـه بمونـه وربدل او د فرنګيـانو دا هـڅه وه، چـې دا پـوزې محـاصره د بمونـو پـه ورولـو سـره ماتـه کـړي. پـه دې جنـګ کـښې زمـوږ مجـاهدينو نـه پنځوس تنه پـه شـمار ننګيـالي پـه شـهادت ورسـېدل. فرنګيـانو د پـاس نـه د بمونـو په اورولـو سـره زمـوږ کورونـه وران، رمـې او ګلـې يـې راتـه ووژلـې او فصلونه يې راتـه پـه اور وسـوځول.

د فرنګيـانو او ګورکـه پوځونـو سـره د خپلواکـۍ پـه جـګړه کـښې زمـوږ د سـيمو د قومـي مشـرانو او د مجـاهدينو د قوماندانـانو نـه اجمـير خـان مندوخـېل، غـازي نعمـت خـان خـروټی، مشـو خـان مريـانی، شـېر جـان کـاکړ، نصـرالله خـان، سـليمان خـيل کـوچـی، عبـدالله خـان سلېمانخېل کـوچـی، مـلا خير الديـن مريـانی، دولـت خـان مريـانی کـوچـی او عبدالرحمـن په شـهادت ورسـېدل.

## د خپلواکۍ په جګړه کښې زموږ د سيمو د مجاهدينو نومونه

د ١٢٩٨ کـال د خپلواکـۍ پـه جـګړه کـښې زمـوږ د سـيمو د ټولـو قومونـو او قبيلـو ننګيـاليو مشـرانو، خانـانو، ملکـانو او ملايـانو بشپړه ونـډه درلـوده او ټولـو مشـرانو پـه خـلاص لاس او وريـن تنـدي سـره د فرنګيـانو پـه وړانـدې خپـل شـته ښنـدل او مـوږ

مشرانو د خپلـو قـهرمان مجـاهدينو سره اوږه پــه اوږه د فرنــگي او ګورکـه پوځـونـو پـه وړانــدې پــه يــوه ليکــه کــښې جــهاد او مجاهده کولــه.

دافغانســتان د خپلواکــۍ پــه جــګړه کــښې کـــه د کنـــدر، وزيرسـتان، روب او ګوملـې قـهرمان مشـران او ننګيــالي مجــاهدين د اعليحضـرت امـان الله خـان پـه خـوا کـښې نـه واى دربدلي نــو پـه يقين سـره د فرنـګـي او ګورکـه پوځـونـه بـه تـر کــابل پــورې رسېدلي واى او يـو ځل بيـا بـه يـې افغـان ملت اسير کـړی واى. د فرنګيانو هــم دا هـدف و. نـو ځکـه يـې د افغانستان پولـو تـه پـه حسـاب درې سـوه زره (۳۰۰۰۰۰) فرنـګي او ګورکـه پوځـونــه ســوق او اداره کـړل او د اعليحضـرت امـان الله خـان د خپــل حــق پــه وړاندې يې د جنـګ او جـګړې اعـلان وکـړ.

د خپلواکــۍ د جــګړې د پيــل نـــه مخکـــښې د فرنګيـــانو جاسوسـانو دا تـلاش او هـاند وکـړ چـې مـوږ د کنـدر، وزيرسـتان، روب او ګوملې مجـاهدين پـه جـګړه کـښې د فرنګيـانو پـه وړانـدې ګډون ونکـړو، او فرنګيـانو د خپــل دې شــوم او نــاولي هــدف او مقصد د لاس ته کولـو لـه پـاره پـه هـر لـور شـته شـيندل. د قومونـو او قبيلو د مشـرانو، ملکـانو او ملايـانو لـه پـاره يـې شـته شـيندلي وو. د وزيرسـتان او روب د مجـاهدينو د مشــرانو د تېرايســتلو او غــافل سـاتلو لـه پـاره يــې د وزيرســتان او روب د ادارې ژمنــه کــړې وه ولـې د هـرې ســيمې د قومونــو او قبيلــو د مجــاهدينو ننګيــاليو مشـرانو د افغـاني غـيرت، اسـلامي عقيــدې او د خپلواکــۍ د بــې سياله او بې مثاله نعمـت پـه فکـر کـښې نيولـو سـره د فرنګيـانو هغـه د رشـوت او بدو راغـزېدلی نـاولی لاس د جـهاد او مجــاهدې پــه مـورچـل کـښې د جـاغوري تېوپـک پـه ګولـۍ غـوځ کـړ، نــه کــوم

قهرمان مشر، خان او ملک او نه کوم ننګيالي مجاهد هغه نجس رشوت ومانه.

د وزيرستان، روب او ګوملې د ننګياليو مجاهدينو مشران او د هغوی قهرمانۍ او غيرتي خبرې چې د فرنګيانو په وړاندې د ۱۲۹۸ کال د خپلواکۍ په جګړه کښې بې مثاله اتلولۍ او قهرمانۍ کړې دي او د افغانستان خپلواکي يې د جهاد او مجاهدې نتيجه ده. د هغوی يادونه او خاطرات مې تر همدې ګنټو او شپېو پورې په ياد او خاطر کښې دي. او د مرګ تر ګنټو پورې به مې په خاطر کښې ثبت او ابدي وي.

د ۱۲۹۸ کال د ثور او جوزا د خپلواکۍ د جګړې په ډګر کښې هغه ربړې او مشکلات چې مونږ د وزيرستان، کندر، روب او ګوملې مجاهدينو د فرنګيانو په وړاندې په ځان او عيال باندې وګالل نو دا واجب ګڼم چې د هغه قهرمانانو ياد د افغانستان د حکومت او د هر افغان په زړه کښې تل ژوندی او ابدي وي او د افغانستان پر حکومت او رعيت باندې دا واجب او لازمي ګڼم چې د هم هغه هر يو قهرمان په نوم باندې ځانګړی ځای ونوموي څو د هغوی نوم او کارنامې د راتلونکو نسلونو په ذهن کښې ژوندي وي.

د وزيرستان، روب، ګوملې او کندر په جنګي محاذونو کښې د فرنګي او ګورکه پوځونو د ماتې عاملين، د ننګياليو مجاهدينو محرکين او د افغانستان د خپلواکۍ د جګړې اصلي او رښتيني قهرمان جرنيلان او کرنيلان لاندېني کسان دي:

۱- انګورخان، ۲- شېرمحمد خان، ۳- عبدالله جان خان، ۴- سيد خان، ۵- حاجي امير خان، ٦- حاجي ګل خان خوني خېل، ۷- قاضي صاحب شکي، ۸- دلباز خان، ۹- عصمت خان

(صوبدار مېجر د فرنګيانو)، ۱۰- جلات خان توچي خېل، ۱۱- زرمين، ۱۲- اسلم خان، ۱۳- جرنيل ہوسى خان عبدلي، ۱۴- شاه بران خان، ۱۵- سدو خان، ۱٦- ملا فضل الدين اخند مشهور په شهزاده صاحب (د ملا پونده اخند زوی)، ۱۷ غازي مشو خان مرياني (مېجر صوبدار د فرنګيانو)، ۱۸- غازي اجمير خان مندوخېل (مېجر صوبدار د فرنګيانو)، ۱۹- غازي نعمت خان خروټی، ۲۰- شېرجان خان خروټی، ۲۱- ملک سردار فتح خان سلېمانخېل، ۲۲- زرخان، ۲۳- زقوم خان، ۲۴- نصيب خان، ۲۵-ګل خان، ۲٦- تراني خان، ۲۷- ملا همزالله اخند(مشهور د وزيرو په ملا سره)، ۲۸- غازي قايم خان، ۲۹- ماما خان، ۳۰- مهربان خان تاجيخېل وزير، ۳۱- ملا شاه غازي، ۳۲- سردار ګلاخان، ۳۳- سردار رحيم خان کاکړ، ۳۴- قايم خان کاکړ، ۳۵شيرک خان کاکړ، ۳٦- سردار حسن خان کاکړ، ۳۷-قاضي صاحب امير شاه خان قريش، ۳۸- زنګي خان ملاخېل وزير، ۳۹- ارسلا خان ملاخېل وزير، ۴۰- ملک دندخان ملا خېل وزير، ۴۱- عبدالله ملا خېل وزير، ۴۲- نور محمد خان پيپلي کابل خېل وزير، ۴۳- اختي جان خان، ۴۴- سليم خان تاجيخېل وزير، ۴۵-پايو خان جه خېل وزير، ۴٦-سلا شاه، ۴۷ملک زقيم شاه خان، ۴۸- اصل خان خوني خېل وزير، ۴۹- موسى خان شارني مسود، ۵۰- قطب خان د پاچا خان زوی، ۵۱- حيات خان، ۵۲- ملک هفته خان ککه خېل وزير، ۵۳- ترين خان توريخېل اتمانزی وزير، ۵۴- علي بت خان ملکي جرنيل، ۵۵- اختر محمد خان مندوخېل، ۵٦- مشرف خان، ۵۷- نواب خان سلېمانخېل، ۵۸- نصرالله خان سلېمانخېل کوچی، ۵۹- عبدالله خان سلېمانخېل کوچی، ٦۰- ملا خيرالدين

مريانى، ٦١- دولت خان مريانى كوچى، ٦٢- عبدالرحمن مريانى، ٦٣- (زه) يار محمد مريانى.

## د خپلواکۍ د جګړې نه وروسته زموږ د سيمو او ولس برخليك

کله چې د فرنګي او ګورکه پوځونو په وزيرستان، کندر، روب او ګومله کښې زموږ د مجاهدينو له لوري نه ماتې وخوړله نو يې خپل پاتې پوځيان د ډېره غازي خان، ډېره اسماعيل خان او د سند په لور شاته کړه، په هم هغه شپېو او ګنټو کښې د فرنګيانو د جرنيلانو او کرنيلانو زړه ته دا پوره تېره شوې وه، چې که د افغان مجاهدينو په وړاندې جنګ او جګړې ته دوام ورکړي. نو ددې زيات امکان شته دی چې د جنګ او جګړې د دوام په صورت کښې به سند او پنجاب هم افغان مجاهدينو ته پرېږدي. او بيا به د دوی (فرنګيانو) په ولکه کښې درست هندوستان او بنګال ته سخت خطر پېښ وي. هغه وخت په سند او پنجاب کښې هم د فرنګيانو په وړاندې ولس د جهاد او خپلواکۍ له پاره تيارى نيولى و. په سند، پنجاب، بنګال او هندوستان کښې ولس کوڅو او بازارونو ته راوتلى و. او د فرنګيانو په وړاندې يې مظاهرې کولې.

موږ مجاهدينو دا لوړه او پرېکړه کړې وه؛ او دا مو نيت او اراده وه، چې فرنګيان به د ټول هندوستان او بنګال څخه شړو. زموږ هم هغه د جهاد او مجاهدې غښتلې اراده وه چې د فرنګي او ګورکه زيات پوځونه مو په کندر، روب، ګومل او

وزیرستان کښې نیست او نابود کړه او یو شمیر یې د دېره غازي خان، دېره اسماعیل خان او سند په لور شاته شوه.

فرنګیان چې په تګي کښې ځانګړی مهارت او شهرت لري نو یې د حالاتو په نظر کښې نیولو سره په هم هغه ګنټو کښې چې زمونږ مجاهدینو وینې په خوټېدو وې او د خپلو شهیدانو په وینو لژند جنازې مو په مخکې پرتې وې، سمدستي یې دا غوره او بهتره وګڼله، چې د افغانستان د حکومت څخه د جنګ د متارکې او اور بند غوښتنه وکړي او د ننګیالیو مجاهدینو هغه وینې چې د دوی په وړاندې په خوټېدو راغلې وې د افغانستان حکومت ته د متارکې په پېشنهاد سره بېرته له خوټېدو او جوش څخه واچوي.

افسوس چې د افغانستان د حکومت ناخبره اراکین چې د مملکت اداره او سیاست یې په لاس کښې وو، ډېر ژر د فرنګیانو د مکر او فریب په لومه کښې راښکېل شوه او د فرنګیانو د متارکې او اوربند غوښتنه او پېشنهاد یې بې له دې چې زمونږ مشرانو سره پکښې سلا او مشوره وکړي او یا د خپل تورزن ولس د جهاد او مجاهدې روحیه د فرنګیانو په وړاندې وګوري؛ په ورینه تنده او خلاصه غېږه سره ومنل او هم دا هغه اولي نښه او نښانه وه چې وروسته بیا د افغانستان د حکومت او د فرنګیانو په ناسته او پاسته کښې فرنګیانو د لوی افغانستان د یوې ټوټې ازادي او خپلواکي په رسمیت وپېژندله او بله ټوټه یې په خپله ولکه کښې ونیوله.

د خپلواکۍ د جګړې نه وروسته زمونږ برخلیک بیا هغه برخلیک شو چې د اعلیحضرت امان الله خان د نیکه او د فرنګیانو د استاځي ډیورنډ په ناولي تړون کښې ټاکل شوی و.

او يو ځل بيا د رودونو وينو تويولو نه وروسته دښمنانو ته لاس تړلي وسپارل شوو.

## اعليحضرت امان الله خان ولې متاركه و منله؟

د ۱۲۹۸ کال د خپلواکۍ په جګړه کښې چې د افغانستان دحکومت لخوا په دريو جبهو کښې د فرنګيانو په وړاندې تياري نيول شوی و، د جنوبي محاذ او بيا په ځانګړې توګه د کندر، ږوب، ګوملې او وزيرستان بهادر مجاهدين وو چې د جهاد په مورچل کښې يې د فرنګيانو د ملا تير ورمات کړ.

د مشرقي محاذ د صالح محمد خان او محمد ګل خان مومند تر قوماندې او قيادت لاندې لښکر د فرنګيانو د واړه حرکت په وړاندې په ځنډ راغلی و، د کندهار د محاذ قوماندان سردار عبدالقدوس خان د جګړې ډګر ته نه و رسېدلی او سردار صاحب د کابل او کندهار په ليار کښې و چې په بولدک باندې د فرنګيانو قبضه راغلې وه او د بولدک په نيولو سره يې کندهار تر خپل تهديد لاندې راوستلی و.

مونږ د کندر، ږوب، وزيرستان او ګوملې مجاهدينو چې د سرو فرنګيانو او ګورکه پوځونو په وړاندې بې امانه جهاد او مجاهده کوله نو د خپلو ټولو برياليتوبونو او د فرنګيانو د ماتې او شکست اخبار مو شېبه په شېبه سپاه سالار سردار محمد نادر خان او کرنيل سردار شاه ولي خان ته د خپلو ټاکل شوو سړيو په لاس استول، خو سپاه سالار او کرنيل صاحب زمونږ مجاهدينو دا برياليتوبونه او د فرنګيانو ماتې او د سند لور ته د

هغوی په خټ کېدل اعلیحضرت امان الله خان ته ورسوي. دا چې تر کوم حد پورې د وزیرستان، کندر، ګوملې او ږوب د مجاهدینو د سوبو اخبار اعلیحضرت امان الله خان ته سردار محمد نادر او سردار شاه ولي خان استول د هغه اندازه او بڼه موږ مجاهدینو ته نه څرګندېده، ولې زموږ د سیمو مجاهدینو د خپلو مشرانو تر جهادي قیادت لاندې د فرنګیانو او ګورکه پوځونو په وړاندې خپل جهاد او مجاهدې ته د مرګ تر ګنټو پورې دوام ورکاوه.

زموږ مجاهدینو دا هیله او امید و، چې د فرنګیانو په ماتې او شکست سره به یو ځل بیا هغه لوی احمد شاهي کور جوړېږي چې د ابدالي احمد شاه او وزیر فتح خان د زوزات د خپلمینځي اختلاف او بې اتفاقۍ په اثر سکهانو او فرنګیانو ټوټه ټوټه کړی و، زموږ هاند او کوښښ هم دا و، مجاهدینو خپل مالونه او ځانونه هم ددې هدف او مقصد له پاره قرباني ته سپارلي وو.

اعلیحضرت امان الله خان چې د فرنګیانو په وړاندې د خپلواکۍ او جهاد اعلان کړی و. او د افغان ولس نارینه او ښځینه د هغه (اعلیحضرت امان الله خان) په فرمان د جهاد په سنګر کښې ولاړ وو، هغه په یوه ډېر نازک او حساس وخت کښې د خپلو جرنیلانو او کرنیلانو په مشوره د فرنګیانو سره د جنګ متارکه وکړه او دا هغه وخت او ګنټې وې چې زموږ د سیمو قهرمانو مجاهدینو د فرنګي او ګورکه پوځونو ټولې نظامي چونۍ او مرکزونه په خپل لاس کښې نیولي وو د دېره غازي خان او دېره اسماعیل خان په لور د ننګیالیو مجاهدینو د سرتېرو او جان فدا لښکرو حرکت پیل شوی و؛ د بنو، کوهاټ

او پېښور سوبه او فتحه هم قریب وه فرنګیان هومره وارخطا او تلولي شوي وو چې خپل ماتې خوړلي، خواره واره پوځیان یې نشو راغونډولی ملېشايي پوځ یې رخصت او جواب کړی و، ځکه چې نور نو د فرنګیانو په ملېشايي افرادو باندې ویسا او اعتماد نه و، د غازي اجمیر خان شهید، غازي مشو خان شهید، غازي پت خان، غازي ترین خان او غازي عصمت خان ملېشا فرنګیانو ته پوره درس ورکړی و. په پنجاب، لاهور، ملتان، سند، بنګال او درست هندوستان کښې د فرنګیانو په وړاندې د مسلمانانو او هندوانو ګډ تحریکات پیل شوي وو. هلته په بازارونو کښې خلکو مظاهرې کولې او کله کله به یې د فرنګیانو د اور ګاډو پټلۍ پرېکولې، هر کس د افغان مجاهدینو د ورتګ په انتظار و؛ هندو او مسلمان د خپلواکۍ د هدف د ترلاسه کولو له پاره د فرنګیانو په وړاندې د اتحاد او یووالي لاس سره ورکړی و. او دا یې فیصله کړې وه چې د اعلیحضرت امان الله خان تر قیادت لاندې به فرنګیان له هند او بنګال نه مغلوب شړي نو ځکه به یې ویل چې هندو او مسلمان دوه ورونه دي.

افسوس چې ددې ټولو تحریکاتو برسېره اعلیحضرت امان الله خان د فرنګیانو چې په جنګ کښې مغلوب شوي وو د متارکې پېشنهاد او غوښتنه فورا ومنله. حکومتي عسکرو او مجاهدینو ته یې د وړاندې تګ پر ځای د اور بند اوپه ځټ کېدو فرمان صادر کړ. دا چې ولې اعلیحضرت امان الله خان د فرنګیانو سره د جنګ متارکه او مصالحه وکړه او یا یې زموږ د سیمو د مجاهدینو هیلو او ارزوګانو ته پام او توجه ونه کړه؛ شاید او ممکن دا د اعلیحضرت امان الله خان د نږدې ملګرو

او مشاورينو فيصله وه چې اعليحضرت امان الله خان ته يې د سلطنت په چارو کښې مشورې ورکولې، باور او يقين مې دی چې هغه مشاورينو او سلا کارانو د اعليحضرت امان الله خان په زړه ډار او وېره ننه ايستلې وي ځکه هغه وخت فرنګيانو په مشرقي کښې د ډکې سيمه د افغاني سپاه سالار سردار صالح محمد خان او محمد ګل خان مومند څخه نيولې وه. او دا د کابل د سقوط نژدې ترين محاذ او هم په تېرو جنګونو کښې فرنګيان له دې ليارې څخه کابل ته ننوتلي وو اويا دا چې شايد د وزيرستان، کندر، روب او ګوملې د قهرمانو مجاهدينو د اتلوليو او د فرنګيانو د ماتې خبرونه په پوره او کامله توګه د اعليحضرت امان الله خان تر غوږو چانه رسول اوپه مشرقي کښې را مخکښې شوي حالت دې لره اړ ايستلی وي چې فورا متارکې او اوربند ته غاړه کښېږدي.

د فرنګيانو سره د متارکې په اړوند هر عامل او سبب چې و، ولې اعليحضرت امان الله خان په داسې حالت کښې د فرنګيانو سره متارکه او د اوربند تړون وکړ چې په هغه شپېو کښې مونږ د وزيرستان، کندر، روب او ګوملې مجاهدينو د فرنګيانو ټولې پوځي چونۍاو مرکزونه نيولي او د هغوی نيمايي پوځ مو ورتباه کړی و. په هغو ګنټو کښې مجاهد افغانان د فرنګيانو په وړاندې د جنګ په ډګر کښې بر لاسي او غالب وو او اعليحضرت امان الله خان د مغلوب دښمن د متارکې او اوربند پښنهاد قبول کړ، ولې په هر صورت د ۱۲۹۸ کال د خپلواکۍ په جهاد کښې زمونږ سيمې بيا د متارکې په پرېکړو کښې د افغاني او فرنګي هياتونو لخوا په فرنګيانو

پوري وتړل شوې او زموږ مجاهدينو له نظره دا درېيم ناولى تړون و.

## د خپلواکۍ د تړون نه وروسته بيا هم زموږ جهاد او مجاهده

کله چې د ۱۲۹۸ کال د جوزا په مياشت کښې فرنګيانو د وزيرستان، ږوب، ګوملې او کندر د جان فدا مجاهدينو د جهادي اتلوليو په نتيجه کښې د افغانستان حکومت ته د جنګ د متارکې او د ذربندۍ پېشنهاد د سردار عبدالرحمن په لاس وړاندې کړ او څه وخت وروسته د خبرو او مفاهمو په اوږدو کښې فرنګيانو د لوى احمد شاهي افغانستان د يوې برخې خپلواکي او د اعليحضرت امان الله خان سلطنت په رسميت وپېژانده نو د افغانستان د حکومت د نمايندګانو او د فرنګيانو په دې تړون کښې زموږ مجاهدينو علاقې د امير عبدالرحمن خان د امارت د زمانې په څېر په فرنګيانو پورې وتړلې شوې او يو ځل بيا زموږ د سيمو د ولس په برخه کښې هغه استعماري تړون تاييد او ومنل شو چې د امير عبدالرحمن خان او د فرنګيانو د نمايندو ډيورنډ لخوا لاس ليک شوى و.

کوم وخت چې د افغانستان د حکومت د نمايندګانو (علي احمد خان لويناب) او فرنګيانو تر منځ د افغانستان د خپلواکۍ په اړه تړون د ۱۲۹۸ کال د اسد په مياشت کښې کېده. هغه وخت په وزيرستان، کندر، ږوب او ګومله کښې د فرنګيانو ټول پوځي مرکزونه او چوڼۍ د قهرمانو مجاهدينو په

لاس کښې وو او مور خپلې ټولې علاقې د فرنګیانو او ګورکه پوځونو له ناولي وجود څخه پاکې کړې وې او د ټولو سیمو اداره زمور په لاس کښې وه ننګیالي مجاهدین د فرنګیانو څخه په نیول شویو پوځي مرکزونو او چونیو کښې پیره او مېشته وو نو که هغه وخت او په هم هغه ګنټو کښې چې د افغانستان د حکومت نماینده ګانو د فرنګیانو سره د خپلواکۍ په اړوند خبرې کولې؛ زمور مجاهدینو په برخلیک باندې ټینګار کړی وای فرنګیان مجبور وو چې د افغانستان د حکومت د نماینده ګانو دا ټینګار یې منلی وای. ځکه چې هغه وخت د فرنګیانو ناولی لاس زمور د سیمو څخه غوڅ شوی و. او دوی (فرنګیان) د هندوستان او بنګال د ساتنې په فکر او خیال کښې وو او دومره جرئت او قوت پکښې نه و پاتې شوی؛ چې یو قدم یې زمور مجاهدینو د مورچلونواو د افغاني خاورې په لور اوچت کړی وای او هغه وخت مور مجاهدینو د جهاد او مجاهدې د سنګر له لارې فرنګیان دې لره په ګونډه کړي وو چې د امیر عبدالرحمن خان او د ډیورنډ د پولې د افغانانو خپلواکي او یا د هغوی نښلول په افغانستان پورې قبول کړي ځکه چې فرنګیانو د خپل پوځي ضعف او کمزورۍ په لیدلو سره د متارکې او اور بند پېشنهاد کړی و، فرنګیان د جنګ په مورچل کښې زمور له لاسه مغلوب شوي وو. او دې لره تیار وو چې د غالب قوت ټول شرایط په ځان باندې ومني.

فرنګیانو ته اباد او ودان هندوستان او بنګال ارزښت او اهمیت درلود، زمور په خوار او سپېره ډاګیز او غرني وطن کښې هغوی څه نه لیدل؛ چې تر حد او اندازې نه یې زیات

وربـاندې تېنـګار کړی وای نــو کــه هغــه وخــت د افغانســتان د حکومـت نمـاینده ګانـو پـه فرنګیـانو بـاندې د زړه لـه کومــي نــه سیاسـي زور اچـولی وای د افغانسـتان د پولـو ننګیـالي افغانـان بـــه هم پـوره خپلواکـی تـه رسېدلي وای. اعلیحضرت امـان الله خـان به په وروستنیو بدبختیـو نـه وای اختـه شـوی؛ او نـن بـه هـر افغـان پـه سـتر احمـد شـاهي کـور کښې ژونـد کـولای او دا چـې ولـې د افغانسـتان د حکومـت نمـاینده ګانـو پـه هغـه مناسب زمـان کـښې زمـوږ د برخلیـک پـه اړونـد پـه فرنګیـانو بـاندې فشـار را نــه وړ د هغه واقعیت او حقیقت ښتـــن تعـالی تـه پـوره معلـوم دی.

د افغانسـتان د خپلواکـۍ د تـړون د لاس لیــک نــه څه وخــت نـه و وتلـی؛ چـې زمـوږ د سـېمو د نیولــو لــه پـاره د فرنګیـــانو او ګورکـه پوځـونـه یـو ځل بیـا زمـوږ پـه سـیمو کـښې راپیـدا شـول او دا ځل فرنګیـانو پـه پـوره ډاډ او اطمینـــان ســره د ۱۲۹۸ کـــال د ثور او جوزا د جنګونـــو د انتقـام اخیسـتلو لـه پـاره تیـاری نیـولی و. اوس (هغه وخـــت) مـوږ د فرنـګي او ګورکـه پوځـونـو پـه وړانـدې د جـهاد او مجـاهدې پـــه مـــورچـــل کـــښې یـــوازې وو، فرنګیـــان د مشـرقي او کندهـار پـه سـرحدي پولـو کـښې د جنـګ د رامخکـښې کېدو څخه پـــه امـــن او امـان وو زمـوږ پـه سـیمو کـښې فرنګیـانو تـه هغه ننګیالي او قـهرمان قومـي مشـران او مجـاهد علمـا پـه ګوتـه او نخښه وو چـــې د ۱۲۹۸ کـال د ثـور او جـوزا د خپلواکـۍ پـه جـهاد کـښې یـې د فرنـګي پـوځي ځواک او سیاسـي حیثیـــت تـــه زیـــات تـــاوان اړولی و.

فرنګیـــانو د ۱۲۹۸ کـــال د افغانســـتان د خپلواکـــۍ د جـــهاد د انتقـام اخیسـتلو لـه پـاره زمـوږ مجـــاهدینو پـــه قومــي مشــرانو او قومونـو بـــاندې د جنـــګ د غرامــت پـــه نـــوم درنـــدې جریمـــې

وټاکلې، دا جریمې په لکونو روپۍ او د جنګ په اوږدو کښې د فرنګیانو څخه غنیمت شوي ټوپک وو، دا نقدي جریمې ټاکل او د غنیمت شوو ټوپکو (سرکاري ټوپکي) ټولو د فرنګیانو یوه سیاسي بهانه او پلمه وه، په اصل کښې د فرنګیانو هدف او مقصد دا و چې زموږ ننګیالي او قهرمان ولس راښکیل کړي. د قومونو او قبیلو خلک د خپلو مشرانو په وړاندې راوپاروي او هغه پوځي مرکزونه او چوڼۍ چې د ۱۲۹۸ کال د خپلواکۍ په جهاد کښې زموږ مجاهدینو په لاس کښې کښېوتلې وې، فرنګیان په خپل اختیار کښې ولري او د فرنګیانو چې هره شېبه او هره ګنټه زړه وغواړي. نو د همدغو پوځي مرکزونو او چوڼیو څخه په استفادې زموږ د مجاهد ولس د کوټلو او په موږ کښې د جهاد او خپلواکۍ د عشق او محبت د ورکولو له پاره په هر لور جنګي او پوځي سوقیات وکړي.

## د فرنګیانو جنګي سوقیات د خپلواکۍ له جګړې نه وروسته

د افغانستان دحکومت سره د خپلواکۍ د تړون او معاهدې نه وروسته؛ فرنګیانو د ځان سره دا پرېکړه او فیصله کړې وه، چې په مناسب وخت او مناسب فرصت کښې به زموږ مجاهدینو د ځپلو او د پوځي مرکزونو او چوڼیو د بیا تر لاسه کولو له پاره په هر لور جنګي او پوځي سوقیات کوي اود خپل دې عمل له پاره به بهانه او پلمه لټوي.

فرنګیانو، زمونږ مجاهدینو سره د حساب د پاکولو له پاره د ۱۲۹۸ کال په نیمایي کښې چې د عقرب میاشت وه او د خپلواکۍ د جګړې څخه څلور میاشتې تېرې شوې وې خپل جنګي او پوځي عملیات دتوچي د بندر په لور پیل کړل، په توچي کښې د اتمانزو وزیرو بهادر او غیرتي قوم مېشت و. ملک دندخان، زنګي خان او عبدالله خان یې ستر ننګیالي او مېړني مشران وو، د فرنګیانو څنګه چې عادت دی نو یې لومړی د خپلو الوتکو په ذریعه په توچي کښې د عامو خلکو کورونه بمباري کړل او د هغه څخه یې هدف داو چې د اولس جهادي روحیه د الوتکو د بمونو په اورولو سره ووژني نو د هغه په تعقیب یې د خپلو پیاده پوځیانو جنګي عملیات او سوقیات د اتمانزي وزیرو د قهرمان قوم په سیمو کښې اغاز کړل او په دې بې رحمانه جنګي عملیاتو او سوقیاتو کښې تقریبا پنځلس زره تنو د فرنګي او ګورکه لښکریانو ونډه درلوده.

د فرنګي او ګورکه پوځیانو په خپلو دې جنګي عملیاتو اوسوقیاتو کښې د اتمانزي وزیرو د قوم څخه د توچي؛ تته خېلو او میرانشاه پوځي چونۍ او مرکزونه ونیول او په بې حده شقاوت سره یې د ۱۲۹۸ کال د خپلواکۍ د جګړې په جرم په ولس باندې درنده جریمه حواله کړه او هم یې د غنیمت شوو ټوپکونو (سرکاري ټوپکو) د بېرته تحویلۍ غوښتنه او مطالبه د قوم څخه وکړه، د اتمانزي وزیرو قبیله چې د قهرمان او بهادر وزیري قوم یو غښتلی او غیرتي ښاخ دی او تل یې د دښمن سره په جګړو کښې مېړانه او شجاعت ښکاره کړې دی ولې د زیات مجبوریت او بې وسۍ په اساس مشرانو او قوم د فرنګیانو شرطونو ته غاړه ټیټه کړه، یو شمېر غنیمت

شـوې ټوپکـې يـې فرنګيـانو تـه وسپارلې او هغــه نقــدي جرمانــه چې مغلوبــو فرنګيـانو پـه مشرانو او د قـوم پـه سرو ټاکلـې وه هغـه فرنګيانو ته تحويــل شـوه.

په هغو شپبو او ګنــټو کښې چـې فرنګيـانو د تـوچـي، تتـه خېلـو او ميرانشـاه پـه سيمو کښې خپـل پـوځي عمليـات تـر سره کـول. زموږ د ټولـو قومـي مشـرانو، دينـي علمـاو او مجـاهدينو حيرانتيـا او تعجــب دا و چــې د فرنګيــانو د همدومــره جنــګي عمليــاتو او پـوځي سـوقياتو پـه وړانـدې د افغانســتان حکومــت ولــې تــيري کوونکـو فرنګيـانو تـه شـکايت نـه کـوي. مـوږ مجـاهدين پـه خپلـه حيرانتيــا او تعجــب کــښې حــق پــه جــانب وو ځکــه چـــې د اعليحضـرت امـان الله خـان پـه پلـوي مـوږ د فرنګيـانو دښمنـي پـه سر بـاندې اخيسـتلې وه او هـم زمــوږ د مــال او ځان قربـاني وه چې فرنګيان مو د افغانستان حکومــت تـه پـه ګونـډو کـړل.

کلـه چـې اتمـانزي وزيـرو د زيـات مجبوريـت او بـې کسـۍ پـه اساس د فرنګيـانو سـره جـوړه او مصالحـه وکـړه نـو فرنګيـانو خپـل جنـګي عمليـات او پــوځي ســوقيات د ۱۲۹۸ کــال د قــوس پــه مياشـت کـښې د مسـودو د جنګيـالي او پـه خپلواکـۍ مـين قـوم پـه لوري پيل کړل، فرنګيانو بيـا هغـه جنـګي کړنـلاره غـوره کـړه چـې پـه تـوچـي، تتـه خېلـو او ميرانشـاه کـښې يـې اختيـار کـړې وه، فرنګيانو لومړی د خپلــو الوتکـو څخـه د مسـودو د قـوم پـه کورونـو باندې بمونــه وغـورځول چـې د ولـس جنـګي روحيـه او د دښمـن پـه وړانـدې جهـادي اراده ووژنـي ولـې د مسـودو ننګيـالي او سـر تيري قــوم ببلـه کومـې ويـرې او ډار څخـه د فرنګيـانو پـه وړانـدې د جګړې او جـهاد اعـلان د خپلـو مېړنـو مشـرانو (عبـدلي موسـی خـان ملکـي جرنيـل، مـلا فضـل الديـن اخنـد د مـلا پونـده اخنـد

زوی، قطب خان د پاچا خان زوی، موسی شارني مسود، قاضي صاحب امیر شاه خان او شابران خان) په ژبه وکړ.

هغه وخت چې فرنګیانو خپل جنګي عملیات او سوقیات د مسودو د قوم په لور اغاز کول؛ زه په وانه کښې وم، د احمدزی وزیرو د قوم مشرانو د ملاهمزالله اخند تر قیادت لاندې د قوم د مشرانو اوعلماو غونډه جوړه کړه او په هم هغه غونډه کښې ټولو مشرانو دا فیصله وکړه چې د احمدزي وزیرو د قوم مجاهدینو ته دې هدایت او قومانده وکړه شي، چې د مسودو په خنګ کښې دې د فرنګیانو د جنګي عملیاتو او پوځي سوقیاتو مقابلې ته په ځان او مال باندې ورووځي(ودرېږي).

فرنګیانو د خپلو الوتکو د بمبارد په ذریعه نه د مسودو د ننګیالي قوم جنګي او جهادي اراده کمزورې کړه او نه په دې وتوانېدل چې په مشرانو او ولس باندې خپل شرایط قبول کړي. نو هم هغه وو چې فرنګیانو د مسودو ننګیالي قوم او غیرتي مشرانو ته د سزا ورکولو تر نوم لاندې تر شل زرو (۲۰۰۰۰) نه زیات فرنګي او ګورکه پوځیان د جنګ او جګړې ډګر ته راولېږل، د فرنګي او ګورکه لښکرو دې بې رحمانه حملو او جنګي عملیاتو د افغانستان د حکومت په اداره کښې او د هغه نه بهر زموږ د سیمو د مجاهدینو د یو شمېر خوا-خوږو افرادو اسلامي او قومي احساسات راوپارول او هم یې اعلیحضرت امان الله خان د فرنګي او ګورکه پوځونو ددې ډول وحشیانه جنګي عملیاتو او پوځي سوقیاتو مستقبل ته متوجه کړ.

# د حاجي صاحب ملا عبدالرزاق خان اندړ وزیرستان ته راتلل

هغه وخت چې د فرنګي او ګورکه تر شلوزرو نه زیات وحشي او درنده پوځونود الوتکو او درندو توپونو په بدرګه د قهرمانو او غیرتي مسودو په سیمو کښې خپل جنګي عملیات کول او مېړني مسود او ننګیالي احمدزي وزیر د هغو عملیاتو مقابله کوله نو په هغو حساسو او نازکو شیبو کښې چې پر مونږ مجاهدینو باندې د انساني مرستو په اړوند ټولې دروازې تړل شوې وې او یوازې مو د څښتن تعالی د غیبي نصرت په لور لاسونه اوچت کړي وو نو هم هغه وو چې په هغو سختو ګنټو کښې د افغانستان په حکومت کښې زمونږ مجاهدینو لرغوني پلوي او د فرنګیانو سره نه پخلا کېدونکی دښمن (لوی مجاهد حاجي صاحب ملا عبدالرزاق خان اندړ) زمونږ مجاهدینو سره د دیني او قومي خواخوږۍ پر بنیاد او د جهاد سره د عشق او محبت په اساس مونږ مجاهدینو ته ځان راورساوه.

د حاجي صاحب ملا عبدالرزاق خان اندړ سره د کابل د حکومت له لوري لوی لښکر او پرېمانه مادي وسایل ملګري نه وو، د حاجي صاحب د لارې ملګه یوازې د هغه تنکی مجاهد زوی (ملا عبدالرحیم) او د ښرني ملا صاحب عبدالغني علیخېل وو، ولې د لښکرو او مادي وسایلو پر ځای یوازې د حاجي صاحب راتګ مونږ مجاهدینو او قومي مشرانو ته معنوي تسلي او ډاډ و. زمونږ د سیمو مجاهدینو ته ملا عبدالرزاق خان هم یو عظیم لښکر و او هم پرېمانه مادي او جنګي وسایل. د

حاجي صاحب په راتګ او ليدو سره زموږ د سيمو په ننګياليو او غيرتي مجاهدينو کښې د فرنګي او ګورګه بې شميره پوځونو په وړاندې يو معنوي جهادي قوت او طاقت را پيدا شو.

حاجي صاحب ملا عبدالرزاق خان اندړ زموږ سيمو ته د کابل په پرېښودو سره د يوه ځانګړي جهادي پلان او نقشې سره راغلی و، نو کله چې حاجي صاحب وزيرستان ته راورسېد؛ فورا يې بېله کوم ځنډ څخه وانه ته نژدې په اشکي کښې د قوم د مشرانو او علماو څخه غونډه جوړه کړه او په دې ستره جهادي غونډه کښې قهرمان مجاهد د وزيرو ملا صاحب (ملا همزالله خان احمدزی وزير) هم ګډون درلود، ولې دې غونډې ته د مسودو د قوم ننګيالي او توورزن مشران نه راورسېدل ځکه چې دوی د فرنګيانو سره په سخته جګړه بوخت وو او غونډې ته يې دا احوال رالېږلی و چې ستاسو مشرانو هره پرېکړه او فيصله زموږ د قوم او مشرانو پرېکړه او فيصله ده.

د وانه د اشکي په ستره او تاريخي غونډه کښې د ټولو قبيلو مشرانو دا ژمنه او لوړه وکړه، چې د حاجي صاحب تر قيادت او هدايت لاندې به د فرنګي او ګورګه پوځونو په وړاندې د ژوندانه تر وروستيو ګنټو پورې جهاد او مجاهده کوي او هره قبيله مسئوليت او مکلفيت لري چې د مجاهدينو لښکر ته خپل سړي ورکړي، په دې غونډه کښې د ملا همزالله اخند په پېشنهاد سره؛ د قبيلو ټولو مشرانو په ګډه سره حاجي صاحب ملا عبدالرزاق خان اندړ ته زموږ د سيمو د رئيس المجاهدين لقب ورکړ او دا د ۱۲۹۸ کال د قوس مياشت وه،

د مسودو د ننګيالي قوم ټول افراد د فرنګيانو په وړاندې په سخت جنګ باندې بوخت وو.

## د حاجي صاحب تر قيادت لاندې زموږ مجاهدينو پوځي تشکيلات

حاجي صاحب ملا عبدالرزاق اندړ نه يوازې د دين عالم او ملا بلکې د هغه په څنګ کښې حاجي صاحب يو لوی مجاهد او د جنګي ډګر يو ستر قهرمان او سرتېری جرنيل او قوماندان هم و، هغه د يو اعلی غيرت او همت خاوند و او د فرنګيانو سره يې ځانګړې دښمني په زړه کښې درلوده حاجي صاحب د امير عبدالرحمن خان او امير حبيب الله خان د امارتونو په زمانه کښې د وزيرستان د تورزنو مجاهدينو او د هغوی د ننګياليو مشرانو سره نژدې جهادي اړيکې او روابط درلودل، ملاصاحب پونده او ملاصاحب همزالله خان يې ځانګړي جهادي ملګري وو، اندړ ملا صاحب د امير شيرعلي خان او اعليحضرت امان الله خان د سلطنتونو په دوران کښې د فرنګيانو په وړاندې د جهاد په مورچل کښې عملي جهاد او مجاهده کوله او همدا ټکی و چې حاجي صاحب ته د جهاد په مورچل کښې د يو مجاهد رېړې او مشکلات تر هرچا ښه معلوم او څرګند وو او هم يې دا درک او احساس کړې وه، چې د فرنګيانو په وړاندې د مجاهدينو د بري او کاميابۍ راز په څه کښې پروت دی؟ نو ځکه يې د خپل هغه درک او احساس په اساس بيله کوم ځنډ څخه د اشکي د غونډې نه

وروسته زمـوږ د سـيمو د مجـاهدينو پـه پـوځي تشـكيلاتو او انتظاماتو بـاندې لاس پـورې كـړ.

حـاجي صـاحب مـلا عبدالـرزاق خـان انـدړ تـه د ډيورنـد پـه پولـه كـښې د مېشـته افغـان قومونـو او قبيلـو ټول دودونـه او عنعنات معلـوم وو، ځكـه دى هـم د افغـاني يـوې سـترې قبيلـې غـړى و. د افغـاني قومونـو او قبيلـو تـر مينـځ اړيكـې او رقابتونـه ورتـه څرګنـد او معلـوم وو، زمـوږ د سيمو د قومونـو او قبيلـو ټول مشران، خانان، ملكان او علمـا يـې د نـژدې پـېژنـدل. او د هـر يـوه سره يې خپـل نـيك ارتباطـات سـاتلي وو.

حـاجي صـاحب مـلا عبدالـرزاق خـان (رئيـس المجـاهدين) د فرنګيـانو سـره د منظمـې مقـابلې او مقـاومت لـه پـاره د قومونـو او قبيلو لـه مجـاهدينو څخـه منظـم او منسـجم ملـي پـوځي غونډونـه، كنډكونـه، بلوكونـه او ټولى تشـكيل كـړل او د هـر غونـډ، كنـډك، بلـوك او ټولي د نظـم او ادارې لـه پـاره يـې د قـوم او مجـاهدينو د مشـرانو څخـه غونـډ مشـران، كنډكمشـران، بلوكمشـران او ټوليمشـران غـوره او انتخـاب كـړل، د حـاجي صـاحب دا تشـكيلات د يـوه دولـت او حكومـت د يـوه منظـم او منسـجم پـوځ د تشـكيلاتو پـه څير وو، د قومونـو او قبيلـو مشرانو مـلا عبدالرحيـم اخنـد(د حـاجي صـاحب عبدالـرزاق خـان زوى) او عبـدلي موسـى خان د مجاهدينو جرنيـلان وټاكـل، شـاه دولـه خـان تـه يـې د مـلا عبدالرحيـم اخنـد مرسـتيالي ور پـه غـاړه كـړه، هـم هغـه وخـت د قوم مشـرانو مـالره د غونـډ مشرۍ دنـده راكـړه او حـاجي صـاحب د رئيـس المجـاهدين تـر عنـوان لانـدې د ټولـو مجـاهدينو ويـاړلى مشـر و. دا ټول مقامونـه او رتبې؛ ملـي منصبونـه وو، مـوږ نـه تنخـوا او نه معـاش درلـود.

## د فرنګیانو په وړاندې د جهاد په مورچل کښې د مجاهدینو مشران

۱- حاجي صاحب ملاعبدالرزاق خان اندړ(رئیس المجاهدین)، ۲- لوی مجاهد او روحاني شخصیت ملا همزالله اخند، ۳- ملا فضل الدین اخند (شهزاده صاحب) د ملاپونده اخند زوی، ۴- ملاعبدالرحیم اخند د ملا عبدالرزاق اخند زوی، ۵- ملا عبدالغني خان علیخېل (د ښرني ملاصاحب)، ٦- قاضي صاحب امیر شاه خان قریش، ۷- لوی مجاهد عبدلي موسی خان، ۸- انګور خان، ۹- شېرجان خان ( د ګوملې)، ۱۰- موسی شارنی مسود، ۱۱- سرکي خان، ۱۲- ملک هفته خان، ۱۳-مشرف خان، ۱۴-دلباز خان، ۱۵-ملک ګلبدین خان، ۱٦- ملک عبدالله جان خان، ۱۷- شاه دوله خان، ۱۸- شیرګی خان، ۱۹- امین شاه خان (اتمانزی سیفلي)، ۲۰- اصیل خان (جاني خېل)، ۲۱- ملک شېر غنیخان، ۲۲- قلم الدین خان، ۲۳- ګل محمد خان (مسود)، ۲۴- شاه بهرام خان (مسود)، ۲۵- میراجان خان، ۲٦- قطب خان (د پاچا خان زوی)، ۲۷- رمضان خان، ۲۸- عبدل خان (زلي خېل)، ۲۹- شاه زمانخان، ۳۰- سدوخان، ۳۱- پایوخان، ۳۲- علي خان (زلي خېل).

## د وزیرستان د مجاهدینو هجرت افغانستان ته

فرنګیانو چې د ۱۲۹۸ کال دخپلواکۍ په جګړه کښې زموږ مجاهدینو له لاسه سخته ماتې وخوړله او د افغانستان د

حکومت سره يې متارکه وکړه د اور بند او متارکې نه وروسته فرنګيانو د خپلې تللې جنګي ابرو د بيا تر لاسه کولو له پاره نيت او اراده وکړه چې زموږ د سيمو سياسي او نظامي اداره په لاس کښې ولري. نو يې زموږ مجاهدينو په وړاندې په زرګونو د فرنګي او ګورکه لښکرې د جګړې ډګر ته راسوق کړې، د هوا څخه به يې زموږ د مجاهدينو او عام ولس په کورونو باندې بمونه اورول، رمې او ګلې به يې راته په باروتو سوځولې او هم به يې د مځکې نه د درندو توپونو په ګوليو زموږ کورونه ورانول. د فرنګيانو د هغه سخت وحشت سره زموږ د سيمو غيرتي خلک د خپلو مشرانو تر څنګ د فرنګيانو په وړاندې په مېړانه او شجاعت سره وجنګېدل بهرنۍ دنيا زموږ مجاهدينو بې مثاله مقاومت ته هک پک تللې وه.

د فرنګيانو په وړاندې په ټولو جګړو کښې موږ مجاهدين په تنهايۍ جنګېدو او د يوه الله (ج) د مرستې او نصرت اميد راسره پاتې و، د افغانستان د حکومت مرسته هم دومره نه وه چې د هغې په ذريعه موږ مجاهدينو يو ځل بيا د فرنګي او ګورکه پوځونه نيست او نابود کړي واى، د سياست په محاذ کښې د افغانستان د حکومت ملاتړ هم نه په سترګو کېده او دې خبرې فرنګيان تر حد زيات دلاوره او ډاډه کړي وو، موږ مجاهدينو د افغانستان په حکومت باندې په قومي او اسلامي اساس دا دين درلود چې زموږ ملاتړ يې په پوځي او سياسي سنګر کښې کړى واى ځکه چې د ۱۲۹۸ کال د خپلواکۍ په جګړه کښې موږ د کندر، ږوب، ګومل او وزيرستان مجاهدين د اعليحضرت امان الله خان په طرفدارۍ د فرنګيانو په وړاندې په ځان او مال باندې جنګېدلي وو، وړ او مناسب دا

وه چې په هغو سختو شېبو او ګنتو کښې د افغانستان حکومت زموږ مجاهدينو ملاتړ د فرنګيانو په وړاندې د جهاد په محاذ کښې په نبغه سره کړی وای لکه څنګه چې موږ مجاهدينو په ځان او مال باندې د افغانستان د خپلواکۍ په هيله د فرنګيانو دښمني په سرباندې اخيستې وه، هغه وخت چې فرنګيانو زموږ غرونه او رغونه د مجاهدينو په سپېڅلو وينو رنګول؛ د افغانستان حکومت ته دا ضرور وه چې په ډاګه سره يې زموږ ملاتړ اعلان کړی وای.

د افغانستان د حکومت لخوا فرنګيانو ته دا ويل: چې حاجي صاحب ملا عبدالرزاق خان اندړ د کابل نه وزيرستان ته تښتېدلی دی فرنګيان نور هم دلاوره کړي وو، چې زموږ پر کلو او کورونو باندې خپل پوځونه راوخېژوي، په پوره تنهايي او د ټولو ربړو او مشکلاتو سره موږ مجاهدين د فرنګيانو په وړاندې تر هغه وخت پورې د جنګ او جګړې په مورچل کښې ودرېدلو چې زموږ انساني توان او طاقت و. د فرنګي او ګورکه پوځونو سره د پوره دوه نيمو کلونو جهاد او مجاهدې په اوږدو کښې زموږ مجاهدينو څخه په زرګونو قهرمانانو باندې هديرې ډکې شوې او په زرګونو ناويانو د کونډتون تور پړونی په سر کړل، ولې موږ مجاهدينو هم د خپل هر قهرمان شهيد په عوض او بدله کښې د فرنګي او ګورکه پوځيانو په سلګونه سرې نيست او نابود کړل.

د حاجي صاحب (رئيس المجاهدين) تر سپېڅلي جهادي قيادت او قوماندې لاندې د دوه نيمو کالو جهاد او مجاهدې او مقاومت په اخيره کښې چې ۱۳۰۰ هجري کال و. نو فضيلت پناه حاجي صاحب ملا عبدالرزاق خان اندړ موږ د

وزیرستان مجاهدینو ته چې د فرنګي او ګورکه پوځونو د لاسه ژوند کول راته ګران وو. دا زمینه مساعده کړه چې د یو عالم پریشانۍ او خپګان سره افغانستان ته لېږدېدنه وکړو ځکه فرنګیانو د دوه نیمو کلونو جنګ په اوږدو کښې زموږ په ټولو سیمو باندې قبضه او سلطه حاصله کړې وه او زموږ مجاهدینو چې په غرونو او رغونو کښې مو استوګنه وه، په ژوندي نیولو او وژلو باندې انعامونه ټاکلي وو.

فرنګیانو ته د مجاهدینو فرد فرد معلوم او په ګوته و او دا هم ورته څرګنده او ښکاره وه چې کوم کس او کوم قومي مشر څومره او چېرې فرنګي پوځونو ته مالي او ځاني تاوان رسولی دی.

زموږ مجاهدینو لېږدیدنه د رئیس المجاهدین ملا عبدالرزاق خان په لارښودنه او هدایت سره په ۱۳۰۰ هجري کال کښې پیل شوه، یو شمېر زما د مورچل ننګیالي او قهرمان مجاهدین په برمل کښې مېشته شول، ما (یار محمد خان مریاڼي) او زما یو تعداد مجاهدو ملګرو ته زموږ د هستۍ او دارایۍ په عوض کښې د افغانستان د حکومت لخوا د اعلیحضرت امان الله خان غازي په فرمان د کندهار ولایت د شاه جوی په سیمه کښې دولتي ځمکه راکړه شوه، چې په شاه جوی کښې زموږ لېږدېدلو مجاهدینو شمېر درې سوه (۳۰۰) نفرو ته رسېده او په دې نوې سیمه کښې چې د افغانستان حکومت راباندې پېرزوینه کړې وه، موږ د وزیرستان مجاهدین د تره کو، توخو، ناصرو او سلیمانخېلو قومونو ګاونډیان شوو.

# مالره د ملا عبدالله او ملا عبدالرشيد بلنه

زه او زما مجاهد وزيري ملګري چې د ژوند زياته برخه مو د فرنګي او ګورکه پوځيانو سره په جهاد او مجاهده کښې تېره کړې وه. په ۱۳۰۰هجري (۱۹۲۱ع) کال کښې د کندهار ولايت په شاه جوی نومي سيمه کښې په هغه ځمکه باندې مېشته او استوګن شوو چې د اعليحضرت امان الله خان په امر او فرمان سره مونږ لره راکړه شوې وه. په شاه جوی کښې مونږ خپل ژوند د ابتدا نه پيل کړ. ځکه هر څه مو د فرنګيانو سره په جهاد کښې د لاسه ورکړي وو. شپه او ورځ بوخت او لګيا وو خو ژوند سنبال کړو. ولې په نوې مېنه کښې زمونږ پوره دوه کاله هم نه وو وتلي چې په جنوبي کښې د فرنګيانو په لاسوهنې سره د جنوبي اکثريت قومونو او قبيلو د ملا عبدالله ګرديزي او ملا عبدالرشيد په پلوی د اعليحضرت امان الله خان غازي د سلطنت په وړاندې اغتشاش او قيام وکړ.

د جنوبي په پاخون کښې درست جنوبي د اعليحضرت امان الله خان د سلطنت له ادارې څخه ووت. د ملا عبدالله او ملا عبدالرشيد په مشرۍ قيام کوونکو لوګر، غزني، او وردګ هم د حکومت له ادارې څخه بهر کړل.

کله چې په جنوبي کښې د ملا ګرديزي او ملاعبدالرشيد په رهبرۍ باندې پاخون پيل شو نو د سلېمانخېلو د قوم نه زياتې قبيلې او د هغوی مشران په خڼګ کښې ورسره ودرېدل. په شاه جوی کښې مونږ د وزيرستان مجاهدينو ته چې د فرنګي څخه غنيمت شوې ټوپکې او کارتوس مو درلودل، حاجي ادم

خان محمد خېل او پاچا خان شه خېل چې د سلېمانخېلو مشران وو راغلل او د اعلیحضرت امان الله خان په مخالفت يې په سيمه کښې اغتشاش کولو ته بلنه او دعوت راکړ، موږ له هغوی نه دوې ورځې مهلت وغوښت چې په خپلو مینځو کښې خبرې او جرګې وکړو، په شاه جوی کښې ما او زما مېشته ننګياليو مجاهدينو دا پرېکړه او فيصله وکړه چې په ځان او مال به د اعليحضرت امان الله خان د دښمنانو په وړاندې مقاومت کوو، حاجي آدم خان او پاچا خان ته مو خپله دا پرېکړه د عبدالحق خان او شاه زمان خان زليخېل وزير په لاس ولېږله، د سلېمانخېلو مشران په دې وپوهېدل چې په قلات، شاجوی، جنډه او مقر کښې د امان الله خان په وړاندې قيام قومي جنګ او جګړې راولاړوي ځکه په دې سيمو کښې موږ د وزيرستان مجاهدين يوازې نه وو زما خپل قوم مريانې هم په زيات شمېر په همدې سيمو کښې مېشته وو، د خروټو د قوم مشر (مراد خان) هم زموږ ملګرى او پلوي وُ. نو هم هغه وو چې حاجي آدم خان او پاچا خان د اغتشاش کولو څخه لاس واخيست، او د موقع تر لاسه کولو په انتظار شوه.

د ملا عبدالله او ملا عبدالرشيد د اغتشاش ملګري هره شېبه او هره ګنټه په زياتېدو وو او کله چې ما وليدل چې د امان الله خان په مخالفت قيام کوونکي ورځ په ورځ په قوت او طاقت کښې دي نو په هم هغه وخت او زمان کښې موږ مجاهدينو سدوخان اتمانزي وزير او علي خان زليخېل وزير د يوه ليک سره کابل ته ولېږل چې اعليحضرت امان الله خان غازي ته دا خرګنده او ښکاره کړي چې موږ د وزيرستان مجاهدين زما تر قيادت لاندې دې لره تيار او اماده دي چې د برمل له لارې

د وزیرستان ننګیالي او سرتېري د قیام کوونکو د ځپلو له پاره د جګړې ډګر ته داخل کړو، ولې افسوس چې سدوخان او علي خان د اعلیحضرت امان الله خان د درباریانو د بې پروایی او غرور په اثر د اعلیحضرت مقام ته ورانديې نه شول او نه چا د هغو غرني مجاهدینو په لاس کښې لیک دربار ته ورساوه، کابل ته زما لېږل شوي سړي په څټ شاه جوی ته ناهیلي راغلل.

د ملا عبدالله او ملا عبدالرشید قیام پوره یو کال اوږد شو او کله چې د جنوبي د قومونو او قبیلو یو شمېر مشران، خانان، ملکان او علمأ په دې باندې وپوهېدل چې د ملاعبدالرشید او سردار عبدالکریم خان پنجابي سره د افغانستان د خپلواکی او پرمختګ د دښمنانو لاس دی نو ورو ورو د قیام کوونکو د ملګری څخه وګرځېدل او د هغه په نتیجه کښې د اعلیحضرت امان الله خان پوځیان په قیام کوونکو باندې بریالي شول. سردار عبدالکریم خان واپس فرنګیانو ته ځان ورساوه، ملا عبدالله، ملا عبدالرشید او د قومونو هغه علماء او مشران چې د دوی په څنګ کښې د حکومت په خلاف جنګېدل د اعلیحضرت امان الله خان د پوځیانو په لاس کښېوتل، ملا عبدالله او ملا صاحب عبدالرشید د قیام په جرم حکومت اعدام کړل او د قومونو او قبیلو خانانو او ملکانو ته اعلیحضرت امان الله خان غازي عفوه او بخښنه وکړه او دا یې ورته په ګوته او څرګنده کړه، چې تاسو خانان او ملکان د ملاعبدالله او ملا عبدالرشید او سردار عبدالکریم خان د مکر او فریب په دام کښې راغلي واست.

# د مغرضو درباریانو په مشوره د امان الله خان لو مړنۍ تېروتنه

اعلیحضرت امان الله خان غازي یو ستر شخصیت او د اسیا د ملتونو وتلی قهرمان و، د هغه په شخصیت او قهرمانۍ کښې بابېزه خبره نه ځایېږي، د وطن او خپلواکۍ سره یې پوره مینه وه او په مېړني اولس باندې یې ویسا او باور و، هغه وخت چې د افغانستان حکومت په درست افغانستان کښې دوې منظمې فرقې او پوځیان نه درلودل، اعلیحضرت امان الله خان دخپل هېواد د خپلواکۍ سره د عشق اومحبت په بنیاد او د خپل اولس د شهامت او غیرت په ډاډ درلودلو سره دفرنګیانو په وړاندې چې په جنګ عظیم کښې یې سوبه په برخه شوې وه، د افغانستان د خپلواکۍ او جهاد اعلان وکړ.

د اعلیحضرت امان الله خان سره د نژدې دوه ځلې ما لیدنه او کتنه کړې ده، یو ځل مې په کابل کښې او بل ځلې مې په شاه جوی کښې کله چې د یورپ د سفر څخه راستون شوی و ملاقات کړی دی، هغه د سوچه افغاني اخلاقو او ادابو یو بشپړ مثال و، هغه د خپل نیکه په څېر د سلطنت په نشه مست نه و؛ د خانانو، ملکانو، علماو او مشرانو یې زیات احترام او پالنه کوله، د اعلیحضرت امان الله خان ټول بیان د خپلواکۍ او خپل بېچاره اولس سره د عشق او محبت خبرې وې، د هغه سره دا هیله او ارزو وه، چې اولس یې خپلواک، ارام، سوکاله او د نړۍ د ملتونو سرتاج وي، د مشرانو سره یې خپلې اړیکې په سلطنتي ارګ کښې د هغوی د اولادونو د

روزنې لـه لارې ټینګولې او هـم دا وجـه وه چې د شاه جـوی پـه ملاقـات کـښې یـې زمـا ځخـه دا هیلـه وکـړه چـې زمـا کشـر تـره (نورمحمد) هم د خـانزاده ګانـو تـر روزنـې لانـدې ونیسـي ولـې مـا د اعلیحضـرت امـان الله خـان دا نیکـه او سـپیڅلې هیلـه بـل وخت ته موقـوف کـړه.

د اعلیحضـرت امـان الله خـان پـه قیافـه کـښې د هغـه د قهرمانـۍ نخـښه څرګـنده او روښانـه وه او د هغـه همـدا د قهرمانـۍ نخـښه او علامـه وه چـې پـه خپـل اولـس بـاندې مـهربان، زړه یـې نـرم او مـلایم وُ، ولـې ارمـان چـې هغـه د آسیا د ملتونـو قـهرمان د خود غرضـه درباریـانو پـه دایـره کـښې رابنکـېل شـوی وُ او د دربـار د هرکس دا ناروا هیلـه او امـېد وُ چـې د هغـه ویسـا لرونکـي ځخـه نـاوړه اسـتفاده وکـړي. د اعلیحضـرت امـان الله خـان غـازي هـم د هغـوی پـه چـاپلوسـۍ او غـوړه مالـۍ بـاندې اعتمـاد او بـاور وُ، د سـلطنت پـه چـارو کـښې یـې د هغـوی مشـورې اورېدلـې او هغـه خطرنـاکې مشـورې یـې عملـي کولـې او هغـه وخـت مـوږ د کـندر، وزیرسـتان، ږوب او ګوملـې مجـاهدینو فرنګیـان نیسـت او نـابود کـړي وو، اعلیحضـرت امـان الله خـان د درباریـانو صلاح او مشـورو تـه غـوږ ونیـوه او د مغلـوب دښمـن سـره یـې د ځان او ولـس پـه تاوان د جنګ متارکـه وکـړه او پـه لکونـو افغانـان یـې لاس تـړلي د افغاني خاورې سـره فرنګیـانو تـه وسپارل. دا د هغـه قـهرمان سـتره او لویـه تېروتنـه وه چـې د خپـل سـرتېري او مجـاهد اولـس د برخلیک په برخه کـښې یـې د خـود غرضـه درباریـانو مشـوره ومنلـه او دښمن ته یې پـه خپلـه خـاوره کـښې د ژونـد کولـو زمینـه برابـره کـړه ځکـه نـو د هـم دې سـترې اشـتباه د پیـل نـه د اعلیحضـرت امان الله خان د سـلطنت کولـو شـپې رالنـډې شـوې او یـو پـه بـل

پسې د فرنګيانو په لمسون قيامونه او پاڅونونه آغاز شول او د اعليحضرت امان الله خان د سلطنت ستنې يې ولړزولې.

## فرنګيان هره ګنته د اعليحضرت امان الله خان څخه د انتقام په تلاش کښې وو

د ۱۲۹۸ کال د افغانستان د خپلواکۍ جهاد د فرنګيانو په وړاندې او بيا د فرنګي او ګورکه پوځيانو ماتې او شکست؛ د متارکې او دزبندۍ څخه وروسته هغوی (فرنګيان) دې لره متوجه کړل چې څرنګه، څه وخت، د کوم ځای نه او د چا په لاس باندې د خپلې ړژېدلې آبرو غچ او انتقام د مجاهدينو او د افغانستان د حکومت (اعليحضرت امان الله خان غازي) څخه واخلي او کله چې اعليحضرت امان الله خان د خپلو جرنيلانو او کرنيلانو په صلاح او مشوره سره د فرنګيانو لخوا د متارکې پېشنهاد ته غاړه کښېښوده نو فرنګيانو وخت غنيمت وګاڼه چې زموږ مجاهدينو څخه د ۱۲۹۸ کال د خپلواکۍ د جګړې او د ور اوښتو زيانونو انتقام واخلي. لکه چې د همهغه انتقام اخيستلو له پاره يې د ۱۲۹۸ کال د عقرب په مياشت کښې د وزيرستان ټولو سيمو ته پوځي سوقيات پيل کړل او پوره دوه نيم کاله يې د نظامي چونيو، مرکزونو او لارو د لاس ته راوړلو له پاره په قهرمانو مجاهدينو باندې ناروا جنګونه تحميل کړل.

هغه وخت چې فرنګيان په دې باندې وتوانېدل، چې په وزيرستان کښې يو ځل بيا خپلو پوځيانو ته د پښو ايښودو ځای پيدا کړي نو يې د هغه سره جوخت د اعليحضرت امان الله

خان څخـه د انتقـام اخیسـتلو د پلانونـو او نقشـو د عملـي کولـو لـه پـاره قـدم اوچـت کـړ، دا هغـه وخـت و، چـې مـــور مجــاهدین د زیـات مجبوریـت او بـې وسـی لـه کبلـه د وزیرسـتان څخـه لېږدېدلي وو، فرنګیـانو د امـاني سـلطنت د ړنګولـو لـه پـاره پـه ۱۳۰۳ هجـري کـال کـښې د جنوبـي پـه سـمت کـښې د مـلا عبدالله او مـلا عبدالرشید پـه لاس بـاندې قیـام او اغتشـاش پیـل کړ، سردار عبدالکـریم یـې د پنجـاب نـه ورتـه راولېږه، د جنوبـي د قیـام پـه ذریعـه فرنګیـانو د یـوه پلـو څخـه د اعلیحضـرت امـان الله خـان د سـلطنت پـایې کمـزورې کـړې او د بـل لـوري نـه یـې د افغان ولـس پـه زړه کـښې د اعلیحضـرت امـان الله خـان پـه ارتبـاط نفرت او شـک راولاړ کـړ.

فرنګیـانو د مسـلح قیـام پـه ځنـګ کـښې د یـو شـمېر علمـاؤ او مشـایخو او روحـانیونو پـه ژبـه پـه اعلیحضـرت امـان الله خـان بـاندې د قادیـاني او کفر تـور ولـګاوه؛ د امـان الله خـان پـه دربـار کـښې یـې درباریـان د اغتشـاش کوونکـو سـره وتـړل او د درباریـانو پـه لاس یـې د افغانسـتان استقلال طلـب پـاچـا تـه د ګـور کېنـدل آغـاز کـړل، د مـلا عبـدالله او مـلا عبدالرشـید د پـاځون پـه تعقیـب فرنګیـانو پـه مشرقي او شـمالي کـښې د یـو شـمېر غلـو او داړه اچوونکـو پـه واسـطه نـارامي رامخکـښې کـړه. او هغـه غلـه او داړه اچوونکـي یـې د درباریـانو او اعلیحضـرت امـان الله خـان تـه د نژدې روحـانیونو او مشـایخو پـه مرسـته سـره پـه درسـت افغانسـتان کـښې مشـهور او غښتلـي کـړل او هغـه پوځیـان چـې بـه حکومـت د قیـام کوونکـو د ارامولـو لـه پـاره لـېږل پوځیـان او د هغـو کرنیـلان بـه د داړه اچوونکـو پـه پلـه کـښې درېدل، دا د هغـو درباریـانو او مشـایخو پـلان او نقشـه وه؛ چـې د فرنګیـانو سـره یـې تـار اچـولی و

جرنیل سردار محمد نادر خان او ورونه یې په یوروپ کښې وو د وطن زیات کارونه وزیر صاحب عبدالاحد خان وردګ او وزیر صاحب عبدالعزیز خان اجرا کول، د افغانستان د خپلواکۍ او د سلطنت دښمنان د ۱۳۰۷ هجري کال د جدی په میاشت کښې په دې باندې بریالي شول چې خپل انتقام د اعلیحضرت امان الله خان او د افغانستان د مجاهد ولس څخه واخلي. او د افغانستان د خپلواکۍ محصل او محرک دې لره احتیاج کړي چې هغه د قهرمانۍ تاج، چې د هغه د پرسر کولو سره یې د فرنګیانو په وړاندې د خپلواکۍ جهاد اعلان کړی و. د یوه جهان هیلو او ارمانونو سره؛ غلو او داړه اچوونکو ته پرېږدي او د یوه نامعلوم برخلیک له پاره د کندهار لاره غوره او اختیار کړي.

## اعلیحضرت امان الله خان د کندهار په لور

اعلیحضرت امان الله خان د ۱۳۰۷ هجري کال د جدی په میاشت کښې چې د کابل نه تر قلات پورې د واورې څپرونه پراته وو او د ژمي سخت فصل و، د شمالي د قیام او اغتشاش په نتیجه کښې چې حبیب الله خان کوهدامني؛ ملک محسن خان او سید حسین په ظاهر سره د هغه قیام او اغتشاش قیادت او قومانده په لاس کښې درلوده او شا ته یې د اعلیحضرت امان الله خان درباریان، کرنیلان او یو شمیر مشایخ او روحانیون ولاړ وو، خپل تاج او تخت کندهار ته د تګ او هلته د مرستې غوندولو په نیت پرېښود او د ساړه ژمي په همدې

میاشت کښې اعلیحضرت غازي امان الله خان د خپلې خېلخانې او یو شمېر درباریانو سره کندهار ته ورسېد.

د افغانستان د خپلواکۍ محصل اعلیحضرت غازي امان الله خان دا ځل په دومره اوږده لیاره کښې چې په دواړو خندویې ګڼ شمېر قهرمان اولسونه او سلطنت ته وفادار غیرتي خانان او ملکان ابادو، د کوم کس سره ملاقات ونه کړ او نه هم کوم کس په دې باندې خبر شو؛ چې د دوی د کلي تر څنګ د خپلواکۍ د قهرمان ناهیلی قافله د کندهار په لور روانه ده.

هغه وخت چې اعلیحضرت امان الله خان د اروپا د سفر څخه د کندهار نه په دې اوږده لیاره باندې د کابل په لور د خپلې قافلې سره روان ؤ نو یې ددې لیارې په دواړو غاړو باندې د مېشته اولسونو د خانانو، مشرانو، ملایانو او ملکانو سره ملاقاتونه او د زړه خوا له وکړه ما او زما مجاهدو وزیري ملګرو په شاه جوی کښې د افغانستان د خپلواکۍ د محصل او د آسیا د قهرمان سره ملاقات وکړ. دا ځل چې اعلیحضرت غازي امان الله خان تاج او تخت داړه اچوونکو ته پرېښودلي وو او کندهار ته د یو نامعلوم برخلیک سره روان ؤ او هم نه د کندهار خانانو او مشرانو د مرستې ورکولو بلنه ورکړې وه نو ورته وړ او مناسب وه او د وخت غوښتنه هم دا وه چې د کابل نه تر کندهاره په هغه اوږده لیاره کښې د مېشته قومونو سره یې لیدلې او د هغه پخواني ازمویل شوو یارانو او اشنایانو سره یې د خپل آینده پلانونو په اړوند ملاقاتونه کړي وای ولې افسوس چې د کابل د پرېښودلو په دې سفر کښې د اعلیحضرت امان الله خان ډارن او جاهل مل درباریانو د هغه قهرمان څخه هر څه پټ او هېر کړي وو؛ خپله وېره او ډار یې

د هغه مېړني انسان په زړه ننه ایستلی وُ، د خپل اولس څخه د مرستې غوښتلو په اړه یې نهیلی او بدګومانه کړی وُ او تر دې چې د سلطنت د چنجیانو په اعلیحضرت غازي امان الله خان باندې د قومونو د مشرانو د ملاقات لورونه هم نه کېدله او د وطن هر څه یې د هغه تر سترګو دښمنان ګرځولي وو.

د کابل - کندهار اوږده لیاره چې اعلیحضرت غازي امان الله د خپلو درباریانو په صلاح او مشوره د کابل - جنوبي په عوض غوره او اختیار کړې وه او په دواړو څنډو کښې یې ګڼ شمېر غیرتي اولسونه آباد او مېشته وو، هغه قهرمان ضرور باید بېله د درباریانو د سلا او مشورې نه د کابل - کندهار د اوږدې لیارې د اولسونو د مشرانو سره ملاقاتونه کړي وای او هغه کسان چې تر هم هغه ګنتو او شېبو پورې د حبیب الله په پلوي نه وو درېدلي؛ ممکن وُ چې د اعلیحضرت غازي امان الله خان په طرف درېدلي وای او هم دلته د کابل د بیانیولو یو ستر لښکر تیار شوی وای. ولې د ډارنو او جاهلو درباریانو په سلا او مشوره د اعلیحضرت امان الله خان دې تېروتنې او اشتباه د غزني څخه تر قلات پورې اکثر قومونه او قبیلې (سلېمانخېل، تره کي، توخي او اندړ) دې لره اړ ایستل چې د داړه اچوونکو په پلوي د جګړې په ډګر کښې ودرېږي او پر نورو باندې هم دا زور واچوي چې د حبیب الله متابعت وکړي. او هم د کندهار د درانو په وړاندې د غلجو صف تیار کړي.

# هزاره جات ته د پښتون ملنګ په سفر کښې زما مرسته

د اعليحضرت غازي امان الله خان د سلطنت د نسکورولو له پاره په شمالي کښې د حبيب الله په قيادت باندې اغتشاش او قيام پيل شوی وُ، د شمالي اکثريت اولس د هغه قيام ملاتړ وُ او ورځ په ورځ دا قيام هر لوري ته خپرېده د امان الله خان يو زيات شمېر درباريان او په خپله يو تعداد سرداران هم په پټه د شمالي د قيام تر څنګ ولاړ وو هغه مشايخ چې اعليحضرت امان الله خان د هغوی د اعتبار او رسوخ څخه د قيام د اور په مړکولو کښې کار اخيسته، د هغوی لاس هم د اغتشاش کوونکو سره وُ او قيام کوونکو ته يې د اعليحضرت امان الله خان د کفر فتوې ورکولې، اعليحضرت امان الله خان د داړه اچوونکو په وړاندې تنها وُ؛ د هغه سره څو محدود ملګري په اوږه ولاړ وو، په دې وخت کښې د کابل د مشايخو او روحانيونو په سپارښت زمونږ په سيمو کښې د حبيب الله په پلوي د سلېمانخېلو، تره کو، اندړو او توخو په قومونو کښې فعاليت روان وُ او هم دا زمان وُ چې يو پښتون ملنګ زما مېلمستون ته راغی دا ملنګ نه ما پېژانده او نه مې په خپل ژوند کښې ورسره ملاقات شوی وُ او نه يې د غزني څخه تر قلات پورې په کوم قوم او اولس پورې اړيکه درلوده، ولې هغه پښتون ملنګ زه ښه پېژندلم په نااشنا دنيا کښې مې د هغه ملنګ پوره عزت او خدمت وکړ؛ شپه يې راسره سبا کړه او په سهار يې رانه هيله وکړه چې د خپلو سړو په لاس يې د هزاره جات تر پولو پورې په امن ورسوم، په هغه ګنټو کښې زما غيرت دا اجازه رانکړه چې د

هغه پښتون ملنګ نه د هزاره جات د سفر پوښتنه وکړم، د ملنګ هيله مې ترسره کړه، درې ننګيالي مې د هغه د لارې مله کړل چې دوه يې د وزيرستان مجاهدين او يو تن د شاه جوی مرياڼی و او هغه غيرتي پښتون ملنګ مې کله چې زه د خپلو لښکرو سره د ځاځيو علي خيلو ته ننوتم وليد او بيان به يې په خپل ځای کښې وکړم چې هغه څوک و او د څه له پاره يې هزاره جات ته سفر کړی و.

## په شاه جوی او قلات کښې د امان الله خان د مخالفينو په مقابل کښې زما محاربه

د اعليحضرت غازي امان الله خان په وړاندې د شمالي د اغتشاش او قيام په جريان کښې زه (يار محمد خان مرياڼی) او يو شمېر د ۱۲۹۸ کال د خپلواکۍ د جګړې د وزيرستان د محاذ قهرمان او ازمويل شوي مجاهدين د کندهار د شاه جوی په سيمه کښې په هغه ځمکه باندې مېشته او اباد وو چې د اعليحضرت امان الله خان په امر او لاسليک سره زمونږ د کندر او وزيرستان د ځمکو او دارايي په عوض کښې راکړه شوې وه او کله چې اعليحضرت غازي امان الله خان د کابل تاج او تخت داړه اچوونکو ته پرېښبود، نو دا وخت د غزني خخه تر قلات پورې اکثريت قومونه او قبيلې د داړه اچوونکو په خوا کښې ودرېدل او يوازې د غزني څخه تر قلات پورې په شاه جوی کښې مونږ د وزيرستان خخه رالېږدېدلي

مجاهدین: زما خپل مریانی قوم او د قلات پوځیان د اعلیحضرت امان الله خان په وفادارۍ پاتې وو. د خروټو د قوم مېړنی مشر مراد خان چې زما اشنا او ملګری ؤ هغه هم د اعلیحضرت امان الله خان په طرفدارۍ ؤ.

د اعلیحضرت امان الله خان خپل کابلي مشایخ چې د حبیب الله په تخت کښېنولو کښې یې لوی لاس درلود، د غزني څخه تر قلات پورې د مېشته قومونو او قبیلو مشران یې دې لره پارول چې په کندهار باندې لښکرکشي وکړي. او امان الله خان د کندهار څخه د یو بل ځای تللو ته مجبور او د جنګیالیو د راغونډولو څخه ناهیلی کړي او هم دا سبب ؤ چې د سقاو د زوئ (حبیب الله) د پلویانو دا هڅه او تلاش ؤ چې په کندهار باندې د لښکرکشۍ نه مخکښې مور په شاه جوی کښې مېشته د وزیرو مجاهدین د اعلیحضرت غازي امان الله خان د ملګرۍ څخه بېل او د حبیب الله په پلوي مو واړوي نو همهغه وو چې د خپل مقصد د ترلاسه کولو له پاره د شمالي د اغتشاش پلویانو د تره کي؛ سلېمانخېلو او اندړو قومونو د خانانو او مشرانو چې عبارت وو د: امین الله خان تره کی، عبدالمجید خان تره کي، عبدالرشید خان تره کي، محمد خان تره- کي (چې وروسته بیا د حبیب الله جرنیل شو)، عبدالقادر خان اندړ، حاجي ادم خان محمد خېل سلېمانخېل، پاچا خان شه خېل سلېمانخېل او محمد عمر خان علیزی سلېمانخېل. جرګه راولېږل. چې زمور څخه د سقاو د زوی (حبیب الله) له پاره بیعت واخلي.

کندهار ته د اعلیحضرت امان الله خان د تګ او د کابل د تاج او تخت د پرېښودو په خبر سره په شاه جوی کښې مور د

وزیرستان مجاهدینو دا پرېکړه او فیصله کړې وه تر هغه چې اعلیحضرت غازي امان الله خان د افغانستان په خاوره کښې وي، موږ به د بل هېڅ کس سره بیعت نه کوو او تر هغه به د امان الله خان ملګري کوو چې تر څو یو نفر راپکې ژوندی وي؛ نو مو د خپلې همهغه پخوانۍ او مخکینۍ پرېکړې او فیصلې په اساس د حبیب الله د پلویانو مرکې او جرګې ته د څښتن تعالی په توکل سره غوږ ځواب ورکړ او دا مو ورته په ګوته او څرګنده کړه چې تر څو اعلیحضرت غازي امان الله خان په خپله خاوره کښې وي تر هغه به زموږ یو فرد هم د سقاو زوی حبیب الله ته د بیعت او همکارۍ لاس ورنکړي او د حبیب الله د پلویانو د مرکې غړو ته مو وویل: چې اوس موږ تاسو ته د افغاني غیرت لمن نیسو چې د داړه اچوونکو د ملګرو او ملاتړ څخه لاس واخلئ او دا د افغاني غیرت په لمن کښې څه واچوئ، ولې خنګه چې هغوی د کابلي مشایخو مریدان وو او کابلي مشایخ د حبیب الله په خنګ کښې ولاړ وو نو یې زموږ په بیعت باندې ټینګار کاوه او زموږ خبره یې نه اورېدله همهغه وُ چې ببله کومې وېرې او ډار څخه مو د حبیب الله د مرکې او جرګې غړو ته په سپینه وویل چې زموږ او ستاسو په مخکې دوې بېلې لارې دي: جګړه او یا مېنه پرېښودل؛ او مېنه به ځکه تاسو ته خوشې نه کړو چې هغه زموږ پښتني ننګ او ناموس نشي منلی؛ زما په دې وینا سره بې واره او په ډېره بې صبرۍ سره زما یوه مجاهد ملګري د حبیب الله د پلویانو غوږ ځواب په دې ټکو سره ورکړ چې تر همدې ګنټو پورې مې په خاطر او ذهن کښې راګرځي:

*زه پښتون يم نه ډاريږم له لښکري*
*څو ژوندی يم لاس به وانخلم له توري*
*دا مې عهد، دا مې پيمان دا مې ايمان دی*
*ما دښمن سره وهلې دي ډغري*

زموږ په غوږ غوږ ځوابونو سره د حبيب الله د پلويانو د مرکې او جرګې رالېږل شوي مشران (امين الله خان تره کی، عبدالمجيد خان تره کی، عبدالرشيد خان تره کی، محمدخان تره کی، عبدالغفار خان اندړ، حاجي ادم خان سلېمانخېل، پاچا خان او محمد عمر خان سلېمانخېل) زموږ له لوري ناامیده ولاړ شوه او د خدای په امانی په وخت کښې محمد خان تره کی دومره راته وويل: "مريانۍ يارمحمد خانه! ان شاءالله چې ډېر ژر به يو ځل بيا همدلته سره وګورو".

## زموږ د بيعت اخيستلو له پاره د حبيب الله د پلويانو لښکر کشي

هغه وخت چې ما او زما مجاهدو غيرتي وزيري ملګرو د حبيب- الله د پلويانو مرکې او جرګې ته غوږ ځواب ورکړ، د تره کو، سلېمانخېلو او اندړو د قومونو او قبيلو معزز خانان او مشران زموږ له لوري نه خالي لاس رخصت شوه او بيا کله چې محمد خان تره کي راته وويل: "مريانۍ يار محمد خانه! ان شاءالله چې ډېر ژر به يو ځل بيا همدلته سره ګورو". نو په هم هغه شبه چې د سقاو د زوی د پلويانو، د خانانو او مشرانو مرکه او جرګه زموږ نه خالي لاس او ناامېده رخصتېده او بيا هم

محمد خان تره کي پورتنی وينا رالره وکړه. نو په زړه او فکر کښې راګرځېدل، چې ضرور به ډېر ژر څه پېښېږي.

د حبيب الله د پلويانو د مرکې او جرګې په رخصتېدو سره سمدستي ما د خپلو ملګرو چې د وزيرو جنګيالي مجاهدين وو او د مريانو غونډه جوړه کړه او د غونډې مجلس ته مې د محمد خان تره کي خبره څرګنده کړه. زموږ دا غونډه په خپلو مينځو کښې وه، پرديو او بېګانه سړو زموږ په غونډه کښې برخه نه درلوده. او د غونډې څخه زما مطلب دا ؤ چې د آينده ناخاپي پېښو په را وړاندې کېدو سره تيار واوسو. څنګه چې په شاه جوی کښې زما سره مېشته د وزيرو مجاهدينو او د مريانې قوم نارينه او ښځينه په مابانديې ويسأ او باور درلوده. نو د غونډې ټولو ګډون کوونکو د ځان او مال اختيارات ما لره وسپارل او دا يې لوړه وکړه چې د ژوند تر اخري ګنټې پورې به زما تر څنګ او زما تر مشرۍ او قوماندې لاندې درېږي او ماله چې د محمد خان تره کي د وينا جنګي اړخ څرګند شوی ؤ، د غونډې ټول غړي مې د هغه نه اګاه کړه او دا مې ورته په ګوته کړه چې د حبيب الله د پلويانو د ناخاپي بريد له پاره ټوپکونه تيار کړي او د شپې د پلو نه بايد څو کسه پيره وي.

څنګه چې ما او زما غيرتي ملګرو د حبيب الله د پلويانو مرکې ته د حبيب الله سره د نه بيعت ورکولو ځواب ورکړی ؤ او هغوی مو ناهيلي او خالي لاس رخصت کړي وو نو هم هغه ؤ، چې د محمد خان تره کي د وينا په مطابق د حبيب الله پلوي قومونو د ۱۳۰۷ هجري لمريز کال د حوت د مياشتې په اته وېشتمه (۲۸) نېټه پوره يو غونډ افراد د دوو توپونو او

ماشیندارو سره زموږ د وېرولو او ډارولو له پاره راولېږل او د کندهار - کابل د لویې لارې پر غاړه په قلا خېلو کښې چې د سلېمان خېلو د قوم افراد پکښې اوسېدل خپله مورچه ونیوله او یو ځل بیا یې د بیعت اخیستلو له پاره د عبدالحکیم خان تره کي، احمدخان علي خېل او سید احمد توخي تر مشرۍ لاندې مرکه او جرګه ددې لاندنیو شرطونو سره راولېږله:

۱. بې له جنګ او وینو تویولو به دحبیب الله بیعت ته غاړه ږدو. او د اعلیحضرت امان الله خان د طرفدارۍ نه به په ډاګه لاس اخلو، او د حبیب الله د پلویانو لښکر ته به خپل جنګي سړي د خپلو ټوپکو سره ورکوو.

۲. د لومړي شرط د نه منلو په صورت کښې به خپلې ټولې هغه وسلې چې زموږ په کورنو کښې دي په افغانستان کښې د جنګ او جګړې د پای ته رسېدو پورې سپارو.

۳. د لومړي او دوهم شرط د نه منلو په صورت کښې به لس تنه جنګي ځوانان د یرغمل په څېر سپارو.

۴. او که چېرې پورتنې درې شرطونه په ځان باندې نه ایږدو نو باید جنګ ته ځانونه تیار کړو.

ما او زما ننګیالو ملګرو ته د حبیب الله د پلویانو لخوا ددې ډول شرطونو وړاندیز او بیا هغه ته غاړه اېښودل، ستره بې ننګي او بې غیرتي وه. موږ په وزیرستان کښې فرنګیانو ته غاړه نه وه ټيټه کړې نو ځکه شاه جوی ته رالېږدېدلي وو او دلته اعلیحضرت امان الله خان غازي زما د پاتې شوي مال او جایداد په عوض کښې دولتي ځمکه راکړې وه نو دې به څنګه امکان درلود چې ما او زما ننګیالو ملګرو د حبیب الله د پلویانو د مرکې د غړو (عبدالحکیم خان تره کي، احمد خان

علي خېل او سيد احمد توخي) شرطونه او وړانديزونه منلي وای، نو ما او زما ملګرو د حبيب الله د پلويانو د شرطونو او وړانديزونو په ځواب کښې د مرکې غړو او استازو ته په غوڅه او بې له کوم ډار څخه وويل: "ځئ په عزت او احترام سره ولاړ شئ! خپلو نورو مشرانو او د سقاو زوی حبيب الله ته يې ورسوئ: چې موږ په شاه جوی کښې مېشته د وزيرو د محاذ مجاهدين او دلته د مريانۍ د قوم سري د يوه داړه اچوونکي سره بيعت او د هغه متابعت د ځان او قوم بې ننګي او بې غيرتي ګڼو او تر څو چې په موږ کښې ساه ګرځي د اعليحضرت امان الله خان د ملګری او پلويتوب څخه به اوږه خالي نه کړو او په دې لياره کښې زموږ نارينه او ښځينه، زاړه او واړه د هرکس او هر قوت جنګ او جګړې ته هرکله تيار او چمتو يو او وبه ګورو چې د ټوپک په نخښه ويشتلو کښې د کوم پلو جنګيالي تکړه دي ولې يو ځل بيا هم ستاسو د شرطونو او وړانديزونو په وړاندې او د جنګ او جګړې د پيل نه مخکې تاسو ته د قوم او ملک د ښېګڼې په هيله لمن نيسو چې د حبيب الله د پلوی څخه لاس واخلئ".

## د حبيب الله پلوي لښکر د قلا خېلو نه د قلات په لور وخوځېد

کله چې موږ د حبيب الله د پلويانو مرکې او جرګې ته په زغرده ځواب ورکړ او هغوی لره دا پته ولګېده چې موږ د خپلې ارادې او عزم څخه اوښتونکي نه يو او هم د هر قوت

او طاقت په وړاندې جنګ ته تيار يو چې د جګړې په ډګر کښې د وينو وياليې وبهوو نو يې مشرانو دا غوره او ښه وګڼل چې زموږ پر بيعت کولو باندې له زيات تينګار څخه لاس واخلي نو همهغه و چې د حبيب الله پلويان او د هغوی پوځي غونډ د ۱۳۰۸ هجري لمريز کال د حمل د مياشتې په دوهمه نېټه د قلا خېلو نه د قلات په لور وخوځېدل.

د قلاخېلو نه د حبيب الله د پلويانو خوځېدنه د امين الله خان تره کي، عبدالمجيد خان تره کي، عبدالرشيد خان تره کي، محمد خان تره کي، عبدالغفار خان اندړ، حاجي ادم خان محمد خېل، پاچا خان شه خېل، محمد عمر خان عليزی، عبدالحکيم خان تره کي، احمد خان علي خېل او سيد احمد توخي تر مشرۍ لاندې د قلات په لور په يوه داسې وخت او حالت کښې وه، چې شمالي، جنوبي او مشرقي د حبيب الله په لاس کښېوتي وو، اعليحضرت غازي امان الله خان د خپلې کورنۍ او يو شمېر درباريانو سره په کندهار کښې و او په کندهار کښې د امان الله خان په طرفدارۍ باندې هم اختلافات او ګډوډي وه او يو محدود شمېر درانو په کندهار او هلمند کښې د خپلواکۍ د قهرمان (اعليحضرت امان الله خان) پلوي کوله په شاه جوی کښې زه او زما ملګري او په قلات کښې د قلات پوځي کنډک د اعليحضرت امان الله خان په طرفدارۍ سخت ولاړ وو او د هغه په وفادارۍ مو په سيمه کښې د غښتلو او سترو پښتنو قومونو (تره کو؛ اندړو؛ توخو او سلېمانخېلو) دښمنۍ او بدۍ ته اوږه ورکړې وه.

د قلات په لور باندې د حبيب الله د پلويانو د خوځېدو هدف او مقصد دا و چې اول هلته هغه يو کنډک پوځيان چې

د اعلیحضرت امان الله خان په طرفدارۍ تر هم هغه ګنټو پورې پاتې وو. محاصره او ځان ته تسلیم کړي. او بیا په دوهم قدم کښې د کندهار نه د کابل په لوربانديې د اعلیحضرت امان الله خان د لښکرکشۍ او حرکت په وړاندې په قلات کښې د حبیب الله په پلوۍ او د امان الله خان په مخالفت ټینګ او مضبوط سنګر جوړ کړي.

ما (یارمحمد مریاڼي) په همهغه شپېو او ګېنټو کښې د وزیرستان د جنګونو د تجربو په بنیاد؛ د قلات په لور باندې د سقاو د زوی د طرفدارانو د خوځېدو ټول اهداف او مقاصد درک او احساس کړه نو هم هغه وُ چې خپل مجاهد ملګري مې راغونډ کړه او په قلات کښې د رامخکښې کېدونکو حالاتو نه مې خبر ورکړ او د څښتن تعالی احسان او نصرت وُ چې په هغه سخت حالت کښې ټولو دا پرېکړه او فیصله وکړه چې د حبیب الله د پلویانو په تعقیب د قلات په لور باندې د هغه غونډ مدد ته ځانونه ورسوو چې د اعلیحضرت امان الله خان مخالفینو یې د محاصرې او تسلیمۍ خیال درلود.

د ۱۳۰۸ هجري لمریز کال د حمل د میاشتې په څلورمه نېټه زما تر قوماندې او قیادت لاندې زما وزیري ننګیالي او جنګیالي ملګري او یو شمېر کوچي مریاڼي چې د ټولو تعداد یو سل او پنځوسو تنو ته رسېده د قلات په لور مو حرکت وکړ، یو تعداد سړي مو د خپلو کورونو د حفاظت له پاره پرېښودل او مرادخان خروټي ته مې احوال ولېږه چې زموږ پر کورونو باندې د سقاویانو د برید او چپاوُ په صورت کښې زموږ د پاتې کسانو مرسته وکړي.

زما تر قوماندې او مشرۍ لاندې مور يو سل او پنځوس تنه چې اکثرو يې د ۱۲۹۸ کال د خپلواکۍ په جګړه کښې د فرنګيانو څخه غنيمت شوي ټوپکي پر اوږو درلوده په نخښه ويشتلو او جنګي چارو کښې پوره اشنأ او بلد وو. د حبيب الله د پلويانو په تعقيب د قلات سر اسپ ته ورسېدو او مخکې له دې چې هغوی د قلات پوځي کنډک محاصره او يا جنګ وربانديې پيل کړي مور يو سل او پنځوس تنو بې له کوم ځنډه څخه پر هغوی باندې بريد وکړ زمور دا بريد غلچکي بريد او حمله وه او د وزيرستان د غلچکي بريد کړنلاره مو پکښې غوره کړې وه نو ځکه د حبيب الله پلويان چې د ترکو، سلېمانخېلو، اندړو او توخو د قومونو د سرو څخه يې لښکر راغونډ کړی وُ او د جنګ کولو سره يې هومره اشنايي نه درلوده بې له زيات مقاومت او جنګ کولو څخه يې ماتې وکړه، زيات مالي او ځاني تاوان يې په برخه شو او د ماتې سره جوخت په کلو کښې تيت او په تېښته وتښتېدل.

## د قلات د برې خبر د اعليحضرت امان الله خان تر غوږو ورسېد

هغه وخت چې زما تر قوماندې او قيادت لاندې زما سرتېرو د سقاوُ د زوی طرفدارو لښکرو ته په قلات کښې سخته ماتې ورکړه او د قلات عسکري کنډک موُ د هغوی د جنګ او محاصره کولو څخه وژغوره، په همدې ګنټو کښې اعليحضرت غازي امان الله خان د خپلې کورنۍ د نارينه او ښځينه غړو او

يو شمېر عالي رتبه مامورينو (عبدالاحد خان وردګ داخله وزير، محمد يعقوب خان د دربار وزير. عبدالعزيز خان د حرب وزير او معين السلطنه صاحب) سره په کندهار کښې ؤ او هلته د کندهار او هلمند د خلکو نه په لښکر راجمع کولو باندې بوخت وو، چې له اوږدو څخه په دې کار کښې د زياتو مشکلاتو او ربړو سره مخامخ ؤ او د دراني قبيلو په خپله مينځ کښې اختلاف او بې اتفاقي وه. او هم کندهاري سردارانو د زړه له کومې د اعليحضرت امان الله خان ملګري او ياري نه کوله.

په هغه ګېنټو او شپېو کښې چې زما جنګياليو ملګرو د قلات په سيمه کښې د سقاو د زوی زيات وکم دوؤ زرو پلويانو ته ماتې او شکست ورکړ نو سمدستي زمونږ د بري او د حبيب الله د طرفدارانو د ماتې او تيښتې خبر د اعليحضرت غازي امان الله خان د هغه د پوځي سلا کارانو او ورسره لوړ رتبه مامورينو تر غوږ ورسېد. او د بل لوري څخه په درست کندهار کښې دا اوازه لوېدلې وه چې په لنده کښې د يو سل او پنځوس وزيري او مرياڼي مجاهدينو له لاسه چې د اعليحضرت امان الله خان په ملګري او وفاداري ولاړ دي دوه زره سقويانو ماتې خوړلې ده او هم دا اوازه او د قلات جنګي پېښه وه چې د کندهار غيرتي خانان او ملکان يې د اعليحضرت امان الله خان په خنګ کښې په مال او ځان باندې ودرول او دراني قبيلو خپلمنځي اختلافات هېر کړل او يو ستر لښکر د اعليحضرت امان الله خان غازي په طرفدارۍ په کندهار کښې راغونډ شو.

اعليحضرت امان الله خان چې زه ( يار محمد مرياڼی) او په شاه جوی کښې زما په خنګ او پر اوږه ولاړ مېشته او استوګن

زما د وزیرستان د جهاد او مجاهدې د سنګر سرتېري مجاهد وزیري ملګري او د فضیلت پناه رئیس المجاهدین ملا عبدالرزاق اخند او ملا همزالله اخند په لاس روزل شوي په مېړانه او ننګ سره د افغانستان د خپلواکۍ د جګړې (۱۲۹۸هـ) له زمان څخه ښه پېژندل. او په خپله ما (یارمحمد مریاني) هم دوه ځلې د اعلیحضرت امان الله خان سره ملاقات کړی و او هغه د خپلواکۍ د حاصلولو قهرمان ته په تېره زمانه کښې دا په اثبات رسېدلې وه او هم یې پوره یقین درلود چې د خپلواکۍ په جګړه کښې زمونږ د جنګي محاذ ننګیالي او سرتېري وو چې د فرنګي او ګورکه پوځونو د غرور نظامي غاړه یې د غرني افغانانو پښو ته ټیټه کړه.

اعلیحضرت امان الله خان او د هغه پوځي سلاکارانو د قلات د پېښې په اورېدو سره فورا او بې له کوم ځنډه نه دا پرېکړه او فیصله وکړه چې زما سره د خپل لوري او حضور نه د خپلو باوري استازو او نماینده ګانو په رالېږلو سره اړیکې ټینګ کړي او د کابل په لښکر کښې او بیا تاج او تخت تر لاسه کولو کښې زما څخه مرسته او مدد وغواړي.

# د اعلیحضرت امان الله خان غازي استازي او نماینده ګان شاجوی ته راغلل

په قلات کښې د وزیري او مریاني قومونو د جنګیالیو په لاس د حبیب الله د ملګرو او پلویانو د ماتې او تښتېدنې څخه پېنځه ورځې وتلې وې چې د اعلیحضرت غازي امان الله خان

له لوري او حضور نه داخله وزير صاحب عبدالاحد خان مايار وردګي د ۱۳۰۸ هجري لمريز کال د حمل د مياشتې په دوولسمه (۱۲) نېټه د شپې په اووه بجو باندې د دوو موټرو شاهي پوځيانو په بدرګه سره شاه جوی ته راورسېد، وزير صاحب داخله او د هغه مل شاهي عسکرو زما په مېلمستون کښې (چې کله کله به مور پکښې قومي غونډې او جرګې کولې) مقام ونيوه، په همدې مېلمستون کښې ما او زما ملګرو د حبيب الله د پلويانو سره خبرې کړې وې او هغو لره مو پښتنې لمن نيولې وه چې د سقاو د زوی پلويتوب پرېږدي.

د افغاني دود او د مېلمه پالنې د پښتني رسم سره سم په همهغه تياره ماښام چې هوا هم سړه وه او د اوږده ژمي واورې لا نه وې او به شوي ما او زما غيرتي ملګرو د اعليحضرت امان الله خان استازي (وزير صاحب داخله "مايار وردګصاحب") او د هغه سره مل پوځيانو ته مو خورب پسونه حلال کړه او يو شمېر وزيري ځوانانو چې د غازي امان الله خان سره يې ځانګړې مينه درلوده؛ د ډېرې خوشالۍ نه د هسک په لور د ټوپکو ډزې وکړې. او د لېرو کلو د اوسېدونکو سره دا خيال او فکر پيدا شو چې ګواکې زمونږ او د سقويانو تر مينځ جګړه نښتې ده.

وزير صاحب عبدالاحد خان د چايو څښلو نه وروسته د ماسخوتن ډوډۍ زمونږ سره وخوړه د کابل څخه بيا تر کندهار پورې مو په تېره او جاري اوضاع باندې خبرې وکړې هغه د خپلو خبرو په اوږدو کښې زياته کړه: "د اعليحضرت امان الله خان د سلطنت ستنې زمونږ خپلو ملګرو او د اعليحضرت د کورنۍ خپلو غړو ولړزولې که نه د حبيب الله سره دومره قوت

او طاقت نه وُ او نــه ولـس ورسره يـاري كولـه چـې د حكومـت پـه مقـابل كـښې وجنـګړي او يـا دوه او درې لارنيوونكـــي هغـــه حكومت رانسكور كـړي چـې انګرېزانـو تـه يـې ماتې وركـړه او پـه ګذشـته كـښې چـې هـر څه رامخكـښې شـوي دي هغـه زمـوږ د خپـل لاس او خپلـو ملګرو څخـه پـښ شـوي دي او پـه آينـده كښې هـم چـې هـر څه واقـع كـېږي نـو زمـوږ لـه لاسـه بـه وي. دا ګنـه هـم زمـوږ پـه كندهـاري لښكـر كـښې د درانـي سـردارانو او خانانو اختلافـات او بـې اتفـاقي روانـه ده."

كله چې وزير صـاحب خپلـې خبرې پـاى تـه ورسـولې. د كـابل د تـېر حـالت او د كندهـار د فعلـي جريـان څخـه يـې مـوږ لـره معلومـات راكـړه نـو مـا د خپلـو ملګرو پـه نمـاينده ګۍ سـره پـه زغرده ورتـه څرګنـده كـړه: مـوږ دلتـه څوكورنـۍ چـې د وزيرسـتان څخـه د فرنګيـانو د ظلـم لـه لاسـه رالـېږدېدلي يـو د حبيـب الله داړه مارۍ او لوټمـارۍ تـه بـه هـم غـاړه نېـټه نـه كـړو او د مـرګتـر ګنـټو بـه د اعليحضـرت امـان الله خـان پـه ملګرۍ ولاړ يـو او كـه چـېرې اعليحضـرت نيـت وكـړي چـې تـر مـوږ پـورې راشـي، زمـوږ نارينه او ښځينـه بـه تـر اعليحضـرت امـان الله خـان خپلـه وينـه ځار كـړي او د اعليحضـرت غـازي امـان الله خـان سـره هـم دا زمـوږ مينه وه چې د قـلات پـوځي كنـډك مـوُ د حبيـب الله د پلويـانو نـه وساته او په خپـل ګاونـډ كـښې مـو د خلـورو سـترو قومونـو دښمنـي پر سر واخيسـته.

د اوږدو خـبرو او صحبـت څخــه وروســته وزيــر صــاحب عبدالاحـد خـان مايـار وردګزمـوږ تـر ځاى پـورې د خپـل سـفر او مـاموريت مقصـد بيـان كـړ او د اعليحضـرت امـان الله خـان غـازي پـه لاس ليـک يـې يـو فرمـان زمـا (يـار محمـد مريـاني) او څورلـس

فرمانونه د وزیرستان او جنوبي د قومونو او قبیلو د مشرانو په نوم په لاس کښې درلوده، وزیرصاحب عبدالاحد خان وردګ هغه پنځلس د اعلیحضرت امان الله خان په امضاء ښکلي شوي فرمانونه په همهغه شپه چې د ۱۳۰۸ هجري لمریز کال د حمل د میاشتې دوولسمه نېټه وه ماله وسپارل او د فرمانونو د راسپارلو په وخت کښې یې رالره زیاته کړه: "په قلات کښې ستا د مجاهدو وزیري او مریاني ملګرو د بریالیتوب او د حبیب الله د پلویانو د دوه زره کسانو د ماتې د خبر په اورېدو سره اعلیحضرت امان الله خان او موږ (محمد یعقوب خان، عبدالعزیز خان، معین السلطنه، خپله داخله وزیر عبدالاحد خان وردګ) دا فیصله وکړه چې ته (یارمحمد وزیري غونډ مشر) د اعلیحضرت په نماینده ګۍ وزیرستان ته ولاړ شې دا فرمانونه په وزیرستان او جنوبي کښې د قومونو او قبیلو مشرانو ته ورسوې. او په خپله ته شخصاً د اعلیحضرت له لوري اعتمادي زموږ په مرسته او ملاتړ د وزیرو او مسودو د ننګیالي قومونو د جنګیالي ځوانانو ځخه خومره چې چټک او ژر یې امکانات وي لښکر تیار کړې، چې ان شاءالله و رحمن موږ هم ددې میاشتې په اخره کښې له کندهاري لښکر سره ځانونه غزني ته رسوو او که د څښتن تعالی رضا او اراده وه په غزني کښې به ستا د لښکرو سره ملاقات کوو.

# د وزیر صاحب (عبدالاحد خان وردګ) سیاسي موسکا

زما د ژوند د خوږو او ترخو خاطراتو په څنګ کښې مې د وزیر صاحب داخله عبدالاحد خان وردګهغه خندا او موسکا د ذهن او خاطر څخه نه وځي، هغه وخت چې د اعلیحضرت غازي امان الله خان له لوري او حضور نه د شاه جوی په ماموریت مامور وزیر صاحب عبدالاحد خان وردګد اعلیحضرت غازي امان الله خان پنځلس پاڼې فرمانونه راوسپارل نو د هغه نه یې وروسته په هم هغه شپه د توکې په څېر په خندا او موسکا سره راته وویل: "نه پوهېږو چې اعلیحضرت امان الله خان ولې په ټول افغانستان کښې په تا باندې اعتماد او باور وکړ. او ستا څخه یې د سلطنت د بیا اعاده کولو په برخه کښې د مرستې او کومک غوښتلو مطالبه وکړه".

وزیر صاحب چې د یو څو ګنټو له پاره زمونږ مېلمه و او د بل لوري نه د هغه کس له حضور نه مونږ ته استازی رالېږل شوی و چې د هغه په مینه کښې مونږ خپل ځانونه او مالونه قرباني ورکړې وه نو حیا راته راغله چې وزیر صاحب ته ستوغ ځواب ورکړم، ولې دومره مې ورته یادونه وکړه: اعلیحضرت یو ننګیالی او قهرمان دی، په ننګیالیو او قهرمانانو باندې مېړونه ګران وي او دا د خښتن تعالی ستره مهرباني او زمونږ نیکبختي ده چې یو ستر اولي الامر د یو نوم ورکي او کمزوري کلیوال یادونه او پالنه کوي.

وزیر صاحب د هم هغه شپې په یوولسو بجو باندې زموږ له لوري نه رخصت شو او د خپل شاهي پوځ د سرو سره یې د قلات په لور حرکت وکړ.

رښتیا چې موږ د هسکو غرونو اوسېدونکو او د تورو کېږدیو خاوندانو ته د سیاسي موسکاو مفهوم او معنی څرګنده نه وه او نه مو پاملرنه ورته کوله ځکه د خاورې او ولس په اړه زموږ نیتونه پاک او زړونه مو اولي الامر ته د اخلاص څخه ډک وو، زموږ سره د مال او مقام اسره نه وه ولې د هم هغه سیاسي موسکا په معنی هغه وخت ورسېدم کله چې د خپلواکۍ د جګړې محرک او د استقلال محصل اعلیحضرت غازي امان الله خان په غزني کښې د یو څو سلیمانخېلو ـکوچي کورنیو د لاسه ماتې او شکست وخوړ او په هغه قهرمان باندې د وزیرصاحب داخله په څېر راچاپېر سلا کارانو او کل کارانو دا وته کړای شو چې د ګران افغانستان او پلرنۍ خاورې څخه د هغه قهرمان د خارجېدو په تصمیم، عزم او اراده کښې تغییر او بدلون راولي، د وطن پرېښودلو پر ځای په مقر او شاجوی کښې د ځای نیولو او مورچل ټینګولو قناعت ورکړي او یایې دا ورته په یاد او زړه کړي وای چې د مریانې یار محمد غونډ مشر تر مشرۍ لاندې د وزیرستان د ننګیالیو او سرتېرو قومونو او قبیلو جنګیالي ځوانان د مرستې او مدد له پاره په جوپو جوپو د غزني په لور راروان دي.

## د وزیرستان په لور زما حرکت

کله چې د ۱۳۰۸ هجري لمریز کال د حمل د میاشتې په دوولسمه شپه په مېلمستون کښې وزیرصاحب داخله عبدالاحد

خان وردګد خپلواکۍ د قهرمان اعلیحضرت غازي امان الله خان په امضاء باندې ښکلي شوي پنځلس پاڼې فرمانونه راوسپارل او دا یې راخرګنده کړه چې د اعلیحضرت له لوري اعتمادي او نماینده وزیرستان ته ولاړ شم او هلته د وزیرو او مسودو جنګیالي د قهرمان په پلوۍ راغونډ کړم رښتیا چې په واقعیت کښې زما تر توان او طاقت نه هغه ډېره درنده او د مسئولیت څخه ډکه دنده او وظیفه وه؛ نه مې خزانه او نه جبه خانه درلوده. او نه مې د وزیر صاحب څخه د خزانې او جبه خانې تقاضا وکړه او نه وزیر صاحب د خپل لوړ مقام د تجربو سره دا رانه وپوښتل چې یار محمد خانه! ته چې د لښکر غونډولو له پاره روانېږې ستا خزانه او جبه خانه چېرې ده. په یقین سره چې د اعلیحضرت غازي امان الله خان سلا کارانو او ورباندې راچاپېر افرادو دا نه غوښته چې اعلیحضرت یو ځل بیا پر تخت باندې کښېني او شاهي تاج پر سر کړي.

د وزیرصاحب د ټولې سیاسي، پوځي او ولسي لنډ نظرۍ او بې پروایۍ سره د اعلیحضرت غازي امان الله خان ځانګړی فرمان زما خزانه او د وزیرستان د غیرتي قومونو او قبیلو د خانانو، ملکانو، علماو او مشرانو پېژندګلوي زما جبه خانه وه او ما په همهغه حساسو ګنټو کښې د خزانې او جبه خانې ربړې ته شا کړه، د خپل وطن د خپلواکۍ د حفاظت، د افغان مېړني ملت د ابرو او د اعلیحضرت غازي امان الله خان د اواره او پرېشانه حالت په نظر کښې نیولو سره مې د هغه درندې او ملي مسئولیت نه ډکې وظیفې په مخکې راتلونکو ټولو خطراتو ته خان وسپاره او نه مې خپل خالي لاس ته وکتل او د بل لوري نه دا هغه ګنتې دي چې په کور کښې شل کلن زلمی

هم نلرم، چې زما په غیاب کښې د خپلې خپلخانې پالنه او روزنه وکړي او یا د راباندې چاپېر دښمن (سقوي پلویانو) څخه زما پت او عزت خوندي وساتي. ما په سیمه او وطن کښې زبردست باوري او وفادار جنګیالي درلوده چې زما په غیاب کښې زما د عزت او پت ساتنه وکړي ولې د همغه سره په خپل کور او کهول کښې د شل کلن ځوان د نشتوالي وسوسې راسره ملګرې وې او په هم هغه شېبو کښې د مایوسۍ دبې پروا او په زړه ظالم لښکرو تر تېري او تجاوز لاندې وم او په حقیقت کښې دا هغه څه وو چې په هر زمان؛ او مکان کښې د یوه غیرتي پښتون - افغان په عزم او اراده کښې خپل منفي اثرات ښندي د هر مهم چار او خدمت د تر سره کولو په وړاندې لاس تړلی د ال او عیال د پالنې او ساتنې بندي کوي په لیاره کښې ورته خنډونه او د هدف تر رسېدو پورې ورته اندېښنې او شکونه رامخکې کوي، د کار د انجام په برخه یې شکمن او بالاخره د یو اوږده او نامعلوم سفر څخه یې چې زما په مخکې و پښېمانه او تر شا کوي، د حرکت او فعالیت پر ځای ورته د سکون او په کور کښې د اوسېدو هدایت کوي، ولې بیا هم د هېواد د خپلواکۍ او د ملت د ناموس د خوندي ساتلو او د اعلیحضرت غازي امان الله خان د اواره او پرېشانه حالت د رفع کولو په نظر کښې لرلو سره هغه ټولو عواملو او رامخکې اندېښنو په عزم او اراده باندې د یوه خس په اندازه اغېز ونکړ؛ په خښتن تعالی مې توکل وکړ؛ پرېکړه مې وکړه چې ضرور به د امان الله خان په پلوي وزیري او مسودي ځوانان راغونډوم نو مې د هغه ذات په ساتنه او پالنه خیل پت او عزت د سقوي پلویانو په چاپېریال کښې یوازې

پرېښوده، چې زه يې ددې سترې دندې د سرته رسولو له پاره خلق او هست کړی وم او د ۱۳۰۸ هـ لمريز کال د حمل د مياشتې په پينځلسمه نېټه مې د راسپارل شوې وظيفې د سرته رسولو له پاره د کورنۍ د ټولو غړو څخه خدای په اماني وکړه. او د يوه پاخه عزم او ارادې سره مې اعليحضرت غازي امان الله خان ته د مرستې او مدد رسولو په غرض د وزيرستان په لور حرکت وکړ.

د وزيرستان په طرف د حرکت نه يوه ورځ مخکې مې په شاجوی کښې د مېشته وزيري مجاهدينو سره زما په مېلمستون کښې خدای په اماني وکړه. او هم مې هغوی لره په ګوته کړه چې زما د مرګتر سلګۍ پورې د اعليحضرت امان الله خان د ملګرۍ څخه اوږه خالي نکړئ او د حبيب الله دپلويانو د زياتي په صورت کښې د کندهار په لور ځانونه وکوچوئ. او هلته تر هغه وخته مېشت اوسئ تر څو ډ حبيب الله سره د جنګ او جګړې نتيجه معلومېږي، د يو شمېر وزيري جنګيالانو دا هيله وه، چې د وزيرستان په لور زما په خوځېدو سره جوخت دوی هم وزيرستان ته واپس ولاړ شي. ولې ما دا ټکی ورته په ګوته کړ چې په وزيرستان کښې فرنګيانو هم زموږ له پاره سنګر نيولی دی.

## د شاه جوی څخه تر غړو به کلي پورې زما اووه شبانه روزې سفر

د ۱۳۰۸ هجري لمريز کال د حمل د مياشتې پر پينځلسم سهار د خپل کور څخه پلی په يوه داسې پرېشانه حال کښې د

خپل اصلي هدف او مقصد په لـور بـهر شـوم چـې د کـور تولـو غـړو مې د بېلتون اوښکـې لـه سترګو نـه تويولـې نـه پوهـېږم چـې هغـه څرنګه ګنته او شـبېه وه چـې زمـا پـه عـزم او اراده کـښې يـې خلـل پېښ نه کـړ او پـه دې هـم نـه پوهـېږم چـې هغـه څرنـګه سـپېڅلي او اعلى هدف او احسـاس ؤ چـې مـالره يـې د خپلـې خپلخـانې نـه د بېلتـون او جدايـي قومـانده راکـړه او دا يـې قنـاعت را پـه برخـه کړ چـې خپلـه کورنـۍ د دښمـن پـه چـاپېريـال کـښې پـرېږدم؛ زمـا زوی (سـلطان محمـد) او لـور مـې (بـهادر جمـالي) چـې خپـل لاسـونه يـې زمـا لمنـې تـه اچـولي وو، پـه خپلـو چيغـو او ژړا کـښې بابا ببرتـه کلـه راځې ويـل؛ د تـره مـې (نورمحمـد) د ورور مـې (پـير محمد) او د ترونو زامـن مـې (امـير محمـد او مـولاداد) چـې تنکـي زلميـان وو او زمـا د سـفر خطرنـاک انجـام يـې احسـاس کـولی شـو ژړا پـه سـترګو کـښې وچـه وه؛ د کـور ښځينـه زمـا پـه پرېکـړه او فيصله پورې حيران وو او هـم بـې لـه زمـا اطـاعت کولـو څخـه يـې لاره او چـاره نـه درلـوده. د هندوسـتان د کلکتـې پـه ښار کـښې مـې دوه ترونـه (نـېک محمـد او عبـدالله) زمـا د عـزم او ارادې څخه نـاخبره وو.

د ۱۳۰۸ هـ ل کـال د حمـل د مياشـتې د پينځلسـمې شـپه مـې پـه شـاه جـوی کـښې د سـيد زو پـه کلـي کـښې د حـاجي زرعلـم خـان مريـاني کورتـه ورسـوله، چـې اوس د هغـه غـيرتي زرعلـم خـان مريـانی دوه زامـن (شـجاع خـان او دادخـان) پـه کندهـار کـښې استوګنه لـري. حـاجي صـاحب زرعلـم خـان زمـا د سـفر د مقصـد او هـدف څخـه آګاه ؤ دا هغـه حـاجي زرعلـم خـان مريـاني ؤ چـې د قـلات پـه جنـګ کـښې د سقويانو پـه وړانـدې زمـا تـر څنـګ پـه ځان او مـال بـاندې ولاړ ؤ. حـاجي صـاحب تـه پـه

همهغه شپه ما د خپلې کورنۍ د غړو د ځارنې او پالنې سپارښتنه وکړه ځکه په قومي او قبیلوي لحاظ هم دی زما نږدې وارث ؤ، غیرتي حاجي زرعلم مریاني زما د خپلخانې ځارنه او پالنه په هسکه غاړه سره پر ځان ومنل او هم یې ژمنه وکړه چې زما تر راستنېدو پورې به د هغوی حفاظت په ځان سره کوي او همهغه ژمنه وه، کله چې زما په غیاب کښې نامردو سقویانو زما پټ او عزت ته د لاس اچولو پلان جوړ کړی ؤ نو مخکې تر هغه په پټ مین حاجي صاحب زما د کورنۍ ټول غړي د سیدزو کلي ته انتقال او په خپل کور کښې یې ورته ځانګړی ځای ورکړی ؤ.

د سیدزو په کلي کښې کله چې شپه ښه پخه شوه. او هم د کلي پر اوسېدونکو پوره سکون حاکم شو، نو د حاجي صاحب زرعلم خان مریاني له کوره مې د حاجي صاحب د زوی په ملتیا د تره کو د ناوې په لور حرکت وکړ، اوس پلی نه وم حاجي صاحب د تره کو د ناوې تر رسېدو پورې آس په اختیار کښې راکړی ؤ، په لیاره کښې د خبرو پرېکولو ملګری مې هم درلودی شپه پخه او ښه تیاره وه: واورې اوبه او ځمکه وچه شوې وه، په کلي کښې پوره چوپه چوپتیا وه؛ کله کله د یوه کور او بل کور څخه د ځناورو د اړونکو حیواناتو اوازونه او انګولاوې پورته کېدې؛ زموږ د آس د سؤ اواز نور هم هغوی پارول او انګولاوې یې زیاتېدې؛ د سیدزو د کلي څخه ووتو اوس زه د هغه کلي په لور روان یم چېرې چې زما د وژلو امکانات زیات دي او کله اندېښنه را ولوېږي چې که په لیاره کښې ووژل شوې نه دې خپله وظیفه ترسره کړه او نه دې بیا د خپلو ماشومانو د ښلتانه اوښکې وچې کړې. په همدې

فکرونو او اندېښنو کښې د حاجي صاحب زرعلم خان مریاني د زوی په ملګري د ۱۳۰۸ لمریز کال د حمل د میاشتې په شپاړسمه سهار پر وخت د تره کو د ناوې د اکازو کلي ته ورسېدم او د حاجي صاحب زوی مې په خټ رخصت کړ.

د تره کو د ناوې د اکازو د کلي زیات اوسېدونکي د سقاو د زوی ملګري او پلویان وو او زه یې په ټولو صفاتو سره پېژندلم‌هغوی لره دا معلومه وه، چې په سیمه کښې یوازې زه د اعلیحضرت غازي امان الله خان ملګري او پلوي یم. په قلات کښې زما تر مشرۍ لاندې زما د ملګرو او د حبیب الله د پلویانو د جګړې نه هم دومره وخت نه و وتلی، د قلات د پېښې نه په ټوله سیمه کښې نر او ښځې، واړه او زاړه پوره خبر وو او داسې کور نه و چې هلته دې زما نوم نه یادېده او هم دا سبب و چې د اکازو په کلي کښې د حبیب الله د پلویانو له وېرې او ترس نه مې د ۱۳۰۸ هـ ل کال د حمل د شپاړسمې ټوله ورځ په یوه هدیره کښې ماښام کړه ټوله ورځ مې نه څه وخوړل او نه څه وڅښل تر ماښام پورې وږی او تږی د اکازو د کلي په هدیره کښې واوسېدم. د ماسپښین، مازدیګر او ماښام دری واړه د مسافرۍ لمونځونه مې په تیمم سره ادا کړل. او دا مې دعا کوله چې خدایه په دې کلي کښې څوک مه وژنې. او دا په دې چې هدیرې ته د جنازې په راوړو سره خلکو په هدیره کښې لیدلم کله چې ماښام ښه تیاره شو او په دې وپوهېدم چې کلیوال خپلو کورو ته ننوتل. نو مې د هغه هدیرې څخه د کلي په لور د وېرې او ترس سره حرکت وکړ، د میرزمان خان او سلطان خان مریاني (چې سره ورونه وو) کورته نېغ په نېغه ورغلم. دا دوه ننګیالي ورونه هم د حاجي

صاحب زرعلم خان مریاني په خبر زما قومي وو، دوی د ماسخوتن ډوډۍ خوړلو ته دسترخوان غوړولی و. زه هم د تولې ورځې پوره وږی او تږی وم نو مې بې ارادې ناڅاپي ورته اواز وکړ (تولـه مه خوریٔ زه هم وږی یم، مالره هم څه پرېږدیٔ). هغه مېړنو او مېلمه پالو دوو ورونو زما ږغ وپېژانده فورا نارینه او ښځینه او واړه د دسترخوان څخه جګ شوه او زما د احترام له پاره وړاندې راغله. د پوره سترې مشي نه مخکښې په دسترخوان کښېنستو او د مېړو په شیدو کښې پوخ شوی شیربرنج مې په ماړه نس ورسره وخوړ. د ډوډۍ خوړلو نه وروسته د سلطان خان پتمنې او بي بې مېرمنې توري چای راوړې؛ چای مو په ګډه سره وڅښلې او د چای څښلو په اوږدو کښې مې سلطان خان او میرزمان خان مریاني ... د خپل سفر او د کور څخه د رابهر کېدو په هدف اګاه او باخبره کړه. او ورته مې څرګنده کړه، چې زما څخه د اعلیحضرت غازي امان الله خان فرمانونه دي، د وزیرستان په لور روان یم، چې هلته د اعلیحضرت غازي امان الله خان په مرسته او مدد د وزیرو او مسودو د ننګیالیو قومونو او قبیلو د جنګیالیو ځوانانو څخه لښکر د سقاو د زوی د مقابلې او د کابل د نیولو له پاره راغونده کړم. په قلات کښې زمور او د سقویانو د جنګ ټول بیان مې ټکي په ټکي هغه دوو عزیزانو ته وکړ. زما سره په سیمه کښې د تره کو، اندړو، سلېمانخېلو او توخو د خانانو او مشرانو دښمني مې هم ورته په ګوته کړه، زما د خبرو په اوږدو کښې سلطان.خان هیله څرګنده کړه چې تر وزیرستان پورې زما په څنګ کښې د وزیرستان د سفر ملګرې شي. ولې ما مېړني سلطان خان ته وویل؛ څنګه چې تر اوسه زما د سفر نتیجه

معلومه نه ده. او کله چې زه غزني ته د وزيري او مسودي لښکرو سره راورسېږم. نو بيا تاسو د مرياني قوم جنګيالي افراد هلته خپل ځانونه زموږ ملګرۍ ته راورسوئ. د سلطان خان تلاش او تينګار زيات و؛ ميرزمان خان هم زياته سپارښتنه کوله چې د هغه مېړني وروزما سره د وطن د نجات په لياره کښې مل وي. ولې ما په هېڅ صورت سره نه غوښته چې د هغوی کورنۍ، زما د کورنۍ په څېر د سقويانو د چور او چپاول خطر ته ورکړم. ما لره وظيفه سپارل شوې وه او د يوه قهرمان اولي الامر ليکلی هدايت راته شوی و او ضرور چې هغه وظيفه او ليکل شوی هدايت به مې تر سره پورې رساوه. د هغه دوو ننګياليو ورونو قناعت مې په خپلو خبرو سره تېز لاسه کړ او سلطان خان مې زما د وزيرستان د سفر له ملګرۍ څخه پښېمانه کړ.

هر کله چې د تره کو د ناوې د اکازو په کلي کښې د سيدزو د کلي په څير شپه ښه پخه شوه. نومې سلطان خان مرياني د لارې ملګری او همراه کړ؛ د کلي څه په امن ووتو، ټوله شپه مو په ډاډه او ارام زړه سره د دوی پر اس باندې د خپل په مخکې منزل لياره پرې کړه، لوړې او ژورې مو هوارې کړې څو د ۱۳۰۸ هجري کال د حمل د مياشتې د اوولسم سهار په شپږو بجو د محمد خېلو کلي ته ورسېدو او سلطان خان مې په ښه رخصت کړ. ځکه نه مې غوښته چې زما د سفر په اسرارو او پټ راز باندې بې زما له عزيزانو نه نورکسان خبر او اګاه شي او يا کليوال زما تر ښنګ بل کس ووينې.

د سلطان خان سره د خدای په امانۍ نه وروسته د محمد خېلو د کلي مسجد ته نېغ په نېغه ورغلم. او په مسجد کښې مې

د مسجد ملاصاحب ته سلام ورانديٍ کړ. ملا صاحب هم زما سلام ته عليک ووايه او تر هغه وروسته مې د مسجد ملاصاحب ته عرض وکړ: ملاصاحب! مسافر يم د لارې او مزله سترې ستومانه او هم ناروغ يم. چاى او بوره خپل راسره شته. چاى جوشې او بوتو ته ضرورت لرم. چې اوبه پکې وخوټوم او څه چاى ځانته جوړ کړم. هغه د پاخه عمر د محمد خېلو د کلي ملاصاحب چې ډېر بخيل او په زړه سخت راته معلوم شو، نو يې په غوڅه راته وويل: "د لويې لياري مسافره وروره! چاى جوشه خو هغه ده شته، ولې يو خس اوډوکى نه شته دي چې اور يې کړې او که چېرې د کلي نه بوټي راوړې هغه توره چاى جوشه له تانه جار ده چې پکښې ځانته چاى جوړ کړې".
حال دا چې ملا صاحب ته زيات بوټي پراته وو او زما په سترګو هم راتله، ولې د مسجد ملا صاحب زيات بخيل و. زما او د ملا صاحب هم دا خبرې وې چې د کلي يو سړى چې ورسره مې مخکښې پېژندګلوي نه درلوده؛ مسجد ته راغى او رانه يې وپوښتل: مسافره! څه غواړې؟ او په اړ يې. ما هم خپل ضرورت هغه سړي ته بيان کړ. او ناآشنا سړى غازي الدين نومېده.

په يقين سره چې غازي الدين يو ډوډۍ مار او مېلمه پال پښتون و. ځه د لارې مسافر يې خپل کورته د چايو له پاره بوتلم. ډېر ژر يې چاى او مړۍ رالره راوړه. څنګه چې د ټولو افغانانو دود او رسم دى نو يې د نوم، ځاى او قبيلې پوښتنه او ګروېږنه راڅخه وکړه. ماهم خپل ځان په بشپړه توګه ورته معرفي کړې. نو سمدستي زما په پېژندګلوۍ سره د غازي الدين تره کي په خېره کښې مالره بدلون په سترګو شو. او په

خپل رښتیا ویلو سره سخت پښېمانه شوم. ولې ځنګه چې کار تر کار تېر شوی و، خپل حواس مې له لاسه ورنکړه، څه شېبه وروسته غازي الدین خان تره کي څه شانته په زېږه او دروند اواز راته وويل: "ته هغه یار محمد یې چې په قلات کښې دې د کافر امان الله په پلوي زموږ سره جګړه وکړه. او زموږ دې یو شمېر سړي رامړه او سخت ژوبل کړه". د غازي الدین په دې خبره سره مې وېره راپیدا شوه. خپل مرګ او د خپلخانې بېلتون مې سترګو ته ودرېد. نور نو د ژوند کولو امید رانه ولاړ. ماشوم زوی (سلطان محمد) او ماشومه لور مې (بهادر جماله) سترګو ته جګ ودرېدل. بې ځایه وسوسو او اندېښنو د کار پښېماني رامخکې اچوله او په زړه کښې به مې له ځان سره ویل: (خپل غریبانه ژوند به دې د نورو کسانو په څېر سره کاوه. ستایې د پادشاهانو په چارو څه کار).

په یقین چې د ټولو ژوندیو موجوداتو مرګ او ژوند د څښتن تعالی په واک او اختیار کښې دی. دا هر څه چې په سترګو کېږي دا ټول وسایل او ذرایع دي. ځ چاچې د مرګنېټه نه وي رسېدلی، هېڅ انساني ځواک هغه نشي وژلی د غازي الدین خان زړه ته پوره تېره وه چې زما څخه به په خپل کلي کښې د قلات د جګړې د وژل شوو کسانو انتقام اخلي. نو ځکه يې زما د پېژندګلوی؛ وروسته په خصمانه ژبه اولهجه سره راته وويل: "مریانی خانه! په ډاډ سره دې چای وڅښه؛ د چای څښلو نه به وروسته سره خبرې کوو".

د غازي الدین خان تره کي نیت او تدبیر چې هر څه و، هغه به و، ولې د تقدیر فیصله او پرېکړه بیله وه. په همهغه ګنټه او شېبه چې ما د محمد خېلو په کلي کښې د خپل ژوند

اخيري ګېنتې شمارلې؛ ناڅاپي پر اس سپور يو سړي په لوړ او قهرجن اواز د کور په دروازه کښې ناره وکړه.

و غازي الدينه!

غازي الدين تره کني هم په لوړ ولې نيول شوي او ساړه اواز سره ورته ځواب ورکړ: "څه وايې؟" هغه پر اس سپور سړي غازي الدين خان ته راغبرګه کړه "هغه درې سوه روپۍ چې مې په کوټه کښې زما د ورور د واده له پاره امانت درسپارلې وې. تا هغه روپۍ تر اوسه نه دي ور رسولي. قسم په خداى(ج) چې تر هغه به د اس نه کوز نه شم، څو تا هغه درې سوه روپۍ نه وي راسپارلې. غازي الدين خان ددې خبرې په اورېدو سره څه شانته نيولى و هغه سړي ته ځان ورساوه او زه يوازې په حجره کښې پاتې شوم. د دوى د شخړې لوړ اوازونه مې اورېدل. او دا مې فيصله وکړه؛ چې همدا وخت دى چې د غازي الدين او د محمد خېلو د کلي د خلکو له شر څخه ځان په امان کړم. نو مې هغه چاى پرېښود. ددوى د شخړې په ترڅ کښې د کور له دروازې نه بهر شوم. او غازي الدين ته مې څرګنده کړه. "غازي الدين خانه زه ځم چې په مسجد کښې څه دمه وکړم؛ د ماسپښين د لمانځه څخه به وروسته هلته سره وګورو". خنګه چې سپېڅلې دنده او وظيفه مې په غاړه وه. د وطن د خپلواکۍ د حفاظت او د ولس د ارامۍ له پاره مې خپلې پښو ته کړې وې نو د څښتن تعالى په بشپړه ساتنه سره د محمد خېلو په کلي کښې د هر خطر څخه په امان شوم، هغه و چې د همدې ورځې (اوولسمه د حمل) په ماښام چې د اوږده پلي مزل څخه پوره ستومانه شوى وم او نوره راپکې د حرکت شيمه نه وه د کوچيانو يوه کلي ته ورسېدم، چې دا ځاى د

سکیرا په نوم سره یادېده او د کوچیانو ددې کلي مشران حاجي خدای رحیم خان تره کی او گل خان تره کی وو اوړده سفر زیات ستومانه کړی وم؛ په ګېډه هم پوره وږی وم. نو په همهغه تیاره ماښام د کوچیانو یوې کېږدۍ ته ورغلم. او ورته مې ږغ وکړ: مسافر یم؛ زیات وږی او ستومانه یم؛ څه شانته مړی که وي چې ویې خورم.

ځوک چې کوچی وي او یا یې د کوچیانو سره څه وخت ژوند کړی وي نو د هغوی په کوچي دود او رسم ښه پوهېږي او هم دا پته ورته لګېږي چې هغه د تورو کېږدیو اوسېدونکي څومره مېړني او غیرتمن افغانان دي او په څه ښه خبر په هم هغه یوه کېږدۍ کښې د مېلمه پالنه او روزنه کوي. زه هم یو وخت کوچی او پونده وم په هم هغه توره کېږدۍ کښې چې ما ترینه د مړۍ خواست وکړ، یوه ننګیالۍ او پتمنه ښځه اوسېده او زما په شان ستړي او ستومانه ناآشنا مسافر ته یې ښه راغلئ ووایه. دا پتمنه او مېلمه پاله ښځه د امان الله خان علیزي لور وه. هغه کوچۍ مېرمنې سمدستي خپل د غېږې ماشوم پر ځمکه کښېښود، د چای جوشې پر ځای یې یوه توره ګډوه پر دېګدان باندې کښېښوده؛ او داسې راته وبرېښېده چې په کور کښې چای جوشه نلري. فورا یې اوړه لانده کړل، ټیکله یې پخه کړه، چای یې په همهغه توره ګډوه کښې تیارې کړې او د لرګي په پیاله کښې یې چای راته واچولې او هغه پتیره ډوډۍ مې د امان الله خان علیزي د ننګیالي لور په کېږدۍ کښې د چایو سره وخوړله او خندګه چې د افغانانو دود او رسم دی نو د مېلمه پالنې څخه وروسته هغه پتمنې مېرمنې رانه وپوښتل: مسافره وروره! ځوک یې؟ د کوم ځای نه راغلی

يې او نوم دې څه دی؟ هغې پښتنې ته ما خپل ځان معرفي کړ. نو کله چې يې وپېژندلم دوهم ځل يې راته ستړي مشي او ښه راغلی ووايه.

هغه شپه مې د کوچيانو په کلي کښې تېره کړه او په سهار چې د ۱۳۰۸ هـ ل. کال د حمل د مياشتې اتلسمه نېټه وه. د سليزې نه مې وازې خواته حرکت وکړ او په سليزي کښې هېڅ کس زما د سفر له هدف څخه خبر نشو او نه چا زما د سفر په اړه پوښتنه رانه وکړه. په وازيخوا کښې مانارينه او ښځينه کور په کور او نوم په نوم پېژندل. نور مې د خپل سفر په برخه کښې زړه مطمئن او ډاډه و او پوره غرمه وه چې په وازيخوا کښې مرجانه نومي کلي ته پلی ورسېدم. او سيخ په مرجانه کښې د شېرجان خان عليزي کورته ولاړم، هغه غيرتي او ننګيالي پښتون (شير جان خان) په هم هغه لحظه زما د ښه راغلي او احترام د پرځای کولو له پاره د ښه خورب پسه غاړې پرې کړې، د هم هغه ذبح شوي پسه د غوښو نه يې ښه خوندور او مزه دار وريت شوی کباب جوړ کړی و. د غرمې ډوډۍ مې د شېر جان خان عليزي سره وخوړله؛ د ماسپښين لمونځ مې هم هلته ادا کړ. د هغه نه وروسته مې د مېړني شېرجان خان څخه رخصت وغوښت او د خپل اصلي منزل مقصود په لور مې حرکت اغاز کړ. که څه هم د شېر جان خان هيله دا وه چې شپه په مرجانه کښې سبا کړم. ولې زه په دې ښه پوهېدم که يو ځل د مرجاني ولس زما په راتګ خبر شي نو بيا به ددې کلي د اوسېدونکو څخه په مياشت هم وزګار نشم او د شېرجان خان عليزي قناعت مې هم په دې ټکو سره تر لاسه کړ.

هغه وخت چې زه د شاه جوی نه وازیخوا ته ورسېدم تورنو د سقاو د زوی د پلویانو له لوري وېره راسره نه وه. دلته مې ځوک خپلوان او ځوک پخواني اشنایان وو او په تېرو وختونو کښې له دې چې شاه جوی ته ولېږدم هفتې او میاشتې سبا کړې وې. ددې سیمې نارینه او ښځینه مې په نومونو سره پېژندل. او هر کس زما خاص احترام درلود. د مرجانه ځخه په هم هغه ورځ د مینځو قلاته ورسېدم. شپه مې د رفیع خان سلیمانخېل (چې ولس ورته رفوخان وایه) سره تېره کړه. رفیع خان هم د شیرجان خان علیزي په څېر زما په ورتګ سره ښه څورب پسه حلال کړ، د سفر ستوماني مې په هم دې ځای کې واچوله، په سبا چې د ۱۳۰۸ هجري لمریز کال د حمل د میاشتې نولسمه نېټه وه نو کله چې لمر څه تود شو؛ د مینځو قلا څخه د خزر خېلو د کلي په لور وخوځېدم. دا کلی (خزر خېل) حکومتي ته په نژدې واټن کښې پروت و او اوس هغه ولسوالي ده. د مینځو په قلاکې مې د ځان سره دا فیصله او پرېکړه کړې وه چې په خزر خېلو کښې به د حاجي نعیم خان او حاجي عبدالکریم خان مریانو سره چې زما نژدې او تېروني دوستان او عزیزان وو شپه سبا کوم. حاجي نعیم خان او حاجي عبدالکریم خان د نورالحق خان دادالحق خان او بهاوالحق خان مریاني (دوازیخوا د ولسي جرګې انتخابي وکیل) ښاغلي او ننګیالي مشران وو. د مینځو قلا څخه مې شپه د حاجي نعیم خان او حاجي عبدالکریم خان مریاني کورته ورسوله. په هغه توره او نیاره شپه کښې دغو دوو غیرتي او تورزنو ورونو زما د مېلمستیا او عزت پر ځای کولو له پاره پسه ذبح کړ، هغوی چې زما نژدې عزیزان وو ورلره مې خپل سفر

هدف بیان کړ. په قلات کښې زما او د سقویانو د جګړې کیسه مې ورته تکي په تکي وکړه. زما او ددوی په مجلس شپه پخه شوه. او ځنګه چې د پرله پسې پلی مزل او سفر نه ستړی او ستومانه شوی وم؛ تربنه مې د استراحت اجازت وغوښت. او هم دا شپه مې د دوی په مېلمستون کښې سبا کړه. د نهاري خوړلو نه مې وروسته د حاجي صاحب نعیم خان او حاجي صاحب عبدالکریم څخه د وړه ممی په لور د سفر کولو رخصت واخیست. حاجي صاحب نعیم او حاجي صاحب عبدالکریم خان چې پر ما باندې تر حده زیات مهربان وو او زه یې د خپلې کورنۍ غړی ګڼلم زما په بېلتون او جدایي یې چې یوه شپه مې ورسره سبا کړې وه د سترګو نه یې څاڅکي څاڅکي اوښکې څڅېدې. ولې دا یې هیله هم نه وه چې ما د وطن د خدمت کولو څخه پښېمانه کړي نو یې د خدای په اماني په وخت کښې چې حاجي صاحب نعیم خان راباندې خپل لاسونه ګرځولي وو، زما د بریالیتوب او سر لوړۍ دعا وکړه او زه تربنه پلی د خپل اصلي مقصد په لور روان شوم.

د خزر خېلو د کلي نه په روانېدو سره زما د سفر ټول خطرونه له مینځه تللي وو او دا سیمه د تره کو د ناوې په څېر سیمه نه وه؛ چې خلک یې د حبیب الله ملکري او پلویان ووسي. نو ځکه د ځان وېره او ترس راسره نه و. ما د خپل سفر ټولې لوړې او ژورې اوارې کړې وې. د همهغه ورځې د ماښام اووه بجې وې چې د خزر خېلو نه وړه ممی ته پلی ورسېدم. هلته زما د ترور (خاله) زامن حاجي خان، سید جان خان او امو خان اوسېدل. دوی په پښه جګي او په قوم سلېمانخیل وو او کله چې وړې ممی ته ننوتم نو سمدستي د خپلې ترور د

زامنو کورته ورغلم. د هغوی د کور نارینه او ښځینه زما په ورتګ سره خوښ او خوشحاله شوه. د هغوی په لیدلو سره زما د هغه اوږده سفر ټوله ستړیا رفع شوه. او اوس په خپل کور کښې وم. په هم هغه تیاره شپه کښې یې د افغاني دود او رسم د پرځای کولو له پاره پسه حلال کړ. او دا د ټولو افغانانو او بیا په خاصه توګه د بشپړ پښتنو رسم دی، چې د خپل معزز دوست او مېلمه د عزت او احترام پر ځای کولو له پاره حتمي او ضرور د پسه وینه پر مځکه بهوي. یو ډېر غریب پښتون هم ددې سوچه دود پالنه کوي. د کلیوالو نه پیسې په قرض اخلي او د خپل عزیز دوست او مېلمه د عزت او احترام ساتلو له پاره یو څورب پسه حلالوي. که څه هم دا مېلمه د یوې کېنتې اوشېبې مېلمه وي.

د هم هغه شپې د ډوډۍ خوړلو او د کلي په مسجد کښې د ماسخوتن د لمانځه د ادا کولو نه مې وروسته د ترور زامنو ته د خپل سفر هدف روښانه کړ او دا مې ورته یادونه وکړه. که د وزیرو او مسودو د ننګیالو قومونو څخه د لښکر په راغونډولو کښې پاتې شوم. نو تاسو به زما ملا تړئ او د اعلیحضرت غازي امان الله خان د مرستې او امداد له پاره به خپل سړي راکوئ. دا هغه خبره وه چې د خزر خېلو په کلي کښې مې حاجي نعیم خان او حاجي کریم خان مریاني او د مینځو د قلا په کلي کښې مې رفیع خان سلېمانخېل ته کړې وه. او هغوی په ټینګه راسره وعده کړې وه او اوس مې هغه خبره حاجي خان سیدجان خان او امو خان سلېمانخېل ته وکړه، په همدې سیمه کښې د دوستانو او اشنایانو څخه وعدو اخیستلو نه زما دوه مطلبه وو؛ یو دا چې ددې کلو اوسېدونکي د

سقويانو ملګري او ياري ونکړي او دوهم دا چې غزني ته زما د واپس راستنېدو په وخت کښې زما د لښکرو په مخکښې خنډ ونه ګرځي.

د ۱۳۰۸ هـ ل. کال د شلمې ورځې شپه مې په ارامه او ډاډه زړه سره د خپلو تروزريانو سره تېره کړه په سهار چې د حمل يوويشتمه او زما د سفر شپږمه ورځ وه. د چاى خوړلو نه وروسته مې حاجي خان جګي د خپلې لارې مل او ملګرى کړ. پخه مړې مو د ځان سره واخيستله، ځکه چې مزل زيات اوږدو و. او د ممې په هسک او دنګ غره ما او حاجي خان د ګوملې په لور حرکت وکړ. تولـه ورځ مو پلې هغه اوږد منزل چې زما په مخکښې و وکړ.

کله کله مو د مه کوله. د ماښام د لمانځه وخت و چې د ګوملې غاړې ته ورسېدو؛ زما په امامت حاجي خان او ما د جماعت لمونځ ادا کړ او پـه هم هغه خادرونو چې د لمانځه له پاره مو غوړولي وو؛ د څه ګنټو له پاره وغزېدو او څه چې هوسا شوو، په توره تياره کښې مو مړې وخوړله او د ماسخوتن د لمانځه د ادا کولو نه وروسته هم هغه د ګوملې پر غاړه باندې بله کومې ويرې او ترس نه ويده شوو. ځنګه چې سفر ډېر ستړى او ستومانه کړى وم. نو د سهار لمانځه ته حاجي وپاخولم د چايو پر ځاى مو د شپې هغه پاتې شوې سړې غوښې او ډوډۍ وخوړله او د لمر راپورته کېدو نه مخکې مې حاجي خان جګي په ښې رخصت کړ. او ما په هم هغه ګنټه د زرميلن په لور خپل سپېځلي هدف ته د رسېدو په هيله په تناکو او پړسېدلو پښو پلې حرکت ته دوام ورکړ او د ښښتن تعالى په احسان سره په زرميلن کښې د خان قلا په نوم ځاى

ته په پوره وخت باندې ورسېدم. دلته هم ما ډېر یاران او اشنایان درلودل او د هرکس سره مې پوره پوره پېژندګلوي درلوده او نبغ په نبغه د تورخان، خان دورو او منګړو خان سلېمانخېل یارخېل کورته ولاړم. دوی زما ډېر پخواني ملګري او یاران وو او کله چې یې پس له کلونو کلونو څخه د خپل کور په دروازه کښې زما نوم واورېد د دوی د خېلخانې په ټولو غړو باندې د خوشحالۍ نه د اختر ورځ جوړه شوه او د هغو غیرتي سلېمانخېلو د ښځینه و نه مې دا هم په غوږو واورېدل "مریانې یارمحمد خان دې خدای پاک راولي".

د خان قلا اوسېدونکي او زما پخواني اشنا منګړو خان یارخېل د خپل افغاني غیرت او دود پر ځای کولو او زما د احترام او مېلمه پالنې په اسره پس له چای څښلو نه سمدستي یو څورپ پسه ذبح کړ او د ډوډۍ نه مخکې یې د هم هغه پسه د ینې څخه په اور ښه وریت شوی او خوندور کباب راوړ. بیا مو د ماسخوتن د لمانځه نه وروسته د هغوی په مېلمستون کښې مړۍ وخوړله، څه کلیوال هم راغلي وو. د ډوډۍ خوړلو څخه وروسته ما د خبرو په ترخ کښې د اعلیحضرت غازي امان الله خان غازي او د سقاو د زوی په برخه کښې قصدا خبره مجلس ته واچوله. څو ځانته معلومه کړم چې ددې ځای د اوسېدونکو چې اکثره یې سلېمان خېل وو. فکر او نظر څه دی؟ ځکه دلته زیات خلک د کابل د شېخانو مریدان وو او د هغوی پیري او مرشدي تر اندازې دلته چلېدله او په کال کښې یو ځل یې ښه څورب پسونه د مېږو غوړي او قورت له همدې خلکو څخه د دروږ په نوم غونډول. نو ځکه مې هیله

وه؛ چې د خان جمک د قلا د کليوالو فکر او نظر ځانته معلوم کړم.

د خان قلا د اوسېدونکو د همهغه شپې د مجلس څخه دا پته راته ولګېده؛ چې دا خلک که څه هم اعليحضرت غازي امان الله خان ته ښه نظر نه لري ولې د امان الله خان دښمنان هم نه دي او نه دې لره تيار دي چې د سقاو د زوی ملګري وکړي. ما هم د خپل سفر مقصد او هدف دوی لره عيان نکړ او کله چې کليوال د منګړو خان له مېلمستون څخه رخصت شوله او مور تنها په مېلمستون کښې پاتې شوو. نو هم هغه و چې هغوی لره مې د وزيرستان په لور د خپل سفر مقصد او هدف روښانه کړ. ځکه په هغوی باندې زما ويسا او باور و. هغه ننګيالي او مېړني (تورخان، خان دورو او منګړو خان) زما له دې حرکت څخه زيات خوښ او خوشحاله شول او د خپلې قبيلې (يارخېلو) په نماينده ګي يې د هر ډول همکارۍ وعده راسره وکړه.

هغه شپه چې په سبا يې د ۱۳۰۸ هـ ل. کال د حمل د مياشتې دوه ويشتمه نېټه وه. د منګړو خان په مېلمستون کښې مې په ډېره ارامه سره تېره کړه او په سهار د چا يو ځښلو او ناري خوړلو نه وروسته تقريبا په نهه بجو د منګړو خان له مېلمستون څخه د وزيرستان په لور وخوځېدم. دا ورځ مې ټوله پلۍ مزل وکړ. خو د څښتن تعالی په فضل او احسان سره د ماښام په شپږو بجو د وزيرو د ننګيالي او قهرمان قوم کلو ته ننوتم او د هغه کلي او اوسېدونکي هغه مېړني وو، چې د هغو په ځان او مال پورې د افغانستان راتلونکي برخليک اړه پيدا کړه.

# د خپل هدف په خاوره کښې مې قدم کښېښود

پس له شپو او ورځو د سفر او حضر څخه چې زيات ستومانه او هم پرېشانه وم. د ۱۳۰۸ هـ ل. کال د حمل د مياشتې په دوه ويشتم ماښام مې خپل قدم د وزيرستان په خاوره کښې کښېښود. دا هغه خاوره او کلي وو چې قهرمانو او غيرتي اوسېدونکو يې د ۱۲۹۸ کال د افغانستان د خپلواکۍ په جګړه کښې د فرنګيانو او ګورکه پوځونو د ملاتير ور مات کړ او په همدې محاذ کښې فرنګيانو د خپلې ماتې او تلفاتو په ليدو سره د افغانستان د خپلواکۍ منلو ته خپله د تکبر غاړه ټيټه کړه. او د اعليحضرت امان الله خان سلطنت يې په رسميت وپژانده. د وزيرستان په کلو کښې زما په قدم ايښودو سره يو ځل بيا د افغانستان د خلکو اينده برخليک ددې خاورې (وزيرستان) په جنګياليو پورې اړه پيدا کړه.

هغه وخت چې د خان قلعه (قلعه خان جمک سلېمانخېل) څخه مې د وزيرستان په لور حرکت وکړ او کله چې د وزيرو په خاوره کښې مې قدم کښېښود. نو په غرو به نومي کلي کښې سيخ په همهغه تياره ماښام کښې چې تقريبا اووه بجې به کېدې د ننګيالي او غيرتي شيرمحمد خان خوجلخېل وزير کورته ولاړم، نوموړی د افغانستان د خپلواکۍ د سرتېرو او قهرمانو مجاهدينو څخه و او کله چې افغانستان د فرنګيانو نه ازادي او استقلال تر لاسه کړ، د هغه نه وروسته موږ په ګډه د رئيس المجاهدين حاجي صاحب ملا عبدالرزاق خان اندړ تر جهادي قيادت لاندې د جهاد په مورچل کښې جنګېدو. د

ژوند خوړې او ترخې شپې مو سره سبا کړې وې. د شېر محمد خان خوجلخېل وزير مېلمستون ته زما په ننوتو سره سمدستي هغه مېلمه پال په هم هغه تياره شپه کښې زما د ښه راغلئ او عزت پر ځای کولو له پاره پسه حلال کړ. د مېلمه د احترام پر ځای کولو له پاره پسه حلالول د پښتنو اصلي دود او رسم دی او دا د پښتونولۍ يو جز او برخه ده او د کوربه له لوري د پسه حلالول ددې معنی نه لري، چې ګواکې مېلمه د خپله کوره ورې راغلی دی. په پښتنو کښې د کوربه له لوري مېلمه ته د پسه حلالول د مېلمه حق دی. د څه ساعت له پاره مې د شېرمحمد خان په مېلمستون کښې دمه وکړه او د چايو څښلو له زما په غوښتنه د ماسخوتن د لمانځه د ادا کولو له پاره د کلي مسجد ته ولاړو. ځکه زما دا تلوسه وه چې ژر تر ژره د ولس سره وګورم او د امان الله خان په مرسته لښکر راغونډ کړم. په هم هغه شپه مې په مسجد کښې د کليوالو سره وکتل. او داسې کس مې تر سترګو نشو چې دی ما نه پېژانده او يا هغه زه نه پېژندلم او زيات شمير هغه ننګيالي وو؛ چې د خپلواکۍ په جګړه کښې يې په مال او ځان باندې ونډه اخيستې وه.

د ماسخوتن د لمانځه د ادا کولو نه وروسته مې د شېرمحمد خان خوجلخېل په مېلمستون کښې ډوډۍ وخوړله د کلي ټول مشران او خانان هم راغلي وو. د ډوډۍ خوړلو نه وروسته مې وزيرستان ته د خپل اوږده سفر هدف او مقصد ټولو د مجلس حاضرينو ته څرګند او بيان کړ او هم مې د اعليحضرت غازي امان الله خان په لاسليک ښکلي شوي فرمانونه چې پکې يې د پوځي امداد غوښتلو هيله او خواهش

کړي و؛ ورته ولوستل. او په فرمانونو لوستلو برسېره مې هغه راغونډ شویو د وزیرو مشرانو ته وویل: "په افغانستان کښې ډېر قومونه او قبیلې ژوند کوي، ولې په دې بې شمېره افغاني قومونو او قبیلو کښې د خپلواکۍ قهرمان اعلیحضرت غازي امان الله خان د خپل ملاتړ له پاره د وزیرستان ننګیالي قومونه او قبیلې غوره کړي. ستاسو غیرت او مېړانه هغه لره د لمر په څېر څرګنده ده او نو ځکه یې زه د همدې فرمانونو سره ستاسو په لور راولېږلم اوس په تاسو عزیزانو ده چې د اعلیحضرت امان الله خان د خواهش پر ځای کولو له پاره په څه توګه ملاوې تړئ. هغه د کندهار څخه د کابل د نیولو له پاره حرکت کوي او په غزني کښې به زمونږ د جنګیالیو په انتظار وي. اوس تاسو مشران ژور فکر وکړئ که مو د لښکر غونډول په توان کښې وي نو به په بېړه سره دا کار په ګډه پیل کړو او که نه نو خپله خواري او غریبي به کوو. بیا هم تاسو عزیزان ښه ژور فکر وکړئ. او که مو د لښکر په راغونډولو موافقه وي نو سبا په خیر سره دوانه په لور خوځېږم څو ستاسو د غیرتمنو عزیزانو په څیر د هغه ځای د مېړنو موافقه هم واخلم".

په هغه شپه چې په سهار یې د ۱۳۰۸ هـ ل. کال د حمل د میاشتې درویشتمه نېټه وه، د شېرمحمد خان خوجلخېل په مېلمستون کښې ټولو حاضرو مشرانو او خانانو زما د وینا څخه وروسته د لښکر راغونډولو لاس راکړ او هم یې وعده وکړه چې هر سړی به په خپل مال سره په لښکر کښې برخه اخلي ځکه چې زما په لاس کښې نه پیسه وه او نه جبهه خانه. او د اعلیحضرت غازي امان الله خان له لوري د وزیر داخله

عبدالاحد خان وردگپه لاس یوازې پنځلس پانې فرمانونه راته سپارل شوي وو. او دا رښتیا ده، چې ننګیالي او جنګیالي مېړونه په ننګ او غیرت تر لاسه کېږي، نه په مال او دولت سره. نو ځکه په همهغه شپه ننګیالي شېرمحمدخان خوجلخېل تر هر کس نه مخکې برسېره په عهد او پیمان زیاته کړه: "زه او زما د کورنۍ ټوله نارینه او ښځینه، لوی او کوچني د افغانستان تر پاکې خاورې نه ځانونه او مالونه قربانوو او ستا مریانې یارمحمد خان تر قوماندې لاندې د اعلیحضرت غازي امان الله خان په پلوۍ تر هغه جنګېږو تر څو راپکې ساه چورلي. ته مخ ته یې مور ټول ستا تر شا ولاړ یو".

د ننګیالي شېر محمد خان خوجلخېل د همهغه ماسخوتن وینا په ما باندې خاص اثر وکړ او هم یې دا ډاډ راپه برخه کړ، چې انشاءالله زما په حرکت کښې ښتن تعالی برکت ایښودلی دی. او هم په دې باندې مطمئن شوم چې د بري او کامیابۍ ګېنټې رانژدې دي. د مجلس په پای کښې مې د ټولو مشرانو څخه مننه وکړه چې اول یې زما راتګ ته ښه راغلئ ووایه، دوهم یې زه خالي لاس ځواب نه کړم او دریېم یې د اعلیحضرت غازي امان الله خان د فرمانونو احترام پر ځای کړ. هغه شپه مې په ډېره خوشحالۍ سره په غړوبه کښې د شېر محمد خان خوجلخېل په مېلمستون کښې تېره کړه. د سهار لمونځ مې په همهغه مسجد کښې ادا کړ چې د ماسخوتن لمونځ مې پکې ادا کړی و. د لمانځه د فراغت نه وروسته مې یو ځل بیا ټول معزز مشران ولیدل او ټولو دا پرېکړه وکړه چې په ګډه زما د مېلمستیا پر ځای کولو له پاره چای په مسجد کښې وڅښو. هرکس تودې تودې مړۍ او پاخه طعامونه مسجد

ته راوړل. څه نور کليوال هم راغلل. کله چې طعامونه وخوړل شوه او چای وڅښل شوې نو دا وخت د لمر تودوخه څه حس کېدله د حمل د مياشتې درويشتمه نېټه وه چې د غروبه د مسجد څخه د يوې ډلې ننګياليو او جنګياليو وزيرو سره د وانه په لور وخوځېدم. ځکه چې وانه د وزيرو او مسودو د ننګياليو او بهادرو قومونو او قبيلو مرکز و او ما هم دا غوښته چې د خپل کار او فعاليت مرکز وانه وټاکم. نو هغه و چې په همهغه ورځ د خپلو ملګرو سره د وانه په سيمه کښې بومي نومي کلي ته ورسېدم. او په بومي کښې زه او زما مل ننګيالي ملګري د محمد افضل خان زلېخېل کونډ کښې په مېلمستون باندې مېشته شوو. په بومی کښې مېړنی خان جانخان هم مېشت و د همدې کلي نارينه او ښځينه و ما او زما ملګرو ته تر حد زيات ښه راغلئ او هر کلی ووايه او يقين مې و، که خپله اعليحضرت غازي امان الله خان هم ورته راغلی وای دومره هر کلی به يې نه وای شوی. محمد افضل خان زلېخېل په همهغه اوله شپه دری پسونه حلال کړله او د ماسخوتن ډوډۍ ته يې يو شمېر کليوال هم راغوښتي وو. د لمانځه د ادا کولو نه وروسته د کور څخه مېلمستون ته ډوډۍ راوړله شوه. او کله چې ډوډۍ وخوړل شوه او د خبرو او مجلس کولو وخت ته فرصت پيدا شو نو تر هر څه مخکې ما حاضرين مخاطب کړل "عزيزانو تاسو به متعجب او حيران ياست، چې زه څنګه پس له اتو کالو څخه بيا ستاسو د ننګيالي ولس کلي په کلي ګرځم. تېره شپه په غروبه کښې د مېړني شېرمحمد خان خوجلخېل په مېلمستون کښې وم؛ او دا دی نن د غروبي د يو شمېر افرادو په ملتيا ستاسو په کلي کښې د خپل پخواني اشنا محمد افضل

خـان پـــه مېلمســـتون کـــښې یم. تاســـو د خپلواکـــۍ د لارې مجـاهدین بـه ښه خـبر یاسـت چـې دا دری میاشـتې کـبېږي چـې پـه افغانسـتان کـــښې څه تـــېرېږي. اعلیحضـرت غـازي امـان الله خـان د یـو څو سـارقینو لـه لاسه خپـل تـاج او تخـت پـرېښودلی دی او اوس پـه کندهـار کـښې د ډېـر.مجبوریـت پـه اسـاس د بېچاره ګۍ او بې کسۍ پـه حـالت کـښې ژونـد کـوي. د هغـه زیـات جرنیـلان او کرنیـلان او نـور لـوړ کسـان څوک د سـارقینو ملـګري شـول او ځینـو یـې تیښتـه او فـرار وکـړ د اعلیحضـرت غـازي امـان الله خان د ټولـو وزیرانـو څخـه یـوازې وزیـر صـاحب دربـار محمـد یعقـوب خـان، وزیرصـاحب داخلــه عبدالاحــد خــان وردګ وزیــر صـاحب حربیـه عبدالعزیـز خـان او معـین صـاحب سلطنه یـې پـه څنـګ کـښې ولاړ دي. مـا لـره یـې شـاه جـوی تـه عبدالاحدخـــان وردګ د پنځلســو فرمـــانونو ســره راولــېږه او پخپلــه اعلیحضـــرت غـازي امـان الله خـان د فرمـان او وزیـر صـاحب داخلـه پـه ژبـه دا دنـده او وظیفـه راکـړه چـې تاسـو عزیزانـو تـه راشـم او د هغـه پـه هیلـه او خواهـش سـره پـه ګډه یـو لـوی لښکـر د خپلـو جنګیـالیو ځوانانو او سرتېرو څخـه د غزنـي پـه لـور وخـوځوو.

اعلیحضـرت غـازي امـان الله خـان هـم پـه خپلـه د کندهـــاري لښکـرو سـره د همـدې میاشـتې پـه اخـره کـښې ځان غزنـــي تـــه رارسـوي. پـه غړوبـه کـښې شـېرمحمد خـــان خوجلخـېل او نـــورو مشـرانو تـه مـې هـم دا خـبره کـړې ده او اوس هغـه خـبره تاسـوته کـوم چـې "پـه افغانسـتان کـښې ډېر قومونـه او قبیلـې ژونـد کـوي، ولې په دې بـې شـمېره افغـاني قومونـو او قبیلـو کـښې د خپلواکـۍ قـهرمان غـازي امـان الله خـان د خپـل ملاتـړ لـه پـاره د وزیرســتان ننګیالي قومونـه او قبیلـې غـوره کـړي او دا مـالره د ویـاړ نخښه ده

او تاسو هم باید په دې باندې هسکه او دنګه غاړه وګرځئ، چې هرکله ستاسو ننګیالو دا افتخار په برخه شوی دی.
ستاسو غیرت او مېړانه اعلیحضرت غازي امان الله خان ته د لمر په څېر څرګنده او روښانه ده او نو ځکه یې زه د همدې فرمانونو سره ستاسو په لور راولېږلم دا دی د اعلیحضرت امان الله خان پیغام ماتاسو ته د امانت په توګه راورساوه. اوس په تاسو مشرانو او ملکانو پورې اړه لري، چې همدې پیغام ته څرنګه ځواب ورکوئ او که مو د لښکر په راغونډولو کښې موافقه وي. ان شاءالله نن شپه به زه د درست وزیرستان خانانو، مشرانو او ملکانو ته لیکونه ولیکم او په سبا به یې غښتلو ځوانانو ته وسپارم چې هر لیک تر خپل څښتن پورې ورسوي.
او هم به هرکس ته په ګوته کړم چې د جمعې په ورځ د خوجلخېلو په جامع جومات کښې جرګه کوو". زما د وینا څخه وروسته ټولو هغو مشرانو چې د محمد افضل خان په مېلمستون کښې یې ګډون درلود، په یوه ژبه وویل: "مریانۍ یار محمد خانه! مونږ تاسو او ستاسو روحاني کورنۍ د کلونو کلونو څخه پېژنو ستا جهاد، غیرت او زمونږ پر قوم باندې نیکه پېرزوینه مونږ ته د قدیم څخه رامعلومه ده. هغه وخت چې د فرنګیانو زور زیاتی و؛ ته زمونږ په څنګ کښې په مېړانه جنګېدې او اوس چې ته د شاه جوی څخه داعلیحضرت غازي امان الله خان د فرمانونو سره راغلی یې او که دا فرمانونه هم ستا په لاس کښې نه وای. بیا به هم زمونږ غبرګون دا و، چې یارمحمد خانه ته مخکې شه، مونږ ستا تر څنګ په مال او ځان باندې ولاړ یو. په همدې ګنټه او په همدې حاضره غونډه کښې مونږ ټول په قومي او قبیلوي اتفاق سره دا ډاډ درکوو چې تا به بې هیلې

او بې اسرې نکړو په کومه لاره چې تا اراده کړې ده، او په کومه لار چې دې اراده وي، موږ په هغه لیار درسره مله یو او تر هغې ګېنتې پورې به دې ملګري او یاري کوو؛ تر څو راپکې ساه چورلي. زموږ د ټولو دا یقین او باور دی، چې ستا دا اوږد پلی سفر د وزیرو او مسودو د قومونو او قبیلو د سرلوړی له پاره دی. ته نن شپه په پوره ډاډ او اطمینان سره خپل لیکونه د نورو مشرانو په نوم ولیکه. ان شاءالله و تعالی سبا پر وخت به تکړه او غښتلي ځوانان ستا او د قوم په خدمت کښې ودروو. زموږ د ټولو په همدې باندې فیصله او امین دی".

شپه ښه پخه وه؛ چې د بومی او نورو خرمه او نږدې کلو مېړني او غیرتي مشران د محمد افضل خان ذلیخېل کونډکي له مېلمستون څخه د خپلو هسکو او دنګو قلاو په لور رخصت شول.

په همغه شپه مې چې سبا یې د ۱۳۰۸ ل. کال د حمل د میاشتې خلېرویشتمه نېټه وه؛ د مسودو وزیرو، دوړو او تنیود قومونو مشرانو ته د اعلیحضرت غازي امان الله خان د بلوی له پاره د لښکرو د راغونډولو لیکونه ولیکل او د لیک متن په دې ډول و: "عزیزانو! زه مریانۍ یارمحمد د شاه جوی څخه د اعلیحضرت غازي امان الله خان په سپارښتنه نن تاسو د ۱۲۹۸ هجري لمریز کال د خپلواکۍ د جګړې د مورچې زړو او ازمویل شوو ملګرو ته راغلی یم. څو د اعلیحضرت غازي امان الله خان په طرفدارۍ د همدې غیرتي خاورې د ننګیالو اوسېدونکو څخه یو عظیم جنګیالی لښکر تیار کړم. عزیزانو! ځنګه چې تاسو ته پته ده؛ چې اعلیحضرت غازي امان الله خان د زیات مجبوریت په اساس خپل تاج او تخت ویوه

سارق او کوتاه طریق ته پرېښودلی دی. نن هغه د خپلواکۍ قهرمان په کندهار کښې اواره او بېچاره دی؛ او پتمنې بیبیانې یې هم ورسره اواره او بېچاره دي. د بل لوري نه د سلطنت د کورنۍ زیات غړي د سارقینو په لاس کښې بندیان دي. د کندهار د قلات په سیمه کښې ستاسو د مېړنـي قوم او ددې غیرتي خاورې یو سل او پنځوس جنګیالیو چې زما او ستاسو افتخار دی د حبیب الله بچه سقاو دوه زره پلویانو ته سخته ماتې او شکست ورکړ. نو کله چې اعلیحضرت غازي امان الله خان د وزیرو د قوم د افرادو د همغه مېړانې او شجاعت خبر واورېد، ځکه دا امید ورکې پیدا شو، چې د هر لوري نه لښکر راغونډ کړي. هغه خپل داخله وزیر عبدالاحد خان وردګ پنځلسو فرمانونو سره مالره شاه جوی ته راولېږه څو زه وزیرستان ته راشم او د هغه په پلوي د وزیرو، مسودو، د وړو او تنیو د جنګیالیو څخه لښکر تیار کړم. دا ګنټه اعلیحضرت غازي امان الله خان د افغانستان د زیاتو قومونو او قبیلو د امداد څخه مایوسه او ناامیده شوی دی. په کندهار کښې د هغه خپل قوم او قبیلې د اعلیحضرت د پلوی نه هم اوږه خالي کړې ده، اوس هغه د خپلواکۍ قهرمان د امداد او مرستې غوښتلو لاس په ډېره بېچاره ګۍ کښې تاسو د وزیرستان ننګیالیو مشرانو ته رااوږد کړی دی او خپل د امداد حاصلولو امید نن په تاسو عزیزانو کښېویني. په غړوبه کښې شېرمحمد خان خوجلخېل او په بومۍ کښې چې هم دا شیبه زما د استوګنې ځای دی محمد افضل خان زلیخېل او نورو مشرانو ته مې هم دا خبره کړېده. د غړوبه او بومۍ غونډ ولس راسره د لښکر په تیارولو کښې وعده کړې ده. او د حمل د میاشتې په

درویشتم مابنام د محمد افضل خان په مېلمستون کښې د بومي. او نورو نژدې سیمو مشرانو دا هم غوره وګڼله چې د درست وزیرستان مېړني او په ننګ مین مشران په یوه محل کښې سره راټول شي. او هم ټولو مشرانو په اتفاق سره ما لره دا وظیفه راکړه، چې د وزیرستان د غیرتي خاورې هر مشر ته بېل بېل لیک ولیکم. اوس دا ما مناسبه وګڼله چې ژر تر ژره د جمعې په ورځ د خوجلخېلو په جامع مسجد کښې سره جرګه شو".

د ۱۳۰۸ هـ ل کال د حمل د میاشتې د څلېرویشتم سهار لمونځ مې د بومي. د کلي په مسجد کښې ادا کړ، د کلي ټولو مشرانو او زیات ولس د همغه سهار په لمانځه کښې ګډون کړی و. د لمانځه نه وروسته زه او نور مشران د محمد افضل خان مېلمستون ته راغلو. هغه لیکونه چې تېره شپه ما د وزیرستان د مشرانو په نومونو لیکلي وو، هغه مې حاضرینو ته قرائت کړله او کله چې د سهار چای مو په ګډه سره وڅښلې، هغه لیکونه مو سړو ته وسپارل، چې په بېړه یې د درست وزیرستان مشرانو ته ورسوي. د لمر په تودېدو سره زه او یو څو تنه مشران د ملاهمزالله اخند د ملاقات له پاره د شکي په لوري وخوځېدو. او دا وخت هغه ستر مجاهد او زما د جهاد د مورچل قاید (ملا همزالله اخند) زیات سپین ږیری او بې سېکه شوی و.

د شاه جوی څخه وزیرستان ته زما په رسېدو سره ډېر ژر د هغه غیرتي خاورې ټول ننګیالي خبر شوله هره ګنته او هره شېبه د لیرې لیرې سیمو څخه قهرمانان د محمد افضل خان زلیخېل مېلمستون ته زما د ښه راغلاست او د اعلیحضرت امان

الله خان د فرمانونو اورېدلو ته په ډلو ډلو راتلل. او د هغه په څنګ کښې هر کس او هر فرد د مال او ځان په قرباني باندې راسره ژمنه کوله. تر ټولو ځوانان زيات تلولي او احساساتي وو؛ او دديې انتظار يې ايسته چې کله به د خپل قوم د خدمت کولو له پاره په وينو ورنګول شي. نه پوهېږم چې د وزيرستان د ننګياليو قومونو او قبيلو د هغه قهرمانانو هومره مينه د اعليحضرت غازي امان الله خان سره د کومو اړيکو او ارتباطاتو نتيجه وه.

تر هغه ورځې چې زه د محمد افضل خان زلېخېل په مېلمستون کښې وم. نو محمد افضل خان به په هره شپه او ورځ زما او ملګرو ته درې پسونه ذبح کول او کله کله به نورو مشرانو د محمد افضل خان په اجازه؛ ما او زما ملګرو ته پخه ډوډۍ مېلمستون ته راوړله. سهار او ماښام د هر لوري څخه خلک راتلل. د ولس د همدې تګ او راتګ څخه فرنګيان هم اګاه شوله او مالره د خپلو سرو څخه احوال په لاس راغی؛ چې فرنګيان د لښکر په ټولولو کښې خند اچوي او په دې تلاش کښې دي چې تا ووژني او يا دې د ۱۲۹۸ د خپلواکۍ د جګړې او بيا د خپلواکۍ نه د وروسته جنګونو او فرنګي پوځونو ته د تاوان اړولو په جرم په زندان کښې واچوي. دا د فرنګيانو يوه بې ځايه بهانه وه ولې په اصل کښې د افغانستان د خپلواکۍ دښمنانو دا نه غوښته چې د اعليحضرت غازي امان الله خان په ملاتړ دې د دوی تر ولکې او تصرف لاندې افغاني خاورې څخه د جنګياليو لښکر غونډ کړه شي.

اعليحضرت امان الله خان ته فرنګيانو په خپل ناولي لاس باندې خلک راپارولې او تحريک کړي وو. يو څو تنو په نوم

ملايانو او شېخانو تـه يـې پيسـې ورکـړې وې، چـې د خپلواکـۍ پـه قـهرمان بـاندې د قاديـاني او کـافر حکـم وکـړي. نـو فرنګيـان کلـه پـه دې خـوښ وو، چـې د وزيـرو، دوړو، تنيـو او مسـودو ننګيـالي او جنګيـالي قومونـه دې د امـان الله خـان پـه څنـګ کـښې د هغـوی د معـاش خـورو پـه وړانـدې وجنـګېږي. نـو ځکـه فرنګيـانو زمـا لـه لوري د اعليحضـرت امـان الله خـان پـه پلـوي د لښـکر پـه غونـډولو کښې خنډونـه اچـول.

## د خوجلخېلو په جامع جومات کښې د مشرانو غونډه او پرېکړه

هغـه نـېټه چــې مــا د وزيرســتان د قومونــو او قبيلــو مېړنيــو خانـانو، ملکـانو، ملايـانو، او مشـرانو تـه د يــوې لويــې جــرګې او غونـډې د جـوړېدو لـه پـاره پـه ګوتـه کـړي وو: هغــه نــېټه ډېر ژر راورسـېده. او هغـه نـېټه د ۱۳۰۸ هجـري لمريــز کـال د حمـــل د مياشـتې د اخـري برخــې د جمعــې مبارکــه ورځ وه. زه د بومــي مشران او د غړوبــه نـه راسـره مـل ملـګري جـوپـه جـوپـه د محمـد افضـل خـان د مېلمسـتون څخـه د واڼه د مرکـز پـه لـور روان شــوو. او د واڼه په مرکـز کـښې د خوجلخېلـو جـامع مسجد تـه پـه ټاکلـي وخـت بـاندې ورســېدو، زمــوږ د رســېدو مخکــې نــور ننګيــالي مشـران جـامع مسـجد تـه رارسـېدلي وو، او د لــېرو ســيمو او کلــو اوسېدونکي يوه ورځ مخکـې مرکـز تـه راغلـي وو. کلـه چـې جـامع مسجد ته ورسېدم پـه هـر لـور مـې مجـاهد او جنګيـالي ځوانـان پـه

خدمت کولو بوخت ولیدل او یو زیات شمېر سړي په پخلي باندې مشغول وو.

د خوجلخېلو په جامع جومات کښې د مرکز په خلکو سربېره د کلو او باندو څخه هومره ولس راغونډ شوی و، چې د جامع مسجد امام (مولوي صاحب عتیدا ګل خان) هک پک ورته تللی و. د وزیرو او مسودو د قومونو کوم ننګیالي او تورزن مشران چې مسجد ته راغلي وو، هغوی ټوله زما د جهادي مورچل ملګري وو، ما او هغوی د فرنګیانو په وړاندې د مجاهدې په مورچل کښې ډېرې سړې او تودې ګاللې وې ما هغوی ښه پېژندل او هغوی زه ښه پېژندلم ملا صاحب همزالله اخند د خپل جسماني ضعف سربېره جرګې ته ځان رارسولی و. د هغه ناتوانه حالت ولې قوي ایمان او غښتلې ارادې په همهغه ورځ په هر کس باندې خانګړی اثر کاوه.

مولوي صاحب عتیدا ګل خان په همهغه ورځ یوه جهادي خطبه ولوستله، په خپله خطبه سره یې د قوم احساسات په خوښ او حرکت راوستل. او د هرکس د څېرې نه ښکارېده چې د قوم او وطن خدمت ته تیار او اماده دی او کله چې د جمعې لمونځ د مولوي صاحب په امامت تمام شو، مولوي صاحب زما نه هیله وکړه چې د قوم حاضرو کسانو ته د هغه څه په مورد کښې یو لنډ بیان وکړم چې د هغه ماموریت د سرته رسولو له پاره زه د شاه جوی څخه وزیرستان ته راغلی وم. ما په خپل بیان کښې د حمد او ثنا نه وروسته د وزیرستان د قومونو او قبیلو مېړانه او شجاعت وستایه. او په رښتیا چې د هغه غیرتي قومونو او قبیلو غیرت او بهادري هر وخت د ستایلو وړ ده. د خپلې خطابې په جریان کښې مې د اعلیحضرت

غـازي امـان الله خـان مجبـوري او پرېشـاني او هـم د هغـه قـهرمان پيغام ولــس تــه واوراوه. زمــا د لنــډې خطــابې او بيــان څخــه وروسته د غرمـــې د مړی خوړلـو اعـلان مولـوي صـاحب عتيـدا ګل خان وکـړ.

خــدای(ج) خـــبر چـــې پـــه هغـــه ورځ د وزيــرو او مســـودو د قومونو مشرانو سـل او کـه تـر هغـه نـه زيـات پسـونه ذبـح کـړي وو. د هغوی مېړانې او بــې انـدازې غـيرت پـه همهغـه ګنـټه او شـېبه دا يقـين راپکـې نـور زيـات کـړ، او لـه ځان سـره مـې ويـــل چـــې ان شـاءالله و تعـالی هـم دا د وزيـرو او مسـودو ننګيـالي بـه وي، چـــې د سـارق او کوتـاه طريـق حبيـــب الله او د هغـــه د رهـــزن ملـــګرو څخه به بېرته اعليحضـرت امـان الله خـان تـه سـلطنت اخلـي. کلـه چـې د غرمـې ډوډی پـه جـامع جومـــات کـــښې ولـــس او مشـــرانو وخـوړه. نـو د وزيـرو او مسـود د قومونـو او قبيلـــو ننګيـــالي او پـــه افغاني پښتني پـــت مـين مشـران اعليحضـرت غـازي امـان الله خـان تـه د مرسـتې او امـداد رسـولو پـه هيلـه د جـامع مسـجد پـــه يـــوه ګوښه کـښې سـره جـرګه شـول. پـه غونـډه کـښې د هغــــو مشـــرانو شمېر تقريبا پينځوسوو نفـرو تـه رسـېده او کـوم ولـس چـې د هغـوی سره دې جرګې ته راغلی و، تـر يـو زرو افـرادو نـه هـم زيـات وو.

د مشـرانو جـرګه مولـوي صـاحب عتيـدا ګل خـان د قـران پـاک پـه تــلاوت سـره وپرانيسـتله: او د هغـه نـه وروسـته ټولـو مشـرانو زمـا څخه غوښتنه وکـړه، چـې د افغانسـتان حـالات او پـه کندهـار کـښې د اعليحضـرت امـان الله خـان د دريـځ پـه برخـه کـــښې څه ورتـــه بيان کړم. ما چې نـه غوښتـه اوږده خطابـه ورکـړم نـو مـې پـه لنـډه تـوګه پـه څوټکـو کـــښې د وزيـــرو او مســـودو د قومونـــو او قبيلـــو مشـرانو، خانـانو، ملکـــانو او ملايـــانو تـــه وويـــل: "څو تنـــو غلـــو د

حبیب الله په مشری چې کابل ته نژدې د کوهدامن باشنده دی او خلک یې د سقاو د زوی په نوم سره پېژني د افغانستان د پېړیو پېړیو تاج او تخت غصب کړی دی، د افغانستان درست دېگانان او یو شمېر غلجي قومونه او قبیلې د هغه سارق په ملګری ولاړ دي. اعلیحضرت غازي امان الله خان د همهغه غلو له لاسه اوس په ډېره بېچاره ګی کښې په کندهار کښې ژوند کوي او دا یې تکل دی چې د کندهار، هلمند، فراه او هرات له خلکو څخه لښکر جوړ کړي او بیا د غزنې په لور حرکت وکړي، ما او ستاسو نور عزیزان چې په شاه جوی کښې استوګن دي، کندهار ته نژدې د قلات په سیمه کښې د سقاو د زوی د ملګرو سره د اعلیحضرت امان الله خان په پلوی د حمل د میاشتې په اولو کښې جګړه وکړه، او زموږ په لاس هغوی په جګړه کښې ماتې وخوړه، نو کله چې اعلیحضرت امان الله خان ته خبر ورسید، هغه و چې سمدستي یې د وزیر حربیه عبدالعزیز خان بارکزایي، وزیر داخله عبدالاحد خان وردګ وزیر دربار محمد یعقوب خان او معین السلطنه صاحب سردار عنایت الله خان سره سلا او مشوره وکړه. او بیایې وزیر صاحب داخله عبدالاحد خان د پنځلسو فرمانونو او شفاهي پیغام سره موږ ته دایلچې په توګه راولېږه. د اعلیحضرت غازي امان الله خان په همدې فرمان کښې ماله وظیفه سپارلې ده، چې ستاسو مجاهدو مشرانو او د وزیرستان غیرتي خاورې ته راشم. او بیا ستاسو عزیزانو په سلا، همکاري او موافقه سره د افغاني پت د خوندي ساتلو او پښتني ننګ پر ځای کولو له پاره؛ د همدې میاشتې په اخیر کښې د حبیب الله او د هغه د پلویانو مقابلې ته د وزیرو او مسودو د جنګیالیو نه لښکر د

افغانستان په لور وخوځو. اوس ستاسو عزیزانو خوښه او اختیار دی، چې څومره ژر جنګیالي غونډولی شو. او زه په هر صورت کښې ستاسو څخه خوښ او ممنون یم. چې زما راتګ او لیکونو ته مو په مېړانه سره هر کلی ویلی دی. او زما څخه ستاسو د تکلیف ګاللو او زحمت ایستلو عوض نشته، لوی خدای(ج) دې تاسو باغیرته او مېړنو مشرانو ته اجر در په برخه کړي.

زه په دې یقین او باور یم: چې همدا نن ورځ او همدا ګنټه ستاسو د راغونډ شوو مشرانو هره پرېکړه او فیصله، د افغانانو د راتلونکي برخلیک پرېکړه او فیصله ده.

زما د وینا اورولو څخه وروسته د خوجلخېلو په جامع مسجد کښې د وزیرو او مسودو د راغونډ شوو مشرانو څخه یو شمېر مېړنو په خپل وار او نوبت سره د لښکر په راغونډولو او غزني ته د اعلیحضرت غازي امان الله خان د رسېدو سره د مرستې او امداد رسولو په اړه رایه او نظر څرګند کړ. د ټولو بهادرو او غښتلو مشرانو عقیده د یوه عظیم لښکر په تیارولو او اعلیحضرت غازي امان الله خان ته د امداد د لاس غځولو په مورد کښې یوه وه.

د وزیرو او مسودو د مشرانو د جرګې په غونډه کښې ننګیالي او غښتلي مجاهد انګور خان د خپلې جذابې او ملي احساساتو نه ډکې وینا په ترخ کښې وویل: "عزیزانو! د افغانستان د مشکل اوازوولو له پاره د لښکر غونډول د قوم او خاورې خدمت دی او دا خدمت د مسودو او وزیرو غیرتي ځوانانو په هر وخت کښې کړی دی. موږ بې له افغانستان او افغانستان بې له موږ نه ژوندی نه شي پاتې کېدلی. نن پر موږ مشرانو باندې دا فرض ده، چې قوم او وطن ته خدمت وکړو.

زما رايه او نظريه داده، چې هم دا ګنته د هر قوم او هرې قبيلې او هر کلي ځوانان او جنګيالي راغونډ کړو او په کوم لوري چې يارمحمد خان مرياڼی حرکت کوي په همهغه لوري ورسره حرکت وکړو".

د مشرانو د خطابو په جريان کښې ملاصاحب فضل الدين اخند چې موږ ورته شهزاده صاحب وايه: د قوم مشرانو، خانانو او ملکانو ته مخ کړ: "د مسودو د قوم د مشرانو او ولس په نماينده ګی زما رايه او نظريه همدا ده، چې ژر تر ژره جنګيالي راټول کړو او ټوله د مرياڼي يارمحمد خان چې هم وزير او هم مسود په درنده سترګه ورته ګوري؛ تر قوماندې او جرنيلی لاندې لښکر افغانستان ته روان شي. او دا په اګاه (ملاهمزالله اخند) چې د جهاد او لښکر غونډولو په چارو کښې پوره اتيا کاله شپه او ورځ ولاړ دی؛ زموږ قومي مشرانو او د تمام وزيرستان قائيد دی: د لښکرو د غونډولو او د هغوی د انتظام په حصه کښې څرنګه لار ښوونه او هدايت کوي. هغه به عملي او تطبيق کړو".

ملا همزالله اخند چې ولس ورته اګاه وايه: عمر يې تر سلو کالو اوښتی و؛ د شهزاده صاحب د وينا او نظر سره جوخت په خپل ريږدېدلي او اټراچوونکي اواز سره د جرګې ګډون کوونکو ته وويل: "تاسو د قوم مشران او ملکان د جنګ په اصولو او د ولس څخه د جنګياليو د راغونډولو په چارو ښه پوهيږئ. ستاسو نه هر کس د رئيس المجاهدين جرنيل، غونډ مشر او کنډکمشر و، د فرنګيانو په وړاندې مو د مرحوم ملا پونده اخند په څنګ کښې جهاد او مجاهده کړې ده. بيا هم د شهزاده صاحب په هيله افغانستان ته د لښکر په لېږلو کښې تاسو

د قوم مشرانو او ملکانو ته څه اصول در په ګوته کوم. دا اصول څه د قران ټکي نه دي. او تاسو مشران په هر زمان کښې پر هغو باندې څه زیاتولی او یا ترینه کمولی یې شئ.
لوی او غیرتي د وزیرستان د مجاهدینو قاید او رهنما ملا صاحب همزالله خان احمدزي د خوجلخېلو د جامع مسجد په لویه جرګه کښې د لښکر د راغونډولو له پاره موږ مشرانو ته لاندني اصول را په ګوته کړل:

۱. د وزیرستان هر خان او ملک د قومي ننګ او غیرت پر بنا باندې باید د خپل توان په اندازه د لښکر په غونډولو کښې ونډه واخلي او خپل سړي د اعلیحضرت غازي امان الله خان امداد ته ولېږي.
۲. هغه جنګیالي چې په لښکر کښې ګډون کوي، باید له ځان سره خپل ټوپک، کارتوس او څوري ولري، د ټوپک او کارټوسونه لرونکي سړي دې د لښکر سره د نورو چارو د سرته رسولو له پاره ملګري شي. او خپل د خوراک څیزونه دې له ځان سره واخلي
۳. فرنګیان چې د افغانستان د خپلواکۍ او امان الله خان دښمنان دي. هڅه کوي چې په تاسو مشرانو باندې زور واچوي چې د اعلیحضرت غازي امان الله خان په طرفدارۍ د وزیرستان څخه لښکر غونډ نه شي. ما دا خبر د هغو سړو څخه تر لاسه کړی دی چې د فرنګیانو په دفترونو کښې کارونه کوي. نو د فرنګیانو د تهدید او زور اچولو په صورت کښې باید زموږ د هر یوه مشر ځواب هغوی ته دا وي، چې د قوم مشران او ملکان په ولس باندې زور نه شو لګولی، چې دا وکړئ او دا مه کوئ.

تاسو خپل پوځیان او ملېشا ولېږئ، چې ولس افغانستان ته دتلو او مریانې یارمحمد خان د ملګرې نه منع کړي.

۴. مخکې له دې چې فرنګیان په جدي اقداماتو لاس پورې کړي. نو دا غوره ده، چې په همدې څو شپو او ورځو کښې هغه سړي چې د جنګ له پاره ځانونه تیارولی شي، د یارمحمد خان په ملتیا د افغانستان په لور حرکت وکړي

۵. خدای ج دې نه کړي، که همدا نن مریانې یارمحمد خان د فرنګیانو په لاس کښېوزي، نو په هغه صورت کښې به مونږ د وزیرو او مسودو مشران په ګډه سره د یارمحمد خان د خلاصون له پاره د وانه پولټیکل او تحصیلدار ته په مال او ځان ضمانت ورکوو.

٦. په یوه پېښه کښې د لښکرو سره د مل مشرانو په اختلاف دې یارمحمد خان مریانې مینځګړی وي او دده فیصله دې د هرکس د قبول وړوي.

۷. د اعلیحضرت غازي امان الله خان د مخالفینو څخه چې هرڅه د وزیرو او مسودو د جنګیالیو په لاس کښېوزي، هغه د افغانستان د حکومت مال دی. او د لښکر هر فرد باید په دې وپوهول شي، چې د غنیمت تر لاسه کولو له پاره نه ځي او هر هغه څه چې په جنګ کښې تر لاسه کېږي د هغه ضایع کول اسلام او قوم ته خیانت دی.

۸. د لښکر په لیاره کښې د مېشته قومونو او قبیلو سره د لویې او وړې خبرې په را وړاندې کېدو سره، هره ربړه د قومي مشرانو په جرګه او پښتنې دود فیصله کوئ.

۹. زما خوښه داده چې هره چاره مو په سلا او مشوره وي او مریانی یار محمد خان چې د حاجي صاحب ملا عبدالرزاق خان د مجاهدینو غونډ مشر و اوس دې د همدې لښکر جرنیل وي.

د لوی مجاهد ملا صاحب همزالله اخند په لارښوونکې وینا او هدایت باندې د وزیرو او مسودو ټولو غیرتمنو او مېړنو مشرانو بې له کوم واړه اختلاف څخه موافقه وکړه، د خوجلخیلو د جامع مسجد امام عتیداګل خان چې په جرګه کښې د ملاهمزالله اخند تر څنګ ناست و، په دعا لاس اوچت کړ او په دعا کښې یې د اسلام، قوم او وطن په لاره کښې د وزیرو او مسودو د مشرانو د اتفاق او د سقاو د زوی (حبیب الله) په مقابل کښې د وزیرستان د لښکر بریالیتوب د څښتن تعالی څخه طلب کړ، د مولوي صاحب عتیدا ګل خان د دعا نه وروسته ما د جرګې د حاضرینو او د وزیرستان د غیرتي ولس څخه مننه او کورودانی وکړه، چې د فرنګیانو په مخالفت برسېره یې وزیرستان ته زما د راتګ هر کلی د لښکر په تیارولو سره وکړ او هم یې زما په لاس کښې د اعلیحضرت غازي امان الله خان د فرمانونو احترام او عزت پر ځای کړ.

د همهغه ورځې د مازدیګر لمونځ مو په جامع جومات کښې ادا کړ او د لمانځه نه وروسته ټولو مشرانو د یو او بل نه رخصت واخیست، زه او زما ملګري د بومی په لور روان شوو.

فرنګیانو نه غوښته چې د وزیرو او مسودو د قومونو او قبیلو جنګیالي د اعلیحضرت غازي امان الله خان په پلوی د افغانستان د کورنی جګړې د اور مړ کولو له پاره ولاړ شي. نو یې په هر لور په خنډ اچولو او په قوم کښې د بې اتفاقی

راوستلو کوښښونه پيل کړل، د وانه پولټيکل بريمنر او تحصيلدار محمد نواز خان مروت او هم يې د توچي پولټيکل او تحصيلدار غلام حسن خان ته هدايت او حکم وکړ چې افغانستان ته د وزيرستان د لښکرو د تلو مخه ونيسي او هم يې د وانه پوليټيکل او تحصيلدار ته وظيفه سپارلې وه چې ما (يارمحمد) مړ او يا ژوندی تسليم کړي، فرنګيانو افغانستان ته د وزيرو او مسودو د غيرتي ځوانانو د مخنيوي له پاره له الوتکو نه کاغذونه وغورځول، په کلو او بازارونو کښې يې اعلانونه وځړول چې پکې ليکلي يې وو: "هر هغه څوک چې د يارمحمد خان مرياڼي په بلنه افغانستان ته د امان الله خان د امداد له پاره ولاړ شي، مور لره مجرم او جريمه به تاديه کوي او هم يې په اعلاناتو کښې ليکلي وو چې د تېرو جنګونو او خساراتو په اثر يارمحمد خان مرياڼي د هند حکومت ته مجرم دی او د مجرم ملګري او ورسره مرسته کول جرم دی".

د هغې ورځې خخه چې ما د وزيرستان په خاوره کښې قدم کښېښود دا راته پته وه چې فرنګيان به ضرور د لښکر په غوندولو کښې خنډ راپيدا کوي، ولې د وزيرستان د قومي مشرانو، خانانو، ملکانو او ملايانو په ايمان او غيرت مې دا يقين او باور و چې هغوی به دا د افغاني ننګ او مېړانې په کار کښې د پولټيکل او يا تحصيلدار پروا ونه ساتي، زما همهغه مخکينی يقين او باور و چې د وزيرو او مسودو د تورزن او بهادر قومونو مېړنو او په پت پېښو مشرانو وزيرستان ته زما د رسېدو هرکلی ووايه او د اعليحضرت غازي امان الله خان د فرمانونو او پيغام يې خاص احترام وکړ.

## د خوجلخېلو د جامع جوماتٍ په جرګه کښې د برخوالو مشرانو نوموونه

۱- ملک ګلدین خان. ۲- ملک عبدالله جانخان غونډمشر. ۳- زرخان، ۴- ملک ګل خان جرنیل. ۵- ملک اوالدین خان غونډ مشر، ٦- ملک مدد خان، ۷ ملک میرمحمد خان. ۸- ملک ګلوم خان. ۹- ملک شېرجانخان. ۱۰ جلاد خان غونډ مشر، ۱۱- زنګي خان. ۱۲- قلمدین خان. ۱۳- مشرف خان غونډ مشر احمدزی وزیر، ۱۴- دلباز خان فرقه مشر احمدزی وزیر، ۱۵- شادینخان غونډمشر احمدزی وزیر. ۱٦- اصل خان غونډ مشر احمدزی وزیر، ۱۷- ملک ګل خان احمدزی وزیر، ۱۸- کریم خان کنډکمشر احمدزی وزیر. ۱۹- داج مل خان کنډکمشر احمدزی وزیر، ۲۰- سیدخان کنډکمشر احمدزی وزیر، ۲۱- ملک فقیرخان احمدزی وزیر، ۲۲- رخته خان احمدزی وزیر، ۲۳- روزک خان غونډمشر احمدزی وزیر. ۲۴-شېر علیخان احمدزی وزیر، ۲۵- شیرین خان احمدزی وزیر. ۲٦- ملک ګل وزیر احمدزی وزیر، ۲۷- ملا همزالله اخند احمدزی وزیر، ۲۸- شاه جم خان احمدزی وزیر، ۲۹- کلندر خان احمدزی وزیر، ۳۰- ملک لویي خان احمدزی وزیر. ۳۱- کنجر خان احمدزی وزیر، ۳۲- حسین خان احمدزی وزیر، ۳۳- زرخان (چې وروسته نایب سالارشو) اتمان زی وزیر، ۳۴- نورمحمد خان غند مشر اتمان زی وزیر، ۳۵- دندخان اتمان زی وزیر، ۳٦- غلام محی الدین خان اتمان زی وزیر، ۳۷- ملک ګل دم خان غونډمشر اتمان زی وزیر، ۳۸، شېرخان کنډکمشر اتمان زی وزیر، ۳۹-

زرین خان کندهکمشر اتمان زی وزیر، ۴۰- عبدالله خان غونډ مشراتمان زی وزیر، ۴۱- اصل خان اتمان زی وزیر، ۴۲- سر ګل خان غونډ مشر اتمان زی وزیر، ۴۳- بره خان غونډ مشر اتمان زی وزیر، ۴۴- حسین ګل خان کندهکمشر اتمان زی وزیر، ۴۵- عبدالمیرخان غونډ مشر اتمان زی وزیر، ٤٦- محمدافضل خان، ۴۷- خان جانخان، ۴۸- اختي جان خان وزیر زلیخېل اتمان زی، ۴۹- ملا قسیم اخندخوجل خېل، ۵۰- انګورخان، ۵۱- امرالدین خان، ۵۲- دلي خان مداخېل، ۵۳- ملاافضل الدین مسود، ۵۴- قطب خان مسود (د پاچا خان زوی)، ۵۵- قاضي صاحب امیر شاه قریش، ٥٦- مولوي عتیداګل خان ۵۷- موسی خان.

## د جامع جومات له غونډې وروسته زه په بومی کښې مخفي شوم

د واړه د مرکز د خوجلخېلو د جامع مسجد د لویې جرګې نه واپس کله چې بومی ته راغلم؛ اوس دلته زه د فرنګیانو ځخه په پټه اوسېدم ولس ته مې هم خبر ورکړ؛ چې د افغانستان په لور د لښکر تر روانېدو پورې به ملاقات نه کوو او ددې کار له پاره مې سړي ګومارلي وو زه په دې پوهېدلی وم چې د فرنګیانو له لوري زما په نیولو او یا وژلو سره به هر څه وران او ویجاړ شي او د اعلیحضرت امان الله خان د امداد له پاره د لښکر د راغونډولو هغه نقشه چې ما په فکر کښې درلوده نو ضرور چې پر بل مخ به اړول شوې وای نو ځکه ما خپل

ځان په بومـی کـښې د خانجـان خـان پـه مېلمسـتون کـښې مخفـي کـړ، د وانه د پولټيکـل (بريمـنر) او تحصيلـدار (محمـد نـواز خـان مروت) او هم د تـوچـې د تحصيلـدار(غـلام حسـن خـان) د غـافلولو لـه پـاره مـوږ دا اوازه ګډه کـړه: "يـار محمـد خـان مريـانۍ چـې وزيرسـتان تـه د لښکـر د جمـع کولـو لـه پـاره راغلـی و. هغـه لـره د وزيـرو او مسـودو مشـرانو ځواب ورکـړ او واپـس بـې هيلـې افغانسـتان تـه سـتون شـو او اوس پـه وازيخـوا او ګوملـه کـښې د مريانېو او سليمانخېلو نـه پـه لښکـر جوړولـو بـاندې بوخـت دی".

د وزيـرو او مسـودو جنګيـالي ولـس تـه پتـه وه: چـې زمـوږ د لـوري نـه د لوېدلـې اوازې خـپ تـه څه پراتـه دي او سـبا بـه څه کـېږي، د قـوم هـر ننګيـالي مشـر او خـان خپـل کلېوال پـه اصلـي واقعيـت بـاندې پوهـولي وو، د وانه تحصيلـدار (محمـد نـواز خـان مـروت) محمـد افضـل خـان ځانتـه وغوښتـه او زمـا پـه برخـه کـښې يـې ترېنـه معلومـات طلـب کـړل، محمـد افضـل خـان زليخـېل تحصيلـدار تـه پـه ډانـګ پيلـې ځرګنـده کـړه: "زه پښتـون يم او تـه هـم پښتـون يې! تاتـه معلومـه ده چـې پښتانـه د مېلمـه څومـره احترام لـري، مريـانۍ يـارمحمد خـان پـرون زمـا مېلمـه و او زمـا پـه مېلمسـتون کـښې اوسېده، زه پوهـېدم چـې هغـه د تـېرو جنګونـو په اثر فرنګيانو په خپل قـانون سره مجرمْ کښلـی و، ولـې مـا او زمـا قوم تـه مجـرم نـه دی، اوس هغـه پـه خپلـه خـوښه او اختيـار سـره زمـا د مېلمسـتون نـه تللـی دی او ددې پتـه راسـره نـه شـته چـې هغـه پـه وزيرسـتان کـښې دی، او کـه پـه خـپ افغانسـتان تـه سـتون شـوی دی".

زه چـې د فرنګيـانو د تـرس او وېرې خخـه د وانه د لويـې غونـډې او جـرګې نـه وروسـته د خـان جانخـان ککـه خـېل پـه

مېلمستون کښې مخفي اوسېدم. د حمل د مياشتې په دېرشمه نېټه باندې د خپلو څو تنو سره د څېرې او جامو په تغير د مازديګر په وخت د وانه د مرکز په لورو خوځېدم، ځکه مور مشرانو دا پرېکړه او فيصله کړې وه چې د ۱۳۰۸ لمريز هجري کال د ثور د مياشتې په اوله نېټه به لښکر د وانه په مرکز کښې راټولېږي او د همدې ځای څخه به د غزني په لور د اعليحضرت غازي امان الله خان په مرسته حرکت کوو، کله چې د وانه مرکز ته ورسېدم د راسره ملګرو په سلا او مشوره مې خپل د استوګنې ځای د خوجلخېلو جامع جومات وټاکه او نورو مل ملګرو ته مې واک او اختيار وسپاره، چېرې چې يې خوښه وي هلته دې استوګنه غوره کړي.

# د افغانستان په لور د وزيري او مسودي جنګياليو حرکت

د ۱۳۰۸ هـ ل کال د ثور د مياشتې د لومړنۍ نېټې د سهار اته بجې وې چې د خوجلخېلو د جامع مسجد په طرف د وانه د مرکز د هر لوري څخه د وزيري او مسودي جنګياليو جوپې جوپې د خپلو مېړنيو مشرانو سره راروانې وې دا فکر په همهغه ګنټه راپيدا شو چې د ولس دا په انګريزي ټوپکو سمبال او مجهز ننګيالي ځوانان چې د جامع مسجد په لور راروان دي، دا د وزيرو او مسودو جنګيالي نه دي، بلکې دا د ملايکو لښکر دی چې د افغانستان د مومن ولس د ناارامه حالت د اراملو له پاره راغونډ شوی دی. زه د مولوي صاحب عتيدا ګل خان په حجره کښې د لوی مجاهد ملاهمزالله اخند، انګور خان

احمدزی، ملا قسیم اخند، مشرف خان، شهزاده صاحب، محمد سلیم د ملاهمزالله اخند لمسی او زرخان اتمانزي سره په جرګه بوخت وم، دوی د سهار لمونځ جامع مسجد ته رارسولی و. او هدف یې دا و چې د لښکر د راغونډېدو او روانېدو مخکې د لښکر د نظم لارې چارې بیا وپلټي. د وزیري او مسودي جنګیالیو شمېر شېبه په شېبه زیاتېده، د هر قوم او قبیلې مېرني مشران جرګې ته راورسېدل. او دا ټول هغه ننګیالي او په پت مین وو، چې کلونه کلونه یې د ملاصاحب غلام محی الدین مسود (ملاپونده اخند)، ملاصاحب همزالله اخند او رئیس المجاهدین (ملا عبدالرزاق خان اندړ) تر قوماندې او قیادت لاندې د فرنګیانو په وړاندې جهاد او مجاهده کړې وه او ټول د جنګ په اصولو او قاعدو ښه پوهېدل، هرکس د ټوپک او باروتو له اور سره اشنا و، د لوړې او ژورې پلي تګ، د ژمي او اوړي، یخنۍ او تودوخې، تندې او لوږې یې په عزم او اراده کښې تغیر او بدلون نه شو راوستلی

مور ټول مشران په جامع جومات کښې د خوجلخېلو په جرګه بوخت وو او د جامع جومات نه بهر جنګیالیو وزیري او مسودي ځوانانو د افغانستان په لور د روانېدو او حرکت انتظار ایسته، د سهار د لمر وړانګو د ټوپکو پر میلو باندې انعکاس کاوه، هر سړي خپل ټوپک ښه پاک کړی او کونداغ یې ښه ورته غوړ کړی و او ځینو کسانو د خیال نه د ټوپکو پر میلو باندې شنه، تور او سره ټیکري ځړولي وو، په یوه ډېر ښه نظم او انضباط کښې یې د جامع مسجد څخه د خپلو جرنیلانو او کرنیلانو د رابهر کېدو انتظار ایسته، په همهغه ګنته پر ما باندې

یو خاص اثر لوېدلی و او دا اندېښنه مې په زړه کښې راګرځېدله. چې په یوه داسې حساسه ګڼته او شیبه کښې فرنګیان مداخله ونه کړي. او دا مې عجله او تلوار و چې ژر تر ژره مخکې د فرنګیانو تر لاسوهنې او مداخلې نه د لښکر سره د افغانستان په طرف حرکت وکړم. ځکه چې د لښکر په حرکت کښې بیانو فرنګیانو ته مشکله وه چې زموږ د تګ مانع وګرځي.

زما هم دا اندېښنه وه چې په نهه بجو باندې د وانه د پولټیکل او تحصیلدار دوه استازي جامع مسجد ته چې موږ مشران پکښې جرګه وو راغلل، هغه دوه کسان زموږ خپل پښتانه وو، مشرانو هغوی پېژندل او دوی مشران پېژندل، ما هم د هغو دوو کسانو سره پېژندګلوي درلوده او د فرنګیانو په ادارو کښې یې دنده تر سره کوله او د پولټیکل له لوري یې په جامع مسجد کښې د وزیرو او مسودو د تورزنو قومونو او قبیلو راغونډ شوو مشرانو ته شفاهي دا رنګ پیغام راوړی و: "د هغې ګڼتې څخه چې مریانې یارمحمد خان په وزیرستان کښې قدم ایښودلی دی او ستاسو په مرسته او همکارۍ یې د امان الله خان په پلوۍ د لښکر په راټولولو فعالیت اغاز کړی دی. زموږ څخه هېڅ پټ نه دي، موږ د خپلو سړو په ذریعه د مریانې یارمحمد خان هر قدم تعقیب کړی او څارلی دی. اوس زموږ ستاسو خانانو او ملکانو نه دا دوستانه هیله ده چې د یارمحمد د ملګرۍ او د امان الله په پلوي افغانستان ته د لښکر کشۍ نه لاس واخلئ، هغه وخت چې تاسو د کابل د ملا(حاجي ملا عبدالرزاق خان) ملګري او د امان الله خان پلوي وکړه، د هغه ترخه تجربه ستاسو په مخکې پرته ده. دا ځل بیا هغه ترخه

تجربه مه تکراروئ، امان الله خان د کابل ځخه کندهار ته د خپلو ټولو وابسته ګانو سره فرار کړی دی، درست قومونه او پوځ د هغه په وړاندې دربدلي دي. تاجیک او د پښتنو اکثریت غلجي قبایل د حبیب الله په ملګری د جنګ په ډګر کښې ولاړ دي، د کندهار په دراني قبیلو کښې د امان الله خان د پلوی او ملګري په اړه زیات اختلافات دي. او یو څه په شمېر محدود دراني مشران په ظاهره د امان الله ملګري ظاهر وي، زموږ د معلوماتو له رویه امان الله خان د هر طرف ځخه مایوس او نااميده دی، نن او سبا هغه د خپلې کورنۍ د نژدې غړو په ګډون د کندهار ځخه په فرار مجبور دی.

تاسو د وزیرو او مسودو مشران چې مریانۍ یارمحمد د امان الله خان پلوی ته تحریک کړي یاست نو په داسې حالت کښې چې قادیانی امان الله خان په ټول افغانستان کښې دوست او طرفدار نه لري، ستاسو د سړو تګ امان الله ته څه ګټه نه شي رسولی، بې له دې چې زموږ او ستاسو خانانو او ملکانو په مینځ کښې درز راپیدا کړي".

کوم وخت چې هغه دوو استازو د وانه د پولټیکل (بریمنر) پیغام راجرګه شو مشرانو ته واوراوه، نو مې ولیده چې د هر مېړني او ننګیالي مشر په څېره کښې له ډېر قهر ځخه سوروالی راپیدا شو، په همهغه حساسه شېبه کښې په تن ضعیف ولې په افغاني ننګ او غیرت قوي د وزیرو د قوم مجاهد ملا (همزالله اخند) د ټولو مشرانو او د قوم د جنګیالیو په نمایندهګۍ او وکالت په ډېره عالمانهلهجه سره د هغه دوو استازو په لاس پولټیکل ته پر دې ټکو سره شفاهي ځواب ولېږه: "جناب پولټیکل صاحب! تاسو ته د ټول پښتون قام او بالخصوص د

وزیرو او مسودو د تېرونو په اړه پوره معلومات شته چې په خپل لاس او پخپله خوښه مشران او ملکان جوړوي او دا مشران او ملکان ضرور باید د قوم د اکثریت غړو ارادې ته غاړه کښېږد، دا چې نن قوم اراده او فیصله کړې ده چې افغانستان ته د اعلیحضرت غازي امان الله خان په مرسته لښکر وکړي. نه موږ مشران او نه تاسو کولی شئ چې د قوم په اراده کښې بدلون راولئ او په دې برخه کښې زموږ او ستاسو هره هڅه به د وزیرستان غرونه او رغونه په وینو ولمبوي".

د واڼه پولټیکل ته د ملاصاحب همزالله اخند د عالمانه ځواب په لېږلو سره، د فرنګیانو له لوري بیا کوم عکس العمل ښکاره نه شو او موږ مشرانو ته داسې څرګنده او په ګوته شوه، چې د ملا صاحب دې پیغام (په دې برخه کښې زموږ او ستاسو هره هڅه به د وزیرستان غرونه او رغونه په وینو ولمبوي) پولټیکل (بریمنر) او تحصیلدار محمد نواز خان مروت او د هغوی پوځي سلا کاران سخت ډارولي وو او دا وېره یې زړونو ته تېره شوې وه، چې د لښکرو د مخنیوي په صورت کښې بیا په وزیرستان کښې جنګونه رامخکښې نه شي.

کله چې څو ګنتې وروسته زموږ مشرانو دا ډاډ حاصل شو چې فرنګیان زموږ د عزم او ارادې په وړاندې عاجز دي نو همهغه وو چې د همهغې ورځې د سهار په یوولسو بجو باندې د وزیرو او مسودو د قومونو جنګیالیو ته چې تقریبا شپږ زره افراد وو، د افغانستان په لور مو د حرکت قومانده ورکړه، ډولو نه ووهل شوه او د زیاتې خوشالۍ نه ځوانانو چې ټوپکونه یې په اوږ، و او کتارونه یې تر ملاوو په اتڼ پیل وکړ.

کله چې د ځوانانو له خوا اتڼ پای ته ورسېد، ملا فضل الدین چې اوچت اواز یې درلود د همزالله اخند په نماینده ګی د وزیرو او مسودو ننګیالیو ته وینا وکړه "مېړنو مشرانو او په ننګ ولاړو ځوانانو! تاسو عزیزانو ته ښکاره ده، کله چې په ۱۲۹۸ کال کښې اعلیحضرت امان الله خان د افغانستان د استقلال اعلان وکړ نو یې مونږ د وزیرو او مسودو د قومونو مشرانو ته خپل فرمانونه راولېږل، تاسو ټولو بې له کوم اختلاف او بهانې څخه د همهغه څو پانو فرمانونو اطاعت او فرمانبرداري وکړه؛ هغه وخت مو د اعلیحضرت غازي امان الله په دعوت او بلنه سره جهاد ته لبیک ووایه، فرنګیان مو د افغاني ننګ او مېړانې په اظهارولو سره د ړوب کندر، ګوملي او درست وزیرستان څخه د سند او پنجاب په لور په شا کړل. ستاسو د همهغه ورځو مېړانه او غیرت چې د جنګ او جګړې په ډګر کښې مو څرګند کړ؛ د دښمنانو په غوږو کښې تر همدې ګړیو او شپېو پورې انګازه کوي، هغوی نه غواړي چې دا تاسو جنګیالي نوم او نښان وګټي.

عزیزانو! دا دی زیات وکم لس کاله وروسته نن بیا د همهغه غیرت او مېړانې د ازمایلو ورځ د وزیر او مسودو د قوم پر ځوانانو.باندې راغلې ده، هغه ننګیالي مشران چې زما د مرحوم پلار، اکاه (ملا همزالله اخند) او رئیس المجاهدین (حاجي ملا عبدالرزاق خان اندړ) تر څنګ جنګېدل، د افغانستان په تلو کښې ستاسو په اوړه ولاړ دي او د اعلیحضرت غازي امان الله خان د هغه فرمانونو او پیغام اطاعت یې کړی دی چې مریانې یار محمد خان راوړي دي.

نن هغه د خپلواکۍ قهرمان اعلیحضرت غازي امان الله خان اواره او پرېشانه دی، تاج او تخت یې د ډېر مجبوریت په اساس یوه رهزن او کوتاه طریق ته پرېښودلی دی. او تور پرونی یې په کندهار کښې نن او سبا د سقاو د زوی د پلویانو ځخه په امن کښې نه دی، تاسو عزیزان ځو شپې وروسته د خپل یو شمېر مشرانو او د غونډ مشر صاحب مریانې یار محمد خان سره د غزنې په لور د اعلیحضرت غازي امان الله خان مرستې او امداد ته روانېږئ. دا د هغه (امان الله خان) غوښتنه ده؛ زموږ افغاني او پښتني غیرت او مېړانه هم دا تقاضا کوي چې د یوه محتاج راغزېدلی لاس خالي ځواب نه کړو.

عزیزانو! ستاسو په وړاندې لیاره اوږده ده، په مخکښې مو د اعلیحضرت غازي امان الله خان طرفدار او مخالف قومونه، قبیلې او کلي پراته دي، هغوی هم ستاسو په څېر جنګیالي او مېړني افغانان او پښتانه دي. د اعلیحضرت غازي امان الله خان پلویانو ته به په دې عظیم خدمت کښې ونډه ورکوئ؛ هغوی ستاسو د هرکلي په امید ګنتې شماري. او هغه به کوئ چې مخالفین د قومي او ولسي جرګې له لارې په خپله خوا کښې ودروئ، چې د هغوی جنګ او جګړه تاسو ټال نه کړي، دا باور لرم چې په لیاره کښې به هیڅ یو قوم او قبیله ستاسو سره جنګ ونه کړي، ان شاءالله ورحمن چې بې له ځنډ او ځنډ ځخه به خپل مقصود منزل ته ورسېږئ، څښتن تعالی دې ستاسو د بري مل واوسي".

د شهزاده صاحب د وینا ځخه وروسته هغه شېږ زره وزیري او مسودي جنګیالیو ته انګورخان، دلباز خان، زنګي خان او هفتي خان ملک مختصرې او لنډې ویناوې وکړې او هر مشر

په خپله وینا کښې په تکرار سره دا تکي څرګندول: "اوس مونږ ټول په ګډه سره د غزني په لور خوځېږو؛ کوم کس چې ناروغه او یا بل عذر لري، هغه لره اجازه ده چې هم دلته پاتې شي، د هر قوم او هرې قبیلې مشر د هغه قوم او قبیلې قوماندان دی او مونږ غایب او حاضر مشرانو مریانې یارمحمد خان د وزیرو او مسودو د ټولو لښکرو جرنیل ټاکلی دی؛ د کابل تر نیولو پورې دده تر قیادت لاندې روان یو".

تقریبا څه له پاسه یوولس بجې وې چې شپږ زره په ټوپکو او قطارونو مجهز وزیري او مسودي جنګیالي د خپلو مېړنو مشرانو سره په یوه اتفاق او اتحاد سره زما تر مشرۍ لاندې د الله اکبر په نارو او د ملي چیغو او سندرو په ویلو سره د وانه د مرکز نه د غزني په لور وخوځېدو.

تر اوسه مې په یاد او خاطر کښې دي: هغه ګنته او د وزیرستان د جنګیالیو هغه منظم ملي لښکر او د هغوی حرکت مې د ذهن او فکر څخه نه دي وتلي؛ چې په همهغه ګنټو او شپېو کښې د وزیرو او مسود د قومونو قهرمانان په څومره زیاته خوشحالۍ، سپېڅلو او نېکو احساساتو سره دغزني په لور د اعلیحضرت غازي امان الله خان لاس نیونې او امداد ته روان وو، په لیاره کښې ټولو ملي سندرې ویلې او په دې ملي سندرو کښې د اعلیحضرت غازي امان الله خان، لوی مجاهد ملا غلام محی الدین (ملاپونده)؛ ملا همزالله اخند او حاجي صاحب ملا عبدالرزاق خان (رئیس المجاهدین) نومونه په درنښت سره یادېدل.

پـــښي دي ټينـــګي کـــړه غـــازي
ســـتا پــــه مرســـته ننګيــــالي

*   *   *

مـــــــوږ لښکــــــر د پونــــــده
د انـــــــــدړ او د همـــــــــزه
پـــه حســـاب شـــپږ زره جنـــګي
پـــښې دې ټينـــګي کـــړه غـــازي

*   *   *

راســــــــره دي مشـــــــــران
دي اکــــــثر يـــــــې جرنيــــــلان
قومـــــــانده د مريـــــــــانې
پـــښې دې ټينـــګي کـــړه غـــازي

د وزيرستان د واړه د مرکز څخه غزني تــه زمـــوږ د لښکـــرو د ژر او اسانه رسيدو لـه پاره د اورګون ليـــاره وه او دهمـــدې لارې څخـــه بـــايد تـــېر شـــوي واى، دې لارې لـــوړې او ژورې هـــم درلـودې زمـوږ لښکـر اکثر پلي وو او هغـه وخـت د نـن ورځې پـه څېر دومره سړکونه نـه وو غـزېدلي او نـه هـر چـېرې مـوټرې وې چـې زمـوږ پـه مخکښې يې هغـه اوږد پياده مـنزل رالنـډ کـړی واى، ولـې پـه هـر صـورت مـوږ پرېکـړه کـړې وه او د وزيـري او مسودي جنګيـاليو دا پخـه اراده وه چــې د اعليحضـرت غـازي امان الله خان مرستې او امـداد تـه بـه ځانونـه حـاضر وو.
د اورګون سـيمه لـــــه قـــديم څخـــه د وزيـــرو، ځدرانو، ديګانـو(تاجکـــانو)، سـلېمانخېلو او خـروټو پــه قومونـــو او قبيلـــو

پورې اړه درلوده او دا قومونه او قبیلې د اورګون په لیرو او نږدې سیمو کښې مېشته او استوګن وو، په ګردیز، زرمت او کتواز کښې اکثریت سلېمانخېل قبایل اباد وو، په هم هغه موسم کښې زیات کوچیان د هر قوم څخه دې سیمو ته راغلي وو او په دې علاقو کښې د استوګن او مېشته غلجي قومونو او قبیلو (اندړ او سلېمان خېل) خانان، ملکان او ملایان چې د اعلیحضرت غازي امان الله خان په مخالفت یې د سقاو د زوی (حبیب الله) پلوي او ملګري کوله یو شمېر یې دغه مشهور او پېژندل شوي کسان وو:

۱- جناب ملا صاحب قطب الدین علیخېل د زرمت، ۲- ملک محمد رفیق خان علیخېل د زرمت، ۳- ملک عبدالکریم خان علیخېل، ۴- ملک جان محمد خان علیخېل، ۵- ملک علي محمد خان علیخېل، ٦- ملک فیض محمد خان علیخېل، ۷- ملک عبدالکریم خان صالح خېل، ۸- ملک محمد یوسف خان علیخېل، ۹- ملک راز محمد خان علیخېل، ۱۰-ملک خیر محمد خان علیخېل، ۱۱- ملک عبدالحمید خان سلېمانخېل، ۱۲- ملک احمد شاه خان سلېمانخېل، ۱۳- ملک عبدالحکیم خان سلېمانخېل، ۱۴- ملک سید محمد خان سلېمانخېل، ۱۵- ملک حبیب الله خان سلېمانخېل، ۱٦- ملک شېر محمد خان اندړ، ۱۷- ملک ازاد خان اندړ، ۱۸- ملک محمد اسلم خان اندړ، ۱۹- ملک محمد اسحق خان اندړ، ۲۰- ملک اختر محمد خان اندړ، ۲۱- ملک نور محمد خان اندړ، ۲۲- ملک عبدالمجید خان اندړ، ۲۳- ملک مهترلام خان اندړ، ۲۴- ملک دولت خان اندړ، ۲۵- ملک عبدالله خان اندړ، ۲٦- ملک نظر خان اندړ، ۲۷- ملک شېر الله خان اندړ، ۲۸- ثاني ملک احمد

شاه خان سلېمانخېل، ۲۹- ملک اختر محمد خان سلېمانخېل، ۳۰- ملک جان محمد خان علیخېل، ۳۱- ملک جلاد خان علیخېل، ۳۲- ملک محمد هاشم خان علیخېل، ۳۳- ملک ګل خان علیخېل، ۳۴- ملک نوروز خان علیخېل او ۳۵- ملک ایوب خان علیخېل.

د ټولو قومونو د خانانو، ملکانو او مشرانوسره زما د نږدې پېژندګلوي او معرفت و، هغوی زه ښه پېژندلم او ما هم هغوی په ټولو صفاتو سره پېژندل. که څه هم په اورګون، زرمت، ګومل، کټواز او غزني کښې د سلېمانخېلو او اندړو د مېشته او کوچي قومونو او قبیلو زیات مشران د حبیب الله په ملګرۍ وو، ولې زه په دې ډاډه او مطمئن وم چې د نومړو قومونو او قبیلو مشران به زما تر مشرۍ لاندې د وزیرو او مسودو د لښکرو په وړاندې د غزني د تګ خنډونه ګرځي.

په هغه ورځ چې ما د وزیرو او مسودو لښکرو ته د وانه د مرکز څخه د غزني په لور حرکت ورکاوه؛ په همهغه ګنټو او شېبو کښې د اورګون پوځي کلا د حبیب الله د پلویانو په لاس کښې وه او زما د لښکرو په مخکې هم دا یوازینی خنډ و، د وانه د خوجلخېلو د جامع مسجد څخه بیا د اورګون تر پولو پورې زمونږ په مخکښې نه فرنګیان او نه کوم افغاني قوم او د هغه وګړي زمونږ د لیارې خنډ وګرځېدل؛ نه په دې اوږده او پلې لاره کښې چا دا تپوس وکړ چې تاسې دا شپږ زره جنګیالي له دې ټوپکو، کارتوسو او ډولونو سره کومې خواته او د څه له پاره روان یاست؛ داسې معلومېده چې په دې سیمو او کلو کښې درست ولس په دې باندې اګاه او خبر و، چې زما تر قیادت او قوماندې لاندې د وزیرو او مسودو د

قومونو ننګیالي او جنګیالي د اعلیحضرت غازي امان الله خان د مرستې او امداد لــه پاره غزنــي تــه روان دي.

د لــوی ښتتن احسان او کـرم و، چـې د وانه د مرکز د خوجلخېلو د جامع مسجد نه بیا تر اورګون پوري زما تر مشرۍ او قوماندې لاندې د وزیرو او مسودو جنګیالیو او توریالیو په هغه اوږده لاره کښې نه د کوم کلي اوسېدونکو ته او نه د کوم قوم او قبیلې غړو ته ځاني او مالي تکلیف ورکړ، ځکه زما د لښکرو څخه د خوراک پوره توښه وه او بل د لښکر په لیکو کښې زیات شمېر هغه تورزن مشران او مجاهدین وو چې د فرنګیانو سره په جنګونو کښې یې ډېر ساړه او تاوده لیدلي او ګاللي وو، هغوی په ربړو او مشکلاتو کښې د اور د بټۍ د خښتو په څېر پاخه شوي وو، د جنګ او جګړې په ډګر کښې یې زیاتې تجربې تر لاسه کړې وې. لوړې او تندې یې د وزیرستان په هسکو او دنګو غرونو کښې د لوی مجاهد ملا صاحب پونده اخند. ملا صاحب همزالله اخند او جناب فضیلت فنا حاجي صاحب ملا عبدالرزاق خان اندړ سره تېرې کړې وې. په لوږو او ژورو کښې هم کنته او پورته شوي وو، د عهد اووفا د جنګ او جګړې په لاره کښې د بشپړې او پخې ارادې خاوندان وو، زمونږ سره هم پوره د سپرلۍ وسایل نه وو؛ هر سړي خپل د سفر خوري په شا درلوده او د هرکس په خوري کښې یوه او دوې پتیرې: نیني(بریان شوي غنم) او وچ اوړه د کاک پخولو له پاره موجود وو. د شپږ زره قومي لښکر له پاره تر پنځو سوو نه کم اسونه او کچرې په حساب کښې نه شمېرل کېدلې او هغه هم د اوږده سفر د ناروغانو او د جګړې د ټپیانو له پاره وقف شوي وو، پوځ او معزز مشران تولـه پلـي وو.

د ۱۳۰۸ ل. هـ. كال د ثور د مياشتې د دريمې د ماسپښين قضا مهال و، چې مونږ د اوركون علاقې ته داخل شوو. د مونږ قلا پورې هم دومره زيات او اوږد واټن نه و. د همهغه ورځې د مازديګر لمونځ مو د كلو او باندو ځخه بهر په يوه هوار سپېره ډګر باندې د ملا قسيم اخند خوجلخېل په امامت ادا كړ او دا دوه ركعته مسافرانه لمونځ و، ځرنګه چې تياره په راتلو وه او زموږ د هر فعاليت په وړاندې خنډ وه؛ نو مو د شپې تېرولو له پاره هلته واړول چې نه راسره برستنې وې او نه بالښتونه.

د ماښام د لمانځه د ادا كولو نه وروسته موږ د وزيرو او مسودو د قوم مشرانو چې د شپږ زره جنګياليو قيادت او رهبري مو پر غاړه درلوده، د اوركون د نظامي كلاپه اړه مو چې د حبيب الله د طرفدارانو تر ادارې لاندې راغلې وه، غونډه او جرګه وكړه او په دې جرګه كښې د ماسخوتن د لمانځه نه مخكې ټولو غيرتمنو مشرانو په اتفاق او اتحاد سره په دې خبر پرېكړه او فيصله وكړه:

۱. د لښكر فرد فرد ته دې ابلاغ شي. چې نن شپه دې په همدې ځاى كښې استراحت او دمه وكړي او د امن ساتلو له پاره دې په نوبت سره وسله والې پيرې او ګزمې ودرولې شي او د لښكر هېڅ يوه فرد ته دا اجازه نشته چې د كيمپ ځخه د وه سوه ګامه بهر ووځي.

۲. د اوركون په پوځي كلا كښې د حبيب الله كرنيلانو او عسكرو ته دې د سهار د لمانځه نه وروسته د امير خان سنګي خېل، ميران كابل خېل او ملا قسيم اخند په لاس د لسو په تن قوي ځوانانو په ملتيا ليك ولېږل شي چې بې له

کوم جنګ او جګړې څخه د اورګون پوځي کلا چې د وزیرو، دیګانو، ځدرانو، سلیمانخیلو او خروټو په ګاونډ کښې ده او اداره یې هم په دې قومونو پورې اړه لري. د کورنۍ جګړې تر تمامېدو زموږ لښکر ته د امانت په څېر خوشې کړي.

۳. که چېرې د حبیب الله طرفدارو ملګرو بې له وینو تویولو او ورور وژلو څخه کلا راپرېښودله نو د سپکې او درندې وسلې سره دې لښکر بې له ځنډ څخه د غزنې په لور حرکت وکړي او هم که د حبیب الله په طرف کښې ولاړو صاحب منصبانو زموږ په لښکر کښې د خدمت او همکارۍ ژمنه کوله هغوی لره دې په لښکر کښې د خدمت کولو پوره ونډه ورکړه شي او که نه بې له تکلیف او زحمت ورکولو څخه دې په ډېر عزت او احترام سره رخصت کړه شي، چې په دواړو حالتو کښې په نورو سیمو کښې د حبیب الله د پوځي او قومي طرفدارانو مخالفت زموږ د لښکر په وړاندې کموي.

۴. بالفرض که د حبیب الله طرفدارو او په خوا کښې ولاړو کرنیلانو او عسکرو د اورګون پوځي مرکز بې له جګړې او وینو تویولو څخه موږ لره راخوشې نه کړ. نو په دې صورت کښې د لښکرو څلورمه برخه دې د انګور خان احمدزي تر قیادت او مشرۍ لاندې په کلا جنګ شروع کړي او د حبیب الله پلویان دې په جنګ کښې مصروف وساتي. د لښکر نوره پاتې برخه دې د یار محمد خان مریاني سره د غزني په طرف د اعلیحضرت غازي امان الله خان امداد ته وخوځېږي. دلبازخان، جلاد خان، غلام قدیم او اختي

جان دې وزيرستان ته د نورو لښكرو د راغونډولو له پاره ولاړ شي، په كلا دې تر هغه وخته پورې جنګ جاري وي څو تسليمېږي او يا د وزيرستان څخه مرستندويې لښكرې رارسېږي.

د مشرانو د همهغه ماښام د جرګې د پرېكړې نه وروسته ما(يارمحمد مرياني) د اورګون پر نظامي غونډ باندې مسلط او قابض د حبيب الله طرفدار او ملګرو صاحب منصبانو ته ليک وليكئ. او په ليک كې مې ترينه غوښتنه وكړه چې بې له ورور وژنې او وينو تويولو څخه د اورګون نظامي كلا موږ لره راتسليم كړي او كه نه نو د جنګ او وينو تويولو ټول مسووليت د دوی په غاړه دی. هغه ليک د وزيرو او مسودو د ننګيالي قومونو مېړنو او غېرتي مشرانو امضاء او په مهرونو سره ښكلى كړ، په هغه سپېره او هوار ډاګباندې مو شپه د سبا په انتظار سبا كړه، څنګه چې د ثور مياشت د شپې له لوري عموما سړه وي؛ نو د هغې شپې يخنيو څه وځورولو، د سهار د لمانځه د ادا كولو څخه وروسته هغه په ګوته كړل شوي سړي د ليک د رسولو له پاره په تيارې بوجت وو چې ناڅاپي څلور تنه كليوال اورګونيان زموږ لښكرو ته راغلل او خبر يې راكړ چې اعليحضرت غازي امان الله خان د خپل لس زره كسيزه كندهاري پوځ سره په غزني كښې د كوچې سلېمانخېلو او اندړو له لاسه سخته ماتې خوړلې ده، د كندهاري دراني لښكرو زيات شمېر افراد مړه او ټپيان شوي دي او اعليحضرت غازي امان الله خان د وزير داخله او ژوبل لښكر سره واپس د كندهار په طرف حركت كړی دی.

د اعلیحضرت غازي امان الله خـان د لښکر د ماتې او په خټ کندهار ته د ستنېدو خبر راوړونکي هغه څلور تنه اورګونیان وو چې په هغوی کښې یو کس(ملک بهرام) موږ څه نا څه پېژانده او هغه نور درې سړي نوم ورکي کسان وو. ولې دا پته نه راته لګېده چې ملک بهرام د چا پلوي او ملګری دی نو ځکه زموږ مشرانو په هغه خبر باندې یقین او باور رانغی او داسې مو فکر او خیال وکړ چې نوموړې اوازه او ډنډوره د اورګون په نظامي کلا کښې د حبیب الله طرفدارانو په سیمه کښې د اعلیحضرت غازي امان الله خان د هواخواهانو او زموږ د لښکریانو د جنګي روحیې د کمزوري کولو او وژلو له پاره اچولې ده. ځکه چې د دښمنو ډلو او ځواکونو لخوا په جنګ کښې دا ډول اوازې زیاتې لوېږي او هر پلو دا هڅه او هاند کوي چې د تبلیغاتو په ذریعه خپل مخالف طرف او حریف غافل کړي او هم دا تکی دی چې ویلې یې دي: "جنګ خدعه ده". هغه رارسېدلی خبر د ملک بهرام سلېمانخېل او د ورسره مل درو کسانو له لوري؛ موږ هغه د حبیب الله د ملګرو یو جنګي فرېب او خدعه وګڼل او نه مو په هغه خبر باندې په همهغه شېبه یقین او باور وکړ او د ټولو مشرانو په اتفاق او اتحاد سره په دې فیصله وکړه: د اورګون په پوځي کلا کښې د حبیب الله پلویانو ته د لیک د لېږلو مخکښې دې یو شمېر سړي د اورګون ښار ته ولاړ شي او هلته دې د خپور شوي خبر د واقعیت په اړه معلومات راغونډ کړي. او هم دې ملک بهرام تر هغه وخته پورې دلته وساتل شي؛ تر څو زموږ سړي واپس د ښار څخه راځي.

د اورګون ښار ته د اعليحضرت غازي امان الله خان د لښکر د ماتې او واپس کندهار ته د تلو د خبر د راغونډولو له پاره مور د مشرانو جرګې پينځه تنه غښتلي او مېړني ځوانان د نصرالله خان احمدزي وزير تر مشرۍ لاندې غوره کړل او د لمر څرک سره د اورګون په لور روان شول او د ماسپښين د لمانځه په وخت ببرته د اورګون د ښار څخه لښکر ته په سلامتۍ راورسېدل، مور د لښکر مشرانو سمدستي جرګه جوړه کړه؛ څو د نصرالله خان د خولې نه د هغه راغونډ شوي معلومات واورو. هغه چې يو معزز او ننګيالی شخصيت و او په خبره يې د هرکس باور او يقين و. د راغونډ شوو نورو معلوماتو په څنګ کښې يې څرګندده کړه "د اعليحضرت امان الله خان د لښکر د ماتې خبر د اورګون د ښار د کان په دکان: کور په کور او کوځه په کوځه ګرځېد او د هر سړي څخه دا کيسه او داستان اوريدل کېد."

د اعليحضرت امان الله خان د لښکرو د ماتې د غمګين او ناخوښ خبر په تر لاسه کولو سره: ما او زما لښکر ته دوې لارې په مخکښې وې، په کلا باندې د حبيب الله د طرفدارانو سره جګړه او يا بېله جنګ څخه په څټ د وزيرستان په طرف د شپږ زره جنګياليو حرکت.

په هغه غونډه او جرګه کښې چې د ملک نصرالله خان د راوړل شوي خبر د اورېدلو په خاطر مور د لښکر مشرانو جوړه کړې وه نو د ملک نصرالله خان د راوړل شوي غمګين خبر د اورېدلو نه وروسته ټولو مشرانو د اورګون په نظامي کلا باندې د جنګ جاري کولو او يا بېله جنګ او جګړې څخه واپس وزيرستان ته د تللو په ارتباط پوره خبرې وکړې، د جنګ او نه

جنګ کولو فایدې او ضرورونه مو وپلټل او ښکاره چې اعلیحضرت غازي امان الله خان د خپل زیات شمېر ولسي لښکر سره په غزني کښې د یو محدود شمېر کوچیانو له لاسه ماتې خوړلې وه او د هغه په ذریعه د حبیب الله د پلویانو جنګي روحیه په هر ځای کښې قوي شوې وه او هغه کسان چې تر همهغه ګنټو د یوه طرف هم نه وو پلوی، اوس د سقاو د زوی په پلوي ودرېدل. او د بل لوري سپاه سالار سردار محمد نادرخان او کرنیل سردار شاه ولي خان په پکتیا کښې د حبیب الله په مخالفت د پکتیاني قومونو څخه د لښکر په جوړولو بوخت وو، په مشرقي کښې سردار صاحب محمد هاشم خان او جناب محمد ګل خان مومند ولس د حبیب الله په مخالفت پاراوه، نو په هغه حساسو او اضطراري شېبو کښې مونږ مشرانو په اتفاق سره داسې پرېکړه او فیصله وکړه:

۱. ښکاره چې مونږ د وزیرستان د قومونو او قبیلو مشرانو دا شپږ زره کسیزه جنګیالي د اعلیحضرت غازي امان الله خان په فرمان اوغوښتنه او د مریاڼي یارمحمد خان په اعتبار را غونډ کړي وو، خو د امان الله خان لاس نیونه وربانديې وکړو، اوس چې اعلیحضرت غازي امان الله خان د خپلو لښکرو سره په غزني کښې ماتې خوړلې ده او د کندهار لوري ته واپس روان شوی دی نو په همدې شېبو کښې د اورګون په نظامي کلا باندې د حبیب الله د ملګرو او پلویانو سره جنګ او جګړه کول بې ځایه ورور وژنه ده.

۲. په افغانستان کښې تر څو چې جنګ پای ته رسېږي. مریاڼي یارمحمد خان د وزیرو او مسودو د هر فرد معزز مېلمه دی او د چا سره چې یې خوښه وي د هغه سره دې

استوګن وي، د مېلمنو لګښت يې په قوم او کلي باندې دی.

۳. مخکښې له دې چې په دې ډګر کښې شپه شي. نو ژر تر ژره دې لښکر د وزيرستان په لور حرکت وکړي.

۴. د وزيرو او مسودو د غيرتي او بهادرو قوونو د ننګياليو مشرانو د پرېکړې سره جوخت په ډېره ناهيلې توګه سره هغو شپږ زره جنګياليو زمونږ مشرانو سره د وزيرستان په لور بې له جنګ او جګړې څخه د ۱۳۰۸ هجري لمريز کال د ثور د مياشتې په خلورمه واپس حرکت وکړ، د لښکر په مينځ کښې نه هغه د ملي سندرو اوازونه وو او نه هغه د ډولونو اواز چې د اورګون په طرف راتلو.

# د اورګون پر کلا د جوزا د مياشتې لښکر کشي

کله چې مې د ۱۳۰۸ هجري لمريز کال د ثور د مياشتې د خلورمې په سهار د ملک بهرام سليمانخېل.نه په اورګون کښې د هغه کس د ماتې او په ځټ کېدو خبر واورېده چې ما د هغه د مرستې او د سلطنت د بيا اعاده کولو له پاره شپږ زره په جګړه پوه جنګيالي تر اورګون پورې راوستلي وو او مشرانو يې د فرنګيانو د پولټيکل او تحصيلدار هر ډول جريمه پر خان او قوم باندې خاص د اعليحضرت غازي امان الله خان سره د مرستې او زما د ملګرى په خاطر پر سر اخيستې وه او بيا کله چې نصرالله خان اتمانزي وزير د اورګون په ښار کښې د خپل تحقيق او څېړنې نه وروسته د لښکر د مشرانو په جرګه کښې د

همهغه ورځې په ماسپښين د ملک بهرام خان د خولې خبر تصديق او تائيد کړ نو په همهغه ګنټه او شېبه زما په حالت باندې يو الله (ج) ښه پوهېده چې پر ما باندې په څه اندازه نا اميدۍ او ناهيلۍ اثر او غلبه کړې وه؛ حواس مې له لاسه ورکړي وو او په ځان نه پوهېدم چې حالت مې څومره پرېشانه و. شايد په همهغه شېبه او ګنټه باندې د وزيرو او مسودو د قومونو او قبيلو ننګيالي او قهرمان مشران زما په نااميده او پرېشانه حالت باندې پوهېدلي وو او ممکن هم دا وجه او سبب و چې د مشرانو په هغه لويه جرګه کښې غيرتمن دلباز خان وزيري زما ښي لاس په لاس کښې ونيوه او په اوچت اواز يې زما د تسلا او د جرګې د غړو څخه د تعهد تر لاسه کولو له پاره مخاطب کړم: "يار محمد خانه! تا د افغاني پت او عزت او زموږ د سر لوړۍ له پاره قدم اوچت کړی دی ما او زموږ ټولو وزيرو او مسودو ته دا څرګنده ده چې ستا دا حرکت او فعاليت بې اسرې دی. ته د اعليحضرت غازي امان الله خان د لښکر په ماتې نا اميده او بې هيلې کېږه مه! زه شخصا او د وزيرو او مسودو د قومونو دا حاضر مشران ستا په څنګ کښې په ځان او مال ولاړ يو. په کوم لوري چې ستا اراده او قدم وي په هغه لوري هم زموږ اراده او قدم دی. ان شاءالله چې زموږ د قومونو مشران او ځوانان به د کابل تر نيولو پورې ستا ملګري او همراه واوسو او په وزيرستان کښې د هرکس په مېلمستون کښې چې استوګنه غوره کوې هغه ستا کور دی. ته او ستا ملاقات کوونکي د قوم مېلمانه دي او د هر څه لګښت به موږ مشرانو پورې اړه لري."

د دلباز خان وزيري وينا د اورګون په هغه سپېره ډګو کښې څه ډاډ او شيمه راکړه، ولې پرېشاني مې همهغه پرېشاني وه، ځکه انسان وم او انساني سپېڅلي احساس راسره مل و او دا هغه درد او احساس و چې زه يې د شاه جوی څخه وزيرستان ته په سفر کولو مجبور کړی وم، د محمد خېلو په کلي کښې د غازي الدين تره کي په لاس مې مرګته ځان سپارلی و، په وانه کښې د فرنګيانو د پولټيکل او تحصيلدار زندان مې پر ځان منلی و او د هغوی د جاسوسانو په لاس مې د خپلو وينو تويېدل په سترګو ليدل، زما پرېشاني د دلباز خان او نورو غيرتي مشرانو په ډاډ او اطمينان برسېره عوامل او علتونه درلودل او هغه دا وو: اول د کوم هدف او مقصد له پاره چې پوره يوه نيمه مياشت مخکې د شاه جوی څخه پلی او په يوه جوړه جامو کښې د وزيرستان په لور راخوځېدلی وم هغه سپېڅلی هدف په غزني کښې د اعليحضرت غازي امان الله خان د کندهاري لښکر په ماتې سره تر لاسه نشو.

دوهم په غزني کښې د خپلواکۍ يو قهرمان د خپل ولس له لاسه د خپل اجدادي کور (افغانستان) په پرېښودلو مجبور شو او د هغه د تلو سره د استقلال د جګړې د ټولو غازيانو هيلې نهيلې شوې، ما فکر کاوه که د وزيرو او مسودو ننګيالي اعليحضرت غازي امان الله خان بيا واک ته ورسوي نو ضرور چې ددې احسان په نظر کښې نيولو سره به افغاني پاتې خاوره د فرنګيانو څخه ازادوي.

دريم په شاه جوی کښې مې کور او کهول د چار چاپېره د حبيب الله د پلويانو لخوا په اور کښې سوځېده او په دې يوه نيمه مياشت کښې دا پته راته نه وه، چې د کورنۍ غړيو به مې

چېرته ارامه شپه سبا کړې وي او زرعلم خان مریاڼي به د سقویانو څخه د هغوی ساتنه په څه څېر سره کړې وي.

څلورم واپس ناکامه او ناهیلی شاه جوی ته تګ هم راته د مرګسره لوبې وې او دا هغه ګنتې وې چې تر قلات پورې ټوله خاوره د حبیب الله ملګرو نیولې وه او د بل لوري نه په وزیرستان کښې د قهرمانو ملګروپه مېلمستونونو کښې وزګار کښېناستل هم راته عار او شرم و.

د اعلیحضرت غازي امان الله خان د ماتې د خبر په اورېدو مجبور، ناچار، ناامید او پرېشانه وم. د ثور په څلورمه د اورګون څخه بې له جنګ او جګړې د لښکر سره برملې ته راغلم، هر کس خپل کور او کهول ته ولاړ او ماله دا پته نه لګېده چې په برمله کښې به مې دا د مسافرۍ او بې کورۍ استوګنه څومره اوږده وي، په برمل کښې کله د ننګیالي انګور خان فرقه مشر؛ کله د مېړني دلباز خان فرقه مشر او کله د غیرتمن شېرمحمد خان فرقه مشر په مېلمستون کښې اوسېدم، هغوی دا درک او احساس کړې وه چې زه څومره پرېشانه او غمګین یم، هغوی هره ګنته دا هڅه او تلاش کاوه چې زما د فکر پرېشاني لیرې کړي او دلباز خان به هرکله خپله د اورګون د سپېره ډګر وعده د مشرانو په مجلس کښې زما د ډاډ او تسلا او معززو خانانو او ملکانو ته د ورپه زړه کولو له پاره یادوله، هغوی ډېر مهربان او خواخوږي وو، زما د عزت او احترام پر ځای کولو له پاره د مال او ځان نه تېر وو، ولې بیا هم زما سره وسوسې او فکرونه وو. او هغه د افغانستان د درست ولس فکرونه او سوچونه وو، چې حبیب الله د کورنۍ جګړې په اور کښې سوځول.

هغه وخت چې مـا پـه برمله ډول د وزيـرو د ننګيالي قـوم د بـهادرو او قـهرمانو مشـرانو پـه مېلمستونونو کښې استوګنه کولـه او هـره ګڼته او شـېبه مې د حبيب الله او د هغه د ملـګرو د فتنې څخـه د وطن او ولس د نجات او خلاصون فکرونـه کـول او د هغه لـه پـاره د يوې لنډې او معقولې لارې پـه لټون بوخت وم، نو په همهغه وخت او زمان کښې سپاه سالار سردار محمد نادر خان چې د ۱۳۰۷ هجري لمريز کال د حوت پـه مياشت کښې د فرانس څخه افغانستان تـه داخـل شـوی و؛ د خپلـو وروڼو (کرنيل سردار شاه محمود خـان او کرنيـل سـردار شـاه ولي خـان) سره پـه پکتيـا کښې د اعليحضرت غـازي امـان الله خـان کورنـۍ تـه د سلطنت د بيا ګټلـو تـر اوازې لانـدې د حبيب الله پـه مخالفت پـه کـار او فعـاليت بـاندې بوخت و او د اعليحضـرت غـازي امان الله خـان د طرفدارانو او هواخواهانو پـه سيمو کښې يې کله پـه يوه کلي او کله يې پـه بـل کلي کښې سرګردانه او اواره ژوند کـاوه او دا يې هڅه او تـلاش و، چې د جنوبـي د قومونـو او قبيلـو (ځدرانو، منګلـو، ځاځيو، احمدزيو، خوستيانو او ګردېزيـانو) څخـه پـر کـابل بـاندې د حملې لـه پـاره يـو ستر لښکر راغونـډ کړي، پـه مشرقي کښې د سپاه سالار ورور (سردار محمد هاشم خان) او محمد ګل خـان مومند هـم ددې هدف او مقصد له پـاره مـلا تړلې وه.

سپاه سالار محمد نـادر خان افغانستان تـه د خپلو داخلېدو لـه نېټې څخـه بيا تـر هغـه وخت پـورې چې مـا د وزيـري او مسودي جنګياليو پـه واسطه اورګون فتح کاوه؛ زيـات هـڅه او تـلاش کړی و چې د جنوبي اقـوام او قبـايل پـر ځان بـاندې راټول کړي او د هغوی پـه ذريعـه هـر چېرې د حبيب الله د

ملګرو بنیاد وکاږي. هغه د اورګون پوځي کلا ته راغلی و، او هغوی ورته د عدم همکارۍ او نه ملګرۍ په ډانګ پیلي ځواب ورکړی و. خوستیان، احمدزايي، ځمکینان او دري خېل یې سخت په مخالفت ولاړ وو. په لوګر کښې د حبیب الله د جرنیل پینه بیګ خان په لاس د سپاه سالار محمد نادر خان ماتې دا مخالفتونه نور هم زیات کړي وو او یو شمېر هغه اقوام او قبایل چې تر همهغه ګنتو د حبیب الله په پلوي نه وو درېدلي، د حبیب الله په څنګ کښې ودرېدل: د سلیمانخېلو مشران (عصمت الله خان، کریم خان او پهلوان خان) د جنګ په ډګر کښې د محمد نادر خان او د هغه د ورونو په وړاندې رامخکښې شوه، حضرت صاحب نورالمشایخ چې د غلجي پښتنو اکثر قبایل او مشران یې د مریدۍ په دایره کښې وو؛ د اعلیحضرت غازي امان الله خان او سپاه سالار محمد نادر خان په مخالفت یې کار او فعالیت کاوه.

د جنوبي د ورځنیو پېښو او واقعیاتو څخه مې په برمل کښې معلومات تر لاسه کاوه او مور مشرانو به پر هغه حاصل شوو او تر لاسه شوو معلوماتو باندې غونډې او جرګې کولې. زما سره دا اندېښنه وه چې نن او سبا د پکتیایي اقوامو او قبیلو د بې اتفاقیو او اختلافاتو او د مشرانو د خود غرضیو په اثر درست جنوبي د شمالي په څېر د حبیب الله په څنګ کښې درېږي، اورګون هم د حبیب الله د طرفدارو صاحب منصبانو لخوا اداره کېږي او دا وېره په زړه کښې راګرځېدله چې د حبیب الله د طرفدارو صاحب منصبانو په لاسوهنه هغه د پکتیایي قومونو او قبیلو د بې اتفاقیو او اختلافاتو د اور لمبې برملې ته چې د افغانستان په خاوره کښې ده او افغانستان ته د

نجات ورکولو قهرمانان او جنګيالي پکښې مېشته دي راونه رسېږي نو هم دا وېره او اندېښنه وه او د ځان سره مې پرېکړه او فيصله وکړه چې د اورګون د فتح کولو له پاره بيا وزيري او مسودي جنګيالي راغونډ کړم او د اورګون د فتح کولو نه وروسته د کابل د نيولو له پاره حرکت وکړو، خپله دا پرېکړه او فيصله مې دلباز خان ته څرګنده کړه، هغه هم په مېړانه او ورين تندي سره خوښه کړه؛ په سبا مې د شېر محمد خان او انګور خان سره کتنه وکړه، هغوی هم د دلباز خان په څېر د وزيرو او مسودو د لښکرو راغونډولو ټول اختيارات مالره وسپارل او د هر ډول مالي او ځاني همکارۍ ژمنه يې راسره وکړه.

د انګور خان فرقه مشر، شېر محمد خان فرقه مشر او دلباز خان فرقه مشر سره د سلا او مشورې نه وروسته مې د وزيرو او مسودو د قومونو او قبيلو مشرانو، خانانو او ملکانو ته د لښکر د راغونډولو ليکونه ولېږل او دا مې ورته په ګوته کړه چې د اورګون د فتح کولو او بيا د هغه نه د کابل په لور د حرکت له پاره دې خپل ځانونه او جنګيالي د ټوپکو او کارتوسو سره برملې ته راشي، ټولو بهادرو او تورزنو مشرانو، خانانو او ملکانو زما ليک او دعوت ته لبيک ووايه؛ زما فکر او نظريه يې خوښه او غوره کړه، د قوم ننګيالي مشران. خانان او ملکان د خپلو جنګياليو سره په برمل کښې د اورګون د فتح کولو له پاره راغونډ شول، دا ځل د شېر زرو څخه زيات د وزيرو او مسودو د قومونو او قبيلو افراد د جنګ او جګړې له پاره حاضر او اماده شول. د لښکر د اکمال او د مشرانو د رارسېدو نه وروسته زما تر مشرۍ او قيادت لاندې درست لښکر د برمل څخه د

اورګون په طرف حرکت وکړ، د برملې څخه تر اورګون پورې زیات واټن دی، د وزیرو او مسودو جنګیالیو هغه لیاره پیاده وخیرله.

د ۱۳۰۸ هجري لمریز کال د جوزا د میاشتې او له نېټه وه چې زه د خپلو وزیري او مسودي شپږزره او پنځه سوه جنګیالیو سره اورګون ته ورسېدم، د خپلو لښکرو کیمپ مو د اورګون نظامي کلا (مونډي کلا) ته په نژدې فاصله کښې وواهه. په کلا کښې غونډ مشر عبدالغیاث خان کوهدامنی او کنډکمشر میرسید حسن خان چندولی د حبیب الله د طرفدارانو او پوځیانو قوماندانان وو، د اورګون پوځي کلا د دوی تر اداري او قوماندې لاندې وه، د اورګون یو شمېر عام خلک او په مجموع کښې د جنوبي اکثریت پرګنې د حبیب الله په طرفدارۍ او د اعلیحضرت غازي امان الله خان په مخالفت ولاړ وو. د حبیب الله د ملګرو قوت د هېواد په ګوټ ګوټ کښې په زیاتېدو و. ځکه په غزني کښې د تاج او تخت ښتن ماتې خوړلې وه او د هغه ماتې سره د وطن څخه وتلی و، د حبیب الله د پلویانو زور تر کندهاره پورې رسېدلی و او په هر ځای کښې د هغوی جنګي روحیه غښتلې شوې وه په دې هم ډاډه وو چې محمد نادر خان او د هغه ورونه په دې نشي توانېدای چې د پکتیاني اقوامو او قبیلو څخه د کابل د فتح کولو له پاره لښکر راغونډ کړي ځکه سپاه سالار نه د امان الله خان د طرفدارۍ او نه ځان ته د سلطنت ګټلو عام او علني اعلان کړی و، د پهلوان خان کریم خان او غوث الدین خان هم په دې ورسره ورانه وه، ولې بیا هم په یوه داسې حالت او صورت کښې چې په درست هېواد کښې جاري و؛

یـواخې او یـواخې د افغـاني ننـګ او غـیرت د پـرځای کولـو او وطن ته د نجـات ورکولـو پـه هیلـه د اورګون نیولـو تـه روان شـوو، د اورګون فتحـې او نیولـو درسـت هـېواد تـه د نجـات ورکولـو لـه پاره ســترې ګټې او فـایدې درلـودې:

اولا: د اورګون پـه پـوځي غونـډ کـښې زیـاتې وسـلې او مـهمات وو، چـې د کـابل پـه نیولـو کـښې یـې زمـا د لښکـرو سـره مرسـته کولـه، مـوږ انګرېزي ټوپکـې پـه زیاتـه انـدازه درلـودې د هـر وزیـري او مسـودي پـه کـور کـښې حـد اقـل دوه او درې ټوپکـې سـره د پـوره کارتوسـو موجـودې وې، ولـې تـوپونـه او ماشـین ګنې مو نـه درلـودې او دا دوه څیزونـه د اورګون پـه نظـامي کـلا کـښې موجود وو او د کلا په فتحه کولـو سـره زمـوږ تـر لاسـه کـېده.

ثانیـا: زمـا د لښکـر پـه ذریعـه د اورګون پـه فتحـه کولـو سـره د حبیـب الله د ملـګرو جنـګي روحیـه پـه ټول جنوبـي کـښې کمزورې کېده او دې کـار د کـابل نیـول او فتـح اسـانه کولـه.

کلـه چـې زه د وزیـرو او مسـودو د سرتېرو لښکـرو سـره د جـوزا په اولـه نـېټه ورسـېدم، نـو سمدسـتي مـې د قـوم د مشـرانو، خانـانو او ملکـانو د جـرګې نـه وروسـته د اورګون پـه پـوځي غونـډ بـاندې قـابض د حبیـب الله طرفـدار صـاحب منصبـانو او د هغـوی سـره مله او همراه د سیمې مشرانو تـه پـه دې ټکـو سـره لیـک ولیکـه:

"جنـاب غونـډ مشـرصاحب عبدالغیـاث خـان او جنـاب کنډکمشر صـاحب سـید حسـن خـان، السـلام علیکـم علـی عبـادالله صـالحین!

امابعد: خـنګه چـې تاسـو عـالیقدر غنـډ مشر صـاحب او عـالیقدر کنډکمشـر صـاحب تـه معلومـه ده، چـې د اورګون علاقـه او دغـه نظـامي کـلا چـې هـم دا اوس تاسـو پکـښې پـوځي واک لـرئ، هـر

وخت په اضطراري حالتونو کښې يې د وزيرو، سليمانخېلو، دېګانو، خروټو او ځدرانو په قومونو پورې اړه درلوده، د فرنګيانو په وړاندې د خپلواکۍ د جهاد په دوران کښې کرنيل شاه ولي خان هم ددې قومونو سره خپله سلا او مشوره کوله او ټول اختيارات يې د قوم خانانو، ملکانو او مشرانو ته سپارلي وو، اوس چې په ټول افغانستان کښې کورنۍ جګړه روانه ده، نو د وطن او اولس د ارامۍ په سپېڅلي نيت مونږ د وزيرو او مسودو د قومونو او قبيلو ټولو مشرانو دا پرېکړه او فيصله کړې ده: چې د وزيرو، خروټو، ځدرانو، دېګانو(تاجکانو) او سليمان خېلو د قومونو دا ګډه سيمه د هر رنګ فتنې او کورنۍ جګړې څخه په امان وي او څنګه چې تاسو د اورګون علاقې او نظامي کلا ته ددغه قومونو بې مشورې او بې اجازې ننوتي ياست او هم مو د هغه په څنګ کښې د سلطنت د غاصب بېرغ پر کلا باندې ځوړند کړی دی، د ځينو قومونو او قبيلو يو شمېر شرير او رهزن افراد مو تر اړخ درولي دي؛ د قوم او سيمې د ښېګڼې په خاطر ښه او معقول مصلحت دا دی چې پر نظامي کلا باندې د سلطنت د غاصب دا ځوړند بيرغ راکوز کړئ او په خپله تاسو يو ځل د اورګون د علاقې او پوځي کلا څخه ووځئ او بيا د امکان په صورت کښې د سيمې د قومونو او قبيلو د مشرانو د جرګې د فيصلې نه وروسته واپس اورګون او پوځي کلا ته داخل شئ ځکه چې ددې سيمې د ټولو پرګنو د امن او ارامۍ مصلحت هم په دې کار کښې دی".

ليک زما سره په څنګ کښې د وزيرو او مسودو د قومونو او قبيلو راسره په لښکر کښې مل مشرانو هم لاسليک کړ.

زموږ لیک عبدالغیاث خان کوهدامني او میرمحمد حسن خان چندولي ته ورسېد، څرنګه چې بېچاره عبدالغیاث خان غونډمشر د حبیب الله په ورځني قوت او طاقت باندې مغروره شوی و، د کندهار له لارې د اعلیحضرت غازي امان الله خان فرار او په پکتیا (جنوبي) کښې د جرنیل محمد نادر خان او دهغه د ورونو روزمره ناکامۍ پوره جرئت وربخښلی و، نو یې د خپل ذاتي تکبر او د هغه ور حاصل شوي جرات په اساس زموږ د ورلېږل شوي لیک په ځواب کښې پوره د درې ګزه سپینې خاسې ټوکر د ملا محمد یعقوب اورګوني په لاس راولېږه او هغه ته یې شفاهي ویلې وو، چې مریانې یارمحمد ته ووایه: "دا درې ګزه د خاسې ټوکر مې د پړوني له پاره درولېږه چې پر سر یې کړې. د حبیب الله د تورې څخه په لندن کښې انګرېزان په لوخ سر سلامي کوي".

د عبدالغیاث خان غونډ مشر له لوري د ملا یعقوب اورګوني په لاس راوړ شوی د خاسې ټکور او پیغام د وزیرو او مسودو د ننګیالي قومونو او قبیلو د مېړنیو مشرانو حوصله زیاته تنګه کړه، ملا یعقوب حاضر و چې ملک دند خان لښکر راغونډ کړ؛ د عبدالغیاث خان رالېږل شوی ټوکر یې ورته ښکاره کړ او د هغه پیغام چې د وزیرو او مسودو د قومونو سپکاوی پکې شوی و ټولو ته واوراوه او د هغه سره جوخت په لښکر چیغې او نارې ګډې شوې او د هر سړي د خولې نه دا خبره اورېدل کېده: "زموږ مرګقبول دی، سپکاوی په ځان نه منو". د لښکر همدا چیغې او نارې وې، چې یو مسودی ځوان د ملک دند خان ملا خېل تر اړخ ودرېده او په جګ اواز یې چې د احساساتو نه

يې په مخکې سوروالي ښکارېده او د بدن ټول غړي يې په رېږدېدو وو ناري کړې:

*غياثه ګوره چې پښېمانه نه شې*
*ورځه چې راشې بيا پرېشانه نه شې*
*تا سپکاوی زمونږ د قام کړی دی*
*په تېښته منډه له ميدانه نه شې*
*قسم په خدای چې به په کور نه شو مونږ*
*ځو په کلا داخل په زور نه شو مونږ*

ټولو مېړنو مشرانو په همهغه ګنټه دا فيصله وکړه، چې نن شپه دې په پوځي کلا باندې جنګ او جګړه پيل شي، د لښکر ټولو افرادو ته ملک ډنډ خان د مشرانو اراده بيان کړه او دا يې ورته څرګنده کړه چې د ډول ږغولو سره دې جنګ اغاز شي.

د ۱۳۰۸ هجري لمريز کال د جوزا د مياشتې د اولې شپې په نهه بجو باندې د جګړې د پيل کولو له پاره ډول وږغول شو، د جګړې د ډګر وظيفې او مسووليتونه مونږ مشرانو مخکې تعين کړي وو، د جنګ عمومي قومانده او قيادت د وزيرو او مسودو معزز او غيرتي مشرانو په بشپړ اتفاق سره ماله سپارلي وو، انګور خان او قطب خان مسود د مرستيالانو په څېر راسره همکاري او مرسته کوله، ملا يعقوب اورګوني د عبدالغياث خان غونډ مشر استاځی مو هم له ځان سره ساتلی و، تقريبا د همهغه شپې لس بجې وې چې زمونږ لخوا پر کلا باندې جګړه پيل شوه، د حبيب الله د پلويانو لخوا زمونږ د ټوپکو د ډزو په مقابل کښې په توپونو او ماشينګنو باندې ځواب راکول کېده،

هم دا شپه پوره خلورساعته موږ د کلا په لوري جنګ وکړ، د سهار د لمانځه د ادا کولو نه وروسته مو ملاصاحب یعقوب اورګونی د عبدالغیاث خان استاځی رخصت کړی او د هغه په لاس مو غونډ مشر صاحب ته په دې خبر پیغام ولېږه: "جناب غونډ مشر صاحب!

السلام علیکم ورحمه الله و برکاه!

موږ د قوم او منطقې د مصلحت په خاطر دلته راغلي یو. او دا مو هدف دی چې د کابل او نورو سیمو د فتنې او فساد د اور لمبې زموږ په علاقه کښې بلې نه شي، د لومړني لیک څخه همدا زموږ مطلب و، اما افسوس چې تاسو غونډ مشر صاحب د خپل دې ستر مقام، زیاتې پوهې او تجربې سره، د افغانۍ اصولو په خلاف د خپل استاځي (ملا صاحب محمد یعقوب خان) په لاس هغه څه را ولېږل چې درنه یې توقع نه کېدله، پوهیږو چې انسان د خطا او اشتباه څخه په امان نه دی او یا کله جاهل او په ځان مغرور یاران ورباندې اثر ښندي، ولې د ربړې او مشکلاتو په وخت کښې هغه جاهل او مغرور یاران تېښته کوي او لکه څنګه چې تاسو جناب په خپلو سترګو ولیدل د اعلیحضرت غازي امان الله خان جاهل او مغرور ملګري ترېنه څرنګه په ځنګ شول، د ځان او مال د ساتنې په خاطر همدا ګنته ستاسو په ځنګ کښې ولاړ دي.

جناب عالیقدر غونډمشر صاحب! د قوم او وطن د ښېګنې او ولس ته د خدمت کولو په خاطر زموږ ستاسو څخه یو ځل بیا دا هیله او امید دی، چې فعلا د نظامي کلا اداره ددې علاقې د قومونو مشرانو او موږ لره راوسپارئ، دا د سیمې د قومونو او قبیلو په خانانو، ملکانو او مشرانو پورې اړه لري چې

د هغه اداره واپس چالره سپاري د تېرې شپې د څو ساعته دزو څخه زموږ مقصد دا و چې تاسو او پر تاسو راچاپېر افرادو ته دا په ګوته او څرګنده کړو، چې په ښځ یو قدم تلونکي نه یو او موږ هر یوه د ځان سره کفن راوړی دی، اوس د جګړې او نه جګړې کولو اختیار ستا په لاس دی. د اینده ورورو‌ژنې او وینو تویولو ټول مسوولیت تا ته راجع دی."

هغه ورځ ووتله او تیاره ماښام شو د عبدالغیاث خان غونډمشر له لوري مو ځواب تر لاسه نه کړ نو په دې پوره وپوهېدو چې غونډ مشر صاحب نه د قوم مصلحت او نه د سیمې ارامي په نظر کښې لري او دا په دې چې په جنوبي کښې د حبیب الله مخ پر زیاتېدو قوت. په غزني کښې د اعلیحضرت غازي امان الله خان د کندهاري لښکر ماتې، د سپاه سالار محمد نادر خان مرموز سیاست د سلطنت د اعادې په اړه او د هغه سره د پکتیاني قومونو نه ملګری عبدالغیاث د تکبر او غرور ونې ته خېژولی و.

د همهغه ورځې تر ماښام پورې موږ د.عبدالغیاث خان غونډمشر او میر محمد حسن خان کنډکمشر د ځواب په انتظار وو. ولې د هغه له لوري مو ځواب تر لاسه نه کړ او دا پوره پته راته ولګېده چې غونډ مشر صاحب هر څه د جنګ او جګړې له لارې فیصله کوي، نه په ورو وژنه او نه په وینو تویولو باندې یې باک شته، نو همهغه و چې عبدالغیاث خان کوهدامني په جنګ کولو اړ کړو او موږ مشرانو دا پرېکړه وکړه چې د سهار د سپیدو چاودو سره دې د مونډې پر کلا باندې د هر لوري نه جنګ پیل شي او دا جنګ دې تر هغه وخت پورې جاري

وساتل شي، تر څو غونډ مشر صاحب او د هغه سلا کاران خائونه تسليموي.

د همهغه شپې تقريبا د سهار پنځه بجې وې چې د مخکني تصميم سره سم مو د هر لوري نه د انګرېزي ټوپکو د ګوليو په اورولو سره د مونډي پر کلا باندې چې د حبيب الله د ملګري او پلوي (عبدالغياث خان غونډمشر) قرارګاه وه جنګ پيل کړ، هغوی هم په ډېره مېړانه او حبيب الله ته په بشپړ صداقت سره جنګېدل او د کلا څخه يې زما په لښکريانو باندې د ټوپکو د کارتوسو په څنګ کښې د توپونو ګولۍ او د ماشينګڼو مرډکي اورولې، هغوی ښه جنګي موقعيت او پخې مورچې درلودې، سلاح او جبهه خانه يې پرېمانه په واک او اختيار کښې وه او هم دا سبب او علت و چې جنګ په هفتو اوږد شو؛ په دې وخت کښې په لوګر، خوست، ګردېز او ځدرانو کښې د حبيب الله په پلوۍ ښورښونه وو، قومونه او قبيلې د هغه په طرف ورځ په ورځ درېدل، سپاه سالار محمد نادر خان او د هغه ورسره مېل ورونو د څلورو مياشتو په مدت کښې څلورسوه افراد په درست جنوبي کښې هم نه وو په څنګ کښې درولي، د حبيب الله د پلويانو د شمېر زياتېدو په اثر د يوې سيمې څخه بلې سيمې ته په منډه او فرار کښې وو، په ګردېز کښې يې د شمالي د صاحبزاده صاحب د زوی (محمد صديق خان) له لاسه سخته ماته خوړلې وه، د جنوبي درست سليمانخېل، ګردېزيان، خوستيان او دريخيل د دوی په مخالفت وو، په جنوبي کښې د جرنيل محمد نادر خان او د هغه د ورونو په وړاندې د اولس عکس العمل او د هغه نه رامخکې شوو پېښو او واقعاتو دوی سخت نااميده او مايوسه کړي وو.

په اورګون کښې د حبیب الله پلویانو زما د لښکر په وړاندې زیات مقاومت کاوه، د جګړې په شپاړسمه یو ځل بیا مور عبدالغیاث خان ته د جنګ نه د لاس اخیستلو او د کلا د تسلیمولو له پاره په دې ټکو سره لیک ولیږه: "جناب غونډمشر صاحب! دا د شریعت حکم دی چې مسلمانان باید خپل اختلافات د خبرو له لارې حل کړي او یا دریم ګړی ترمینځ امین وټاکي. مور بیا هم تکرارا یادونه کوو چې د وروروژنې او وینو تویولو څخه لاس واخله او د قران پاک د حکم په اساس دا درته پېشنهاد کوو چې راشه د ټولو اختلافاتو د حل له پاره د ټولو اقوامو د مشرانو جرګې ته خپل اختیارات وسپارو او څه چې هغوی فیصله وکړه، هغه به زمور او ستاسو فیصله وي او که دا دې خیال وي چې د جنګ له لارې د کلا اختیارات په لاس کښې ولرې او یا د روانې محاصرې د ماتولو له پاره د حبیب الله امداد درته راورسیږي، یقین او باور ولره چې اورګون ته د حبیب الله د یوه پلوي په راتلو سره به مور په سوونو جنګیالي د جګړې په ډګر کښې ودروو او که دې دا امید وي چې د کلا محاصره به مور ستړي او ستومانه کړي، ډاډه اوسه چې دا محاصره به تر هغه وخت پورې وساتو څو ته په خپله ځان راته وسپارې؛ مور د اورګون د ټولو صالح مشرانو او خانانو سره خبرې کړې دي، هغوی په دې جګړه کښې د خپل ناپېیلتوب قول او وعده راکړې ده، اوس زمور او ستاسو تر مینځ د همدې روانې جګړې او ورورو‌ژنې د ټولو مشکلاتو د غوټې خلاصول ستا په لاس کښې دي او ددې کار له پاره زه یارمحمد د وزیرو او مسودو د لښکر قاید حاضر یم چې ستا سره مخامخ وګورم".

غونډمشر صاحب عبدالغیاث خان کوهدامني او کنډکمشر صاحب سید حسن خان چندولي د خپل تدبیر چلولو په رایه روان وو او د ګردېز نه د محمد صدیق خان، د لوګر نه د پېنه بیګ خان؛ سور جرنیل محمد عمر خان ناصري، سپاه سالار پردل خان، د خوست نه د غونډ مشر عبدالله خان شمل، بلند خان ځدراڼ او ګلام خان او د ځمکنیو د ملک میر اکبر او مغول خان د مرسته رسوونکو جنګي قوا په انتظار وو، ولې افسوس چې عبدالغیاث خان او سید حسن خان د تقدیر پرېکړه او فیصله په سترګو نه لیدله او بې ځایه مقاومت او ټینګار یې کاوه، په مونډي کلا کښې زما جنګیالیو او سرتېرو د حبیب الله په پلویانو باندې محاصره هومره سخته او ټینګه کړه؛ څو هغوی په پوځي قرارګاه کښې د مردار شوو حیواناتو د بدبويۍ او د ځانونو د تندې او لوږې څخه په تنګ شوله. د هغه مرستې په انتظار چې وو، هغه هم ورته راونه رسېدله، د هر طرف څخه ناهیلي او نا امیده شول. او زموږ له خوا نه ګنټه په ګنټه محاصرهورباندې سختېده.

د جوزا د میاشتې شلمه او.د اورګون پر پوځي کلا باندې د جګړې نولسمه نېټه وه چې د حبیب الله د وفا دار (عبدالغیاث خان) له جانب څخه هغه ملا یعقوب اورګوني چې څه ورځې مخکې یې د خاسې درې کزه تهوکر ماله د پیغور او طعنې په توګه راوړې و او د عبدالغیاث خان غونډ مشر د تکبر او غرور خبرې یې راته کولې دا ځل د دوو سپین ږیرو په همرايۍ د سپینو بېرغونو سره موږ لره راغلل او د غونډ مشر صاحب د تسلیمۍ او د کلا د راسپارلو پیغام یې راورساوه، موږ د ملا صاحب محمد یعقوب او هغه دوو سپین ږیرو سره چې د حبیب

الله پلویان او د اورګون مخورین وو، پوره یوه ګڼه خبرې د عبدالغیاث خان د تسلیمی او د کلا د راسپارلو په شاو خوا کښې وکړې، د وزیرو او مسودو د قومونو او قبیلو ټولو ننګیالیو مشرانو په اتفاق سره د عبدالغیاث خان او نورو پوځیانو او اولسي خلکو د سر دامن ډاډ ورکړ او دا مو ورته څرګنده کړه چې لومړی دې غونډ مشر صاحب او میر محمد حسن خان موږ لره ځانونه تسلیم کړي او د هغه نه وروسته به موږ بې له جنګ او جګړې څخه کلا ته ننوځو. ځکه چې موږ د خدعې څخه ډارېدو.

ملا یعقوب او د هغه دوه همراه ملګري پس له یوې ګڼې خبرې څخه د کلا په لور رخصت شوه، او د جوزا د میاشتې د یوویشتمې د سهار اته بجې وې چې عبدالغیاث غونډ مشر د خپلو پوځي ملګرو سره د ملا یعقوب په ملتیا زموږ مقر ته راغی، ما او د وزیرو او مسودو د قومونو مشرانو د غونډ مشر سره د غېږې سترې مشي وکړه، د دښمن نه بلکې د یوه خواږه دوست په څېر مو د هغه او ورسره مل ملګرو عزت او احترام وکړ: ځکه موږ نه غوښته چې دوی د جنګي اسیرانو او یا د جنګ د مغلوبینو احساس وکړي، که څه هم د هغو درې ګزه رالېږل شوي ټوکر؛ قوم د سپکاوي او د نولس ورځو د جنګ په اساس زموږ حق دا و چې عبدالغیاث خان او د هغه ملګري په همهغه ګڼه وژل شوي وای، ولې زموږ افغاني غیرت او د ملا یعقوب سره ژمنې دا اجازه نه راکوله چې د هغو په وینو موږ خپل لاسونه رنګولي وای او یا مو د ټول وزیرستان شاه زلمیانو ته تاریخي پېغور پرېښودلی وای؛ نو همهغه وو چې د افغاني غیرت او له ملا یعقوب سره د ژمنې په نظر کښې نیولو سره ما

شخصا عبدالغیاث خان غونډ مشر ته یو انګرېزی ټوپک، دوه سوه کارتوس او یو د سپرلۍ اس ورکړ او هم مې خو تنه ننګیالي د هغه د حفاظت له پاره ورسره مله کړه چې غونډمشر صاحب چېرې چې زړه یې وي تر هغه ځایه په امن او سلامت ورسوي. عبدالغیاث خان او نور ټول پوځیان مو په عزت او احترام سره رخصت کړه او کله چې غونډ مشرصاحب په ځدرانو کښې د پشتې علاقې ته په امن او بشپړ عزت سره ورسېد نو یې زموږ د احسان د پر ځای کولو له پاره څلوېښت ښه څورب پسونه زما د لښکریانو او زموږ مشرانو د مېلمستیا له پاره راولېږل.

کله چې موږ د اورګون نظامي کلا د حبیب الله د پلویانو څخه د ۱۳۰۸ هجري لمریز کال د جوزا د میاشتې په شلمه ونیوله او د اورګون جبهه خانه زموږ په لاس کښېوتله، نو مې د لوګر د کولنګار د اوسېدونکي حاجي نواب خان کاکا د زوی فیض محمد په لاس محمد نادر خان ته چې په ځاځیو کښې اوسېده لیک ولېږه او ورته څرګنده مې کړه چې زما تر قیادت او قوماندې لاندې د وزیرستان ننګیالیو د اورګون کلا د حبیب الله د ملګرو څخه تر لاسه کړه، اوس د وزیرو او مسودو د قومونو او قبیلو مېړنیي مشران او سرتېري لښکریان دې لره تیار او اماده دي چې د اعلیحضرت امان الله خان د بیا راوستلو له پاره ستا او ستاسو د ملګرو سره په ګډه د کابل په لور حرکت وکړي، ولې متاسفانه چې د سپاه سالار محمد نادر خان له لوري زما د لېږل شوي لیک ځواب په ځټ رانغی، نو همغه وو چې د څه انتظار ایستلو نه وروسته موږ د لښکر مشرانو په

خپلمنځي جرګه کښې په اتفاق او اتحاد سره داسې فيصله او پرېکړه وکړه:

۱. ځرنګه چې په همدې فصل کښې يو زيات شمېر کوچيان په درست جنوبي کښې اوسېږي او هغوی د حبيب الله پلوي کوي او د اعليحضرت غازي امان الله خان په مخالفت د ځان او مال ځخه تېر دی او په ګردېز کښې د حبيب الله پلويانو د کوچيانو په زور د محمد نادر خان ملګري سخت تکولي دي نو مناسب نه ده چې په دې مياشتو کښې زمونږ لښکر د کابل په لور حرکت وکړي او کله چې واپس د جنوبي کوچيان خپلو مېنو ته ستانه شي. نو هغه وخت به د کابل نيولو ته لښکر راغونډ کړو.

۲. کومه درنده وسله (توپونه او ماشين ګنې) او جبهه خانه چې د اورګون په فتحه کښې تر لاسه شوې ده. هغه دې پوره خوندي شي او د کابل په نيولو کښې به ترېنه کار اخلو.

د اورګون د نيولو ځخه واپس زه او لښکرې د وزيرستان په لور باندې روان شوو او هر کس په خپل کلي کښې په خپله خوارۍ او غريبۍ باندې بوخت شو: زه (مريانۍ يارمحمد) د برملي د وزيرو د ننګيالي او قهرمان قوم د مشرانو په مېلمستونو کښې يو ځل بيا استوګن شوم او د بيا لښکر راغونډولو او د کابل په لور د حرکت پلان او نقشه مې په فکر او خيال کښې پالله. د قوم د مشرانو په غونډو او جرګو کښې به مې پر هغه پلان او نقشه باندې بحث او خبرې کولې.

د اورګون د پوځي کلا (مونډې کلا) په نيولو سره زمونږ په لاس دوولس ماشين ګنې. نهه توپونه. يوسل او اتيا باره جبهه

خانه، کچري، اسونه او بې شمېره ټوپکې کښېوتلې او د هغه نولس ورځو او شپو په جنګ او جګړه کښې د عبدالغیاث خان کوهدامني او سید حسن خان کابلي چندولي د ملګرو په ګولیو زمور ډېر جنګیالي په شهادت ورسېدل: د زخمیانو او ټپیانو شمېر تر اویا تنو زیات و. ولې د هغو پرهارونه دومره خطرناک نه وو چې ترې مړه شوي وای.

## په ماما زیارت کښې د کابل د فتح کولو غونډه

کوم وخت چې د وزیرو او مسودو د ننګیالیو د جنګیالي لښکر سره د اورګون د پوځي کلا د تسلیمولو او د سیمې نه د حبیب الله د ملګرو او پلویانو د تر ټلو او مغلو بولو وروسته برملې ته راغلم. نو زه په برمل کښې چهارزانو او وزګار نه کښېناستم شپه او ورځ په دې پلان او نقشه باندې بوخت وم چې خرنګه په لنډ وخت کښې کولی شم چې د وزیرو، مسودو، تڼیو او د وړو د غیرتي قومونو په ذریعه افغانستان د حبیب الله له فتنې نه خلاص کړم. په هغه ګنټو کښې د جنوبي اکثریت قومونه او قبیلې د حبیب الله په طرف اوښتلي وو. ګردېز، خوست او لوګر د حبیب الله د ملګرو په واک کښې وو او تر کابل پورې عام اولس او زیات پوځیان د دوی په خوا کښې ولاړ وو او د هغوی سره زما د لښکرو جنګ او جګړه کول هم اسانه او ساده خبره نه وه. سپاه سالار محمد نادر خان د خپلو دوو ورونو (کرنیل شاه محمود خان او کرنیل شاه ولي خان) سره چې د جنوبي په وړو وړو جنګونو کښې د حبیب

الله د ملګرو څخه پر له پسې ماتې خوړلې وې د ځائيو په علي خېلو کښې بې هيلې او نا امېده اوسېده او مجبور وو چې په افغانستان کښې پاتې شوي واى، ځکه د کورنۍ زيات غړي يې د حبيب الله په زندان کښې وو، په درست جنوبي کښې سپاه سالار صاحب او د هغه وروڼو ته هم دا د علي خېلو پناه ګاه پاتې وه.

د سپاه سالار محمد نادر خان پر اوړه او تر څنګ د حبيب الله د مقابلې په وړاندې داسې افراد او اشخاص ولاړ وو، چې ځينو يې په خپل قوم او سيمه کښې ځاى او نفوذ نه درلود او تر دې چې خپل ټبر هم ورسره ملتيا او ملګري نه کوله او ځينو خويې بيا په درست افغانستان کښې نه خپل قوم؛ نه خپله اجدادي سيمه او نه خپل پلرنى کور او کهول درلود؛ حاجي صاحب نواب خان لنوګرى چې يو سپين ږيرى او معزز شخصيت و هغه د خواجه ابراهيم خان په دښمنۍ کښې هر څه په کلنګار کښې پرېښودلي وو، د خپلو زامنو (فيض محمد او نصرالله) سره اواره و او په پېښور کښې يې د محمد نادر خان او شاه ولي خان ملګري اختيار کړې وه، د عبدالغني خان ګردېزي سره بې د هغه له وروڼو (خان محمد او شېر محمد) څخه د ګردېز لس او پنځلس سړي په مال او ځان نه وو ملګري؛ ځکه نو په ګردېز کښې د حبيب الله د ملګرو اداره چلېدله او دوى يې د ټوپک د ګولۍ په زور د خپلې پلرنۍ سيمې څخه شړلي وو، جناب مولوي صاحب الله نواز خان پنجابى چې په اصل او خټه د پنجاب د ملتان اوسېدونکى و او په حبيبيه مکتب کښې يې د اعليحضرت غازي امان الله خان د سلطنت په دوره کښې د معلم وظيفه اجرا کوله، زموږ په اولس

کښې يو بېګانه او خارجي سړی و، هغه د افغاني قومونو او قبيلو د مشرانو او ملکانو سره کوم شناخت او اړيکه نه درلوده، د کورنۍ غړي يې په ملتان کښې د شينکر هندو په لاس کښې يرغمل وو او په تنهايي افغانستان ته مهاجر شوی و، د محمد نادر خان شېر مياشتې وتلې وې چې د فرانس څخه افغانستان ته د حبيب الله د مقابلې له پاره داخل شوی و. ولې په دې نه و توانېدلی چې د خمکنيو علاقه د مير اکبر او مغول خان خمکني څخه تر لاسه کړي. په مشرقي کښې سردار صاحب محمد هاشم خان او محمد ګل خان مومند هم ناکام. او لاس تر زنې وو، د حبيب الله د مقابلې په وړاندې دوی ټول ناهيلي او نا اميده شوي وو.

د جنګ او جګړې کار او د دښمن په وړاندې کاميابي تر لاسه کول په سړو، جبهه خانه او پيسو سره کېږي؛ د محمد نادر خان او د هغه له ورونو سره نه سړي مله وو؛ نه يې جبهه خانه درلوده او هم يې نه پيسې په لاس کښې وې، چې سړي او جبهه خانه ورباندې واخلي. ډېر ناهيلي او نااميده وو څکه يې د هر کس و کورته قران ورووړ او په هغه (قران مجيد) يې د افرادو او اشخاصو سره لاسليک او امضاء کوله چې په ګډه به د اعليحضرت غازي امان الله خان د بيا راوستلو له پاره مجادله کوي، محمد نادر خان ته په ټول جنوبي کښې د ځائيو علاقه پاتې وه، نو يې د همدې سبب څخه په علي خيلو کښې خپل د قوماندې مرکز نيولی و. دلته هم ارام نه ښکارېده څکه چې هغه په خوست او خمکنيو کښې د حبيب الله د ملګرو تر تهديد لاندې وو.

ما چې عزم او اراده کړې وه چې افغانستان او خپل اولس ته به د حبیب الله د فتنې څخه نجات ورکوم او د وزیرستان د ننګیالیو په همت او افغاني ننګ مې د ۱۳۰۸ هجري لمریز کال د حمل د میاشتې د څلورمې نېټې څخه د حبیب الله او د هغه د پلویانو بشپړې مقابلې او اطاعت نه کولو ته ملاتړلې وه: په شاه جوی کښې مې د امان الله خان استاځو ته وعده ورکړې وه چې د سلطنت د اعادې له پاره به د وزیري او مسودي جنګیالیو لښکر د جګړې په محاذ کښې حاضر وم. نو دا راته عار او شرم ښکارېده چې د امکاناتو په درلودلو سره د فتنې په خاموشولو کښې برخه وانخلم او یا د یوه سارق او د تاج د غاصب د حکم چلولو په وړاندې ارام واوسم. پوره څلور میاشتې کېدې چې د سپېڅلي هدف او ارمان د تر لاسه کولو له پاره د کور او کهول څخه را ورک وم او دا راته پته نه وه چې د کورني غړي به مې په څه حالت کښې ژوند کوي. ما هغوی په مړو کښې شمارلي وو او هغوی زه په مړو کښې حساب کړی وم او دا زړه ته نه راتېرېده چې په ژوند به سره ووینو.

د اوړکون د فتحې څخه زیات و کم دوه میاشتې وتلې وې. کوچیانو هم خپلې کډې ترلې وې، چې د جنوبي څخه نورو سیمو ته ولاړ شي او هلته مېنه وکړي. ښه مناسب فصل و: د اوړي درېیمه میاشت وه. چې نه هوا توده او نه سړه وه، په جنګ کښې زما ازمویل شو لښکریانو کولی شو. چې په یوه خادر کښې په سپېره ډاګبانډې شپه سبا کړي. نو هممغه و چې د وزیر، مسودو، تنیو او دوړو د جنګیالي قومونو خانانو، ملکانو او ملایانو ته مې د برمل نه لیکونه او پیغامونه ولېږل او په

ليكونو كښې مې هغوی ته څرګنده کړه چې اوس د کابل پر لور د لښکرو د حرکت او روانېدو ور او مناسب وخت دی، د کتواز، زرمت او ګردېز له سيمو نه کوچيان په کډه دي. هغوی نور وخت نه لري چې په جنوبي کښې ټال شي: د حبيب الله په طرفداری زمور د لښکرو په ليار کښې خنډ شي د کابل په نژدې سيمو کښې هم هوا نه ده سړه شوې او زمور هر کس کولی شي چې په يوه څادر کښې شپه سبا کړي. ما پرېکړه کړې ده د برمل ټولو مشرانو هغه راسره منلې ده چې ان شاءالله ورحمن د وزيرو، مسودو، دوړو او تنيو د قومونو او قبيلو ټول مشران د خپلو جنګياليو په ګډون په ماما زيارت کښې سره غونډېږو او د هغه ځای نه به د څښتن تعالی په توکل د افغاني ننګ او غيرت د پر ځای کولو په اسره د خپلو وسلو سره د کابل په لور د حبيب الله مقابلې ته حرکت کوو. زما ليکونه ټولو مېړنو مشرانو ته ورسېدل. د يوه ليک په رسېدو کښې هم تاخير رانغی. زما استاځو واپس ډاډ راکړ چې ټولو مشرانو وعده وکړه چې ماما زيارت ته به د خپلو سړو سره ځانونه رسوي.

د ربيع الاول دوولسمه نېټه وه چې د پنځو سو تنو جنګيالي وزيرو سره مې د خپل استوګنځي څخه د ماما زيارت په لور حرکت وکړ. په لاره کښې د لوی مجاهد او قهرمان پښتون ملک زنګي خان ملاخېل وزير مېلمستون ته د خپل مل ملګرو سره وروګرځېدم. هغه په افغاني غيرت او پښتني ننګ مين ملک زنګي خان زما او زما د ملګرو تود هرکلی وکړ او زمور د احترام او عزت پر ځای کولو له پاره يې په همهغه ګڼته په حساب شمېرلي دری پسونه ذبح کړل. د وزيري قوم د

مداخېلو د قبيلې د مشر ملک زنګي خان سره مې د کابل په لور د لښکرو د حرکت په برخه کښې په تفصيل سره خبرې وکړې او د کابل د نيولو پلان او نقشه مې ورته څرګند او بيان کړل او په دې کار کښې مې د فرنګيانو د سخت دښمن او لوی مجاهد ملک صاحب دعا او ملاتړ تر لاسه کړ؛ د ذبح شوو پسونو د غوښو خوړلو نه وروسته مو د ملک زنګي خان څخه رخصت واخيست او د ماما زيارت په طرف مو خپل حرکت ته دوام ورکړ. د ملک زنګي خان ورور عبدالله خان او د دوی د قبيلې (مداخېل وزير) زيات جنګيالي او غښتلي افراد راسره مل او ملګري شوه.

ماما زيارت په وزيرستان کښې د يوه لوی ولي، بزرګ شخصيت مړستون دی؛ د وزيرستان درست اوسېدونکي د هغه مبارک روحاني قوت او بزرګۍ ته په درنده سترګه او احترام سره قايل دي، نارينه او ښځينه يې زيارت کوي، د ماما زيارت جرګې ته زه او زما سره مل جنګيالي په ښه وخت ورسېدو، هلته د وزيرو، دوړو، تنيو او مسودو د قومونو او قبيلو غيرتي مشران او بهادر جنګيالي سړي راغونډ شوي وو. ماما زيارت ته زما په رسېدو سره مونږ مشرانو په جرګه پيل وکړ او د کابل په لور د لښکرو د حرکت په پلان او نقشه باندې بوخت شوو او په جرګه کښې ټولو مشرانو چې زيات و کم تعداد يې او يا نفرو ته رسېده په اتفاق سره دا لاندينۍ پرېکړه او فيصله صادره کړه:

۱. د تېرو دوو لښکر کشيو په څېر دې دا ځل بيا د ټولو لښکرو قيادت او د جنګ قومانده د يار محمد خان مريانې په غاړه وي.

۲. د اورګون د پوځي قلعې ځخه نیول شوي توپونه، ماشین ګنې او جبهه خانه دې له ځان سره واخیستل شي.

۳. په لاره کښې تر کابل پورې زیات قومونه او قبیلې استوګن دي او د حبیب الله په پلوي ولاړ دي، ولې زموږ جنګ او جګړه د هغوی سره نه ده، موږ پر کابل باندې جنګ ته ملا تړلې ده او خپل جنګي زور به هلته اچوو، ولې بیا هم که په لاره کښې کوم قوم او یا کومې قبیلې راسره جنګ او جګړه کوله او د کابل په لور زموږ د لښکرو د لارې خنډ ګرځېدل نو بیا موږ هم مجبور یو چې د جنګ او جګړې له لارې د هغوی د مشرانو غاړه ټیټه کړو.

۴. د سپاه سالار محمد نادر خان او د هغه د ورونو (کرنیل شاه ولي خان او شاه محمود خان) ځخه دې هیله وشي چې زموږ سره په دې جنګ کښې د وطن د نجات له پاره برخه واخلي.

۵. د کابل فتح کولو سره دې اعلیحضرت غازي امان الله خان ته د بیا سلطنت کولو بلنه ورکړه شي او یا دې د هغه د کورنۍ نژدې غړي ته د سلطنت چارې وسپارل شي.

## د وزیرو او مسودو د قومونو هغه ننګیالي چې زما د لښکر له پاره یې د خپلو مېلمستونو ورونه پرانستلي وو.

۱- محمد افضل خان زلیخېل کونډکي، ۲- حاجي محمد خان یارګل خېل، ۳- خانجان ککه خېل، ۴- شېر محمد خان سردار خېل، ۵- ملک هفتي خان ککه خېل، ٦- امیر خان

سنګي خېل. ۷- محمد سليم د قاضي صاحب زوی چې په شکي کښې اوسېده. ۸-اصل خان خوني خېل. ۹- صاحب جان سکندر خېل. ۱۰-سليک خان سکندر خېل. ۱۱- ملک پورتنی خان د شکي. ۱۲- حاجي محمد خان ببزان خېل د شکي. ۱۳-لوی غازي او مجاهد ملا همزالله اخند احمد زی وزير. ۱۴- غلام قديم د ملاهمزالله احمد بمسی. ۱۵ ملا قسيم اخند خوجل خېل. ۱٦- صاحب جان ملک خېل. ۱۷- دلباز خان فرقه مشر. ۱۸- شبر محمد خان فرقه مشر. ۱۹- عبدالله جان غوندمشر احمدزی وزير. ۲۰- زرمين سيفلي کابل خېل. ۲۱- ميران سيفلي کابل خېل. ۲۲- ګولام خان سيفلي کابل خېل ملکي جرنيل او هغه ننګيالی په پښو ګوډ دی. ۲۳- نور محمد خان پيفلي کابل خېل. ۲۴- ميرو خان فرقه مشر سيفلي کابل خېل. ۲۵- بحان خان فرقه مشر د نور محمد خان زوی. ۲٦- اختي جان خان فرقه مشر زليخېل( اتمان خېل). ۲۷- ملک زنګي خان مداخېل. ۲۸- عبدالله خان مداخېل د ملک زنګي خان ورور. ۲۹- انګور خان فرقه مشر، ۳۰- دلي خان مدا خېل. ۳۱- شيرين خان د برشکي. ۳۲- امرالدين خان د برشکي. ۳۳- حاجي محمد خان د ملک ګل خان زوی. ۳۴- ملک دند خان. ۳۵- ملا فضل الدين اخند د لوی مجاهد ملاپونده (رح) زوی. ۳٦- قطب خان د پاچا خان زوی (مسود). ۳۷- قاضي صاحب امير شاه خان (قريش) او ۳۸- زرخان زليخېل

# زما او زما د لښکرو حرکت د کابل په لور

په ماما زیارت کښې د وزیرستان د غیرتي قومونو او قبیلو څخه څلور زره او پنځه سوه جنګیالي د خپلو انګریزي ټوپکو. کارتوسو او ځورو سره راغونډ شوي وو او هر کس پر کابل باندې د جګړې له پاره ځان ښه چمتو کړی و په کورمه. وانه او توچي کښې د فرنګیانو تحصیلدارانو او پولټیکل دا هڅه او هاند کړی و. چې د وزیرو او مسودو جنګیالي د کابل له تګ څخه منع کړي او دا یې اعلان کړی و: "هرکس چې د یارمحمد مریاني ملګري او یا د هغه سره د افغانستان په نجات کښې مرسته وکړي، د حکومت لخوا وربانديې جریمه لګول کېږي" د فرنګي د حکومت تحصیلدار او پولټیکل خپل دا اعلان په مساجدو او بازارونو کښې څوړند کړی و. د وزیرستان غیرتي مشرانو او جنګیالي اولس ته چې د افغاني ننګ او غیرت د پر ځای کولو او د کورنۍ جګړې څخه د افغانستان د نجات مسئلې ارزښت او قیمت درلود. نو یې په همهغه حساسو شېبو او ګنټو کښې د فرنګیانو د تحصیلدارانو او پولټیکل اخطارونو. بندیزونو او جریمو ته سرټیټ نه کړ او په حساب پوره څلور زره او پنځه سوه جنګیالي د خپلو غیرتي مشرانو سره د وزیرستان له ګوټ ګوټ څخه راغونډ شول.

په ماما زیارت کښې زما ننګیالي په داسې وخت کښې راغونډ او جمع شول. چې د جنوبي اکثریت قومونه او قبیلې او کلي د اعلیحضرت غازي امان الله خان په دښمنۍ کښې د

حبیب الله او سید حسن په طرفداری اوښتلي وو، د جنوبي ټولي نظامي کلا ګانې او پوځي مرکزونه په استثنا د اورګون ثخه د سقاو د زوی د ملکي او پوځي ملګرو په لاس کښېوتلي وو. په خوست؛ ثمکنیو: ګردیز او لوګر کښې د حبیب الله ملګرو منظم نظامي مرکزونه د کابل د دفاع له پاره درلودل. د امیر شېر علي خان نه بیا تر اعلیحضرت غازي امان الله خان پورې چې څه سپکه او درنده اسلحه وه هغه ټوله د حبیب الله د ملګرو په لاس ورغلې وه. کندهار، هرات، مزار او مشرقي د حبیب الله د پلویانو په لاس فتح شوي وو. غیر له اورګون او برمل ثخه نور په درست افغانستان باندې د حبیب الله حکومت چلېده. په غرونو او رغونو باندې یې بشپړه قبضه حاصله وه. په هغسې حالت او زمان کښې د وزیرستان د قهرمان اولس د جنګیالیو حرکت د کابل په لور د مرګسره لوبې کول وو، ولې د مرګسره د لوبو په څنګ کښې ما دا هم درک او احساس کړې وه او دا مې یقین او باور و چې د وزیرستان د ننګیالیو قومونو او قبیلو د افغاني ننګ او غیرت اوبه کولی شي چې د کورنۍ جګړې او فتنې د اور لمبې خاموشه کړي؛ دا هغه قومونه او قبیلې وې چې د خپلواکۍ په جګړه کښې یې د فرنګیانو د ملا تیر ورمات کړی و او دا ځل هم دوی کولای شو چې د انګریزي یرغمل شوو ټوپکو د ګولیو په اورولو سره د سلطنت غاصب (حبیب الله) د کابل نه بهر کړي.

په ماما زیارت کښې د خانانو، ملکانو او دیني علماو د غونډې او جرګې د پرېکړې او فیصلې نه وروسته چې د ۱۳۴۸ هجري قمري کال د ربیع الاول دولسمه او د ۱۳۰۸ هجري

لمریز کـال د سنبلې میاشـت وه؛ مـا (یـار محمـد مریـانـي)؛ د وزیـرو او مسـودو د قومونـو او قبیلــو یــو شــمېر مشــرانو او ځلــور زره او پینځه سوه جنګیـالیو وطـن تـه د فتنـې څخـه د نجـات پـه اسـره او هیلـه د کـابل پـه لـور حرکـت وکـړ، زمـا تـر قیـادت او قومـاندې لانـدې ټول جنګیـالي پـه پـوره متـانت او بشپړ عـزم او اراده سـره د کـابل د فتـح کولـو پـه لـور پلـي روان وو او هـم دا رنـګه ټولـو خانانو، ملکـانو، ملایـانو او مشـرانو خپـل اختیـارات مـا لـره سپارلي وو، مـا او زمـا جنګیـالیو لښکریـانو د مامـا زیـارت نـه د کـابل پـه طرف دوه پلـي مـزل وهلـي وو: چـې د برملـې پـه حـدودو کـښې د دوو ناآشـانا سـړو سـره مخـامخ شــوو، دا دوه سـړي یــو حــاجي نـواب خـان کاکـا د لـوګر د کولنـګار اوسـېدونکی او د هغـه فیـض محمـد نومـي سـړي پـلار و چـې مـا د اورګون د نیولـو څخـه وروسته د هغه په لاس محمـد نـادر خـان تـه لیـک لـېږلی و. حـاجي نـواب خـان کاکـا یـو سـپین روبـی او معـزز شـخصیت و؛ هغـه د خواجه ابراهیـم لـه لاسـه لـه لـوګر څخـه فـرار کـړی و او د کورنـی زیـات غـړي یـې تـر همهغـه ګنـټو پـورې د خواجـه ابراهیـم یرغمـل وو، حـاجي نـواب خـان کاکـا د خپلـو دوو زامنـو (فیـض محمـد خـان او نصـرالله خـان) پـه ګډون پـه پـېښور کـښې د سـپاه سـالار محمـد نـادر خـان او کرنیـل سـردار شـاه ولي خـان ملـګری تـر لاسـه کـړې وه، دوهـم کـس د معرفـت حـاصلولو نـه وروسـته د پنجـاب د ملتـان اوسـېدونکی مولـوي صـاحب الله نــواز خــان و، مولوي صاحب په خـټه افغـان نـه و: نومـوړی پـه اصـل او نسـل یـو پنجـابی مسـلمان و او د اعلیحضـرت غـازي امـان الله خـان د سـلطنت پـه دوران کـښې د امیر حبیـب الله خـان د مکتـب معلـم و.

مولوي صاحب الله نواز خان په درست افغانستان کښې نه خپل قوم او نه خپله قبیله درلوده او هم یې نه د افغانستان د قومونو او قبیلو د مشرانو او خانانو سره پېژندګلوي او معرفت درلود. هغه د مکتب معلم او د بل لوري نه افغانانو ته پردی او بېګانه و او کوم کس چې نه په حکومت کښې لوړ مقام او نښان لري او د هغه په څنګ کښې بهرنی هم وي، هغه لره مشکله ده چې د قومونو او قبیلو مشران وپېژني او دا چې یو شمېر افراد عمدا او قصدا وایي چې د وزیرو او مسودو جنګیالي مولوي الله نواز خان او حاجي نواب خان د کابل د نیولو له پاره راغونډ کړي دي. هغوی په اصل کښې د نجات وطن د واقعیت او حقیقت څخه واقف نه دي.

د حاجي صاحب نواب خان کاکا او مولوي صاحب الله نواز خان سره زما او زما د نورو غیرتي ملګرو پېژندګلوي او معرفت د جرنیل محمد نادر خان او د هغه لیک او پیغام په ذریعه وشو: چې دوی د هغه له جانب نه په لاس کښې درلود او دا هغه ګنتې او شیبې دي چې زما جنګیالیو د ماما زیارت د غونډې نه وروسته د کابل په لور باندې دوه پلې مزلونه وهلي وو او دا مو عزم او پخه اراده کړې وه چې د سقاو زوی (حبیب الله) به د تخت نه راکوزوو.

هغه لیک چې سپاه سالار محمد نادر خان د حاجي نواب خان کاکا او مولوي صاحب الله نواز خان په لاس موږ لره رالېږلی و. د هغه لیک مضمون او پکښې پیغام په دې ټکو او عباراتو سره و: "عزیزانو! د وزیرو او مسودو قومونو غیورو مشرانو. ستاسې مېړانه او شجاعت د خپلواکۍ په جګړه کښې راته څرګند شوی دی نن بیا همهغه د مېړانې او غیرت ګنته

ده. اعلیحضرت غازي امـان الله خـان د یـوه سـارق او کوتـاه طریـق لـه لاسـه خـارج تـه فـرار کـړی دی. د هـېواد هـره برخـه د بـې اتفاقـۍ پـه اور کـښې سـوځېږي. افغـاني ننـګ او غـیرت دا تقاضا زموږ ټولـو څخـه کـوي: چـې پـه اتفـاق او اتحـاد سـره وطـن ته د رواني فتنې نـه نجـات ورکـړو"

(محمد نادر)

موږ د مامـا زیـارت پـه غونـډه او جـرګه کـښې د ربیـع الاول پـه دولسـمه نېټه دا پرېکـړه او فیصلـه کـړې وه چـې د وزیرسـتان د تـورزن اولـس جنګیـالي بـه د حبیـب الله پـه وړانـدې د کـابل پـه جنـګي محـاذ کـښې ازمویـو. دا خل زمـوږ سـره د انـګرېزي ټوپکـو او کارتوسـونه برسـېره د اورګون د پـوځي کـلا جبهـه خانـه او اسلحه هـم وه. مـوږ د خپلـو سـړو او راسـره پـه لاس کـښې وسـایلو پـه ذریعه کـولای شـو چـې زمـوږ د وړانـدې تـګ پـه مخکـې هـر قومـي او حکومتـي خنـډ پـه ډېره اسانۍ سـره د خپلـې لارې نـه ایسته کړو او ځانونه پـه بـېړه او چټکـۍ سـره د کـابل جنـګي محـاذ ته ورسـوو.

د برمـل پـه حـدودو کـښې کلـه چـې حـاجي صـاحب نـواب خـان او مولـوي صاحب الله نـواز خـان زمـا د لښکـرو سـره ملـه شـوه. دوی د ځان سـره نـه کـوم ټوپـک او نـه کـوم کـارتوس درلود. حاجي نـواب خـان کاکـا سپین روبـی او بـوډا و او مولـوي صـاحب الله نـواز خـان د ټوپـک پـه استعمال هـم نـه پوهـېده. د دوی د ټوپـک درلـودل او یـا نـه درلـودل زمـا د څو زرو لښکـرو پـه قوت او یا ضعف باندې کوم اثـر هـم نـه ښنـده.

زمـا تـر قیـادت او قومـاندې لانـدې چـې د مامـا زیـارت پـه قومـي غونـډه او جـرګه راتـه سـپارل شـوې وه او د وزیـرو او

مسودو د بهادرو او قهرمانو مشرانو په بشپړ ملاتړ او همکارۍ سره زما جنګیالیو د برمل څخه د اورګون او خوست په لور باندې خپل پلې حرکت ته په هغه لوړو او ژورو کښې دوام ورکړ، حاجي نواب خان او مولوي الله نواز خان زما د لښکریانو د فرد فرد جنګي روحیه او جذبه په سترګو مشاهده کوله او کله کله به یې په موسکا او خندا سره راته یادونه کوله: "یارمحمد خانه! که ستا د لښکرو دا جنګي روحیه او دا نظم او انضباط وي، موږ یقین او باور لرو چې ډېر ژر به حبیب الله په درست افغانستان کښې ماتې او شکست وخوري".

د خوست تر پولو پورې په ټوله لیاره کښې نه کوم قوم، نه کومه قبیله او نه د کوم کلي اوسېدونکي زما د لیارې خنډ وګرځېدل، ولې د خوست څخه زما د لښکرو تېرېده ستره ربړه او مشکل وو: د خوست اکثریت قومونه او قبیلې د سقاو د زوی په ځان او مال ملګري او پلویان وو او کوم وخت چې زما جنګیالي د خوست علاقې ته داخل شول نو د حبیب الله ملګرو او پلویانو لکه قاضي عبدالله خان شمل د حبیب الله غونډمشر، ګلام خان ګربز، بلند خان ځدراڼ او ملک جان خان سلېمانخېل د خپلو سړو په لاس احوال راولېږه چې: "موږ د خوست اوسېدونکي قومونه او قبیلې تاسو ته اجازه او لاره نه درکوو چې پر خوست باندې کابل ته تېر شئ، باید چې تاسو په خټ وزیرستان ته ولاړ شئ. او پر خوست باندې ستاسو تېرېده کابل ته زموږ پر جسدونو باندې تېرېده دي او تر څو چې موږ ژوندي اوسو تاسو به دا کار ونکړای شئ".

په خوست کښې د قاضي عبدالله خان شمل؛ بلند خان ځدراڼ ملک جان خان سلېمانخېل او ګلام خان ګربز تر

قیادت او قوماندې لاندې دری زره مسلح افراد وو او زما د لښکرو په وړاندې زښت خنډ و، موږ هېڅکله دا هیله او ارزو نه درلوده او نه مو دا غوښته چې په سیمه کښې قومي او قبیلوي جنګ او جګړه راولاړه کړو. زموږ اصلي هدف او مقصد د لښکر څخه د وطن نجات و نه وینې تویول او یا کورونه خرابول. څنګه چې ما عزم او اراده کړې وه چې د وزیرو، مسودو، دوړو او تڼیو په جنګیالیو به افغانستان ته د حبیب الله د منګولو څخه نجات ورکوم، د ماما زیارت په قومي غونډه او د لویانو په جرګه کښې موږ مشرانو دا پرېکړه او فیصله کړې وه، چې که په لیاره کښې کوم قوم او یا کومه قبیله او یا د کوم کلي اوسېدونکي کابل ته زموږ د لښکرو په مخکښې خنډ وګرځي او یا بې ځایه او ناحق جنګ او جګړه راباندې تحمیل کړي نو په هغه صورت کښې موږ مجبور او اړ یو چې د درست افغانستان د نجات په خاطر جنګ پیل کړو.

د خوست په شرقي خوا کښې زما څلور زره او پینځه سوه جنګیالي پوره دوولس ورځې او شپې تم شول، په سپېره ډاګ مو شپې سبا کولې او د قاقونو په پخولو مو ګوزاره کوله او هغه دوولس شپې او ورځې مو هره ګنټه د حبیب الله د پلویانو (عبدالله خان شمل؛ بلند خان ځدران؛ ګلام خان ګربز او ملک جان خان سلېمانخېل) سره د لارې د خلاصولو په خاطر خبرې او جرګې روانې وې ځکه موږ نه غوښته چې د جنګ پړه او ملامتي زموږ په طرف را واوړي نو همدا سبب و چې د بشپړې حوصلې څخه مو کار اخیستی. مولوي صاحب الله نواز خان چې د افغاني دود او کلتور او د پښتونولۍ د اصولو سره اشنایي او بلدیت نه درلود او نه یې اینده قومي او قبیلوي

دښمني غاړې ته لوېده نو هره شېبه به يې د جنګ د پيلولو خبرې کولې او د حاجي نواب خان کاکا سلا او مشوره به د افغاني او پښتني اصولو په لور وه.

د دوولسو شپو او ورځو په اوږدو کښې د حبيب الله د طرفدارانو سره زمونږ خبرو او څو ځله جرګو کومه نتيجه او ثمره ورنکړه او د هغوی دا خيال او فکر و چې مونږ به په خټ وزيرستان ته ستانه شو. په دوولسمه ورځ مونږ د لښکرو مشرانو د خوست په ختيځ لمن کښې په همهغه سپېره ډګر باندې خپلمينځي جرګه وکړه او ټولو په اتحاد او اتفاق سره داسې غوڅه پرېکړه او فيصله وکړه: "څنګه چې مونږ ټولو د ماما زيارت په جرګه کښې دا عهد او پيمان کړی دی، چې افغانستان ته به د خپلو وينو په بيه سره نجات ورکو او دا راسره مل خلورزره او پينځه سوه جنګيالي هم د خپلو کورونو څخه ددې سپېڅلي مقصد د ترسره کولو له پاره راوتلي دي تر کابل رسېدو پورې به زمونږ د لښکرو په وړاندې د حبيب الله د پلويانو لخوا څو څو ځلې لياره بنده شي، زيات قومونه او قبيلې به خندونه رامخکښې کړي. د رواني فتنې او کورنۍ جګړې څخه د وطن نجات که اسانه کار نه دی، ګران کار هم نه دی. عبدالله خان شمل او بلندٌ خان ځدران چې افغاني اصولو او پښتني دود ته غاړه نه کښېښوده ان شاءالله و تعالی چې د مېړنو زور او طاقت ته به ژر تر ژره ځانونه تسليم کړي".

د مشرانو د پرېکړې او فيصلې نه وروسته مونږ ټول پر خوست باندې د بريد او حملې په ترتيباتو بوخت وو چې زلمی خان منګل د اويا سړو سره چې اکثريت يې خپله خپلخانه او ټبر و او زمرک خان د قهرمان ببرک ځدراڼ زوی د

اتیا سړو سره د خوست په شرقي لمن کښې زمـا لښکـر تـه راورسېدل؛ د هغه دوو غـیرتي او مېړنـو پښتنـو مشـرانو سـره د خبرو او جرګې او هـم پـر خوست بـاندې د جګړې د پیل کولـو د نقشې نه وروسته، هـر یـوه (زلمـي خـان او زمـرک خـان) زمـا سره په قران قسـم او وعـده وکـړه چـې یـو د تـور ګونـد او بـل د سـپین ګوند ذمـه واري کـوي؛ هغـه دوه نومیالي افغانـان د تـور او سـپین ګونـد ذمـه واران شـوه، نـو همهغـه وو چـې سمدسـتي مـا ټولـو لښکـرو تـه د خوسـت پـه لـور د حرکـت او خـوځېدو قومـانده ورکړه او پـه دې وینـا مـې د لښکـر د فـرد فـرد رضایت ترلاسه کړ چې: مـوږ دوولـس ورځې او شپې پـه دې سپېره ډګر کښې انتظار وکېښ چې د کـابل پـه طرف زمـوږ د تګ لیاره د خـبرو او جـرګو لـه لارې فیصلـه شـي ولـې د خوسـت وګړي خـبرو او افغـاني جـرګې تـه غـاړه نـه ږدي او زمـوږ سـره جنـګ کـول غـواړي او وینـې تویـول یـې ارزو او هـدف دی نـو اوس مـوږ هـم مجبـور یـو چې د خوسـتیانو سـره خپلـه فیصلـه د ټوپـک پـه ګولـۍ سـره وکـړو او دا ګنـټه یـواځې ټوپـک دی چـې د هرکـس خپلـه برخـه بـه پـه لاس وروکـوي.

زمـا ننګیـالي د خپـل تـم ځای څخـه پـه ډېره مېړانـه او شجاعت سـره د خوسـت د شـرقي خـوا څخـه د بـازار پـه لـور وخوځېدل. تر مرکـز پـورې مـوږ یـو جزیـي مقـاومت هـم ونـه لیـد، بې لـه کـوم خنډ څخـه مـوږ ټول پـه صحـت او سلامتۍ سـره د خوسـت بـازار تـه ورسـېدو، ولـې څه شـېبه وروسـته د خوسـت د اوسـېدونکو یـوې قبیلـې چـې کونـډي نومـېده زمـا پـر لښکـرو بـاندې نـاڅاپي بریـد وکـړ او دا یـو سـخت بریـد او حملـه وه او د څلـورو خـواوو نـه رابـاندې چـاپیر شـوه او د هـر لـوري څخـه

راباندې د ټوپکو ډزې کېدې. هغوی په خپل لومړي برید کښې زما د لښکر په حساب لس تنه جنګيالي په شهادت ورسول او فرقه مشر اختي جان احمدزي وزیر په دې جګړه کښې ټپي شو، مور د خوست په بازار کښې د کونډي قبیلې په محاصره کښې راغلي وو او په هغه ګنټو کښې زما او د نورو مشرانو اندېښنه داوه چې د قاضي عبدالله شمل افراد چې شمېر یې تقریبا دری زره نفره کېده د کوندیانو په ملاتړ د جګړې ډګر ته داخل نشي؛ د خوست په بازار کښې مور په یوه سخت موقعیت کښې وو، د وزیرستان څخه د ملاتړ جنګیالیو رارسېدل هم ژر او په چټکۍ سره ناممکن وو، په جنوبي (پکتیا) کښې هم داسې افراد نه وو چې زمور په طرف جنګېدلي وای؛ سپاه سالار محمد نادر خان، کرنیل شاه ولي خان او سردار شاه محمود خان هم په ټول جنوبي کښې دری سوه طرفداران نه درلوده؛ هغوی په خپله د ناکامۍ او نا امیدۍ په دریاب کښې غرق او لاهو وو. او د ځاځیو علي خېل یې خپله پناه ګاه ټاکلې وه. او د جګړې په هر ډګر کښې یې د حبیب الله د پلویانو څخه پر له پسې ماتې خوړلې وې.

څنګه چې زما لښکریان په مېړانه او شجاعت سره جنګېدل نو هماغسې د ګونډي قبیلې جنګیالي جنګېدل او د تیاره ماښام وخت و چې زما بهادرو او تورزنو د دښمن محاصره ماته کړه او د محاصرې د ماتېدو سره جوخت په کونډیانو سخته ماته ګډه شوه او د جګړې په محاذ کښې یې په شمېر شپېته سړي ووژل شوه.

د خوست د کونډي قبیلې سره د جګړې د فراغت څخه وروسته مور خپل شهیدان او د هغوی مړي خاورو ته وسپارل،

د کونډیانو د مړو او نیول شوو افرادو ټوپکي مو غنیمت کړه او په همدې وخت کښې د اعلیحضرت غازي امان الله خان د پوځي غونډمشر نورمحمد خان ګردیزي پیغام یوه سړي مالره راوړ: نور محمد خان ګردېزی چې یو نومیالی او ننګیالی په پت مین افغان و. نوموړی د اعلیحضرت غازي امان الله خان د ځانګړو وفادارانو له جملې څخه و او په پوره یقین او باور سره ویلای شم چې د افغانستان د ټولو پوځیانو د جملې څخه هم دا پوځي غونډ مشر و چې د اعلیحضرت غازي امان الله خان په پلوی ولاړ و او که چېرې امان الله خان د غونډ مشر نور محمد خان ګردېزي په څېر په ټول افغانستان کښې لس پوځي مشران په اوږه ولاړ درلودای، بیا به نو اعلیحضرت غازي امان الله خان په خپله اجدادي خاوره او تخت پرېښودو سره نه مجبور کېده.

د کومې ورځې څخه چې د پکتیا اکثریت قومونه او قبیلې د حبیب الله په پلوي اوښتلې وې، غونډ مشر صاحب نور محمد خان ګردېزي د هغو په وړاندې د اعلیحضرت امان الله خان په طرفدارۍ خپل د مقاومت سنګر ټینګ ساتلی و. او د سقاو د زوی متابعت او حکم منل یې د ځان په شان پوځي ته عار او شرم ګاڼه نو همدا سبب و چې د خوست په چوڼۍ کښې چې د غونډ مشر صاحب پوځي مرکز و د خپلو شپېتو سړو سره د حبیب الله د پلویانو له خوا محاصره و.

اعلیحضرت غازي امان الله خان د ۱۳۰۸ لمریز کال د ثور په میاشت کښې د غزنې د ماتې نه وروسته خاوره پرېښودلې وه او د هغه (اعلیحضرت غازي امان الله خان) د فرار زیات و کم پینځه میاشتې وتلې وې چې بیا هم ننګیالي افغان غونډ مشر

نور محمد خان ګردېزي د خپلو شپېتو تنو سره چې د حبیب الله د ملګرو په تناسب او مقایسه په دریاب کښې د باران یو څاڅکی و؛ په مقاومت ولاړ وو. دا د ۱۳۰۸ لمریز کال د سنبلې د میاشتې اواخر او د ۱۳۴۸ هجري قمري کال د ربیع الثاني د میاشتې نیمایي وه چې زه او زما جنګیالي په خوست کښې د سقاو د زوی د پلویانو سره په جګړه بوخت وو. سپاه سالار محمد نادر خان د ځاځیو علي خېل د خپل کار او فعالیت مرکز ټاکلی و او دا چې ولې نورمحمد خان ګردېزي، سپاه سالار محمد نادر خان او کرنیل شاه ولي خان ته د همکارۍ لاس نه و ورکړی،.د هغه حقیقت څښتن تعالی ته معلوم.و ولې په واقعیت کښې داسې څرګندېده چې هغوی په یوه وخت کښې د یوه مقام فرمانبرداران او معاشخواره وو او یو د بل په اوړو وو؛ عاداتو او اهدافو باندې ښه پوهېدل.

د کوندۍ قبیلې د ماتې او د خوست د بازار او هغه ته د نږدې خرمه سیمو د فتح کولو څخه وروسته په سبا ورځ ما د غونډ مشر نور محمد خان ګردېزي سره ملاقات او لیدنه وکړه او کومه سلاح او جبهه خانه چې په چوني کښې د هغه ننګیالي او توریالي غونډ مشر صاحب سره وه هغه سلاح او جبهه خانه یې ماله راوسپارله چې په هغه کښې دوې عرادې توپونه هم وو او په ډېره مېړانه او افغاني غیرت سره یې د سلاح او جبهه خانې په راسپارلو کښې داسې مخاطب کړم: " پوهېږم چې زما د اولي الامر د خپلواکۍ د محصل اعلیحضرت غازي امان الله خان په پلوي او ملاتړ دې ټوپک اوړې ته اچولی دی او که داسې نه وای: نو ما به دا جبهه خانه تاله نه سپارلای او لکه د نورو په وړاندې مې مقاومت کړی و او د

خود غرضو ښځه مې خپل لېږي والي غوره کړي دي، ستا د همدې ځلور زره او پنځه سوو جنګیالیو په وړاندې به مې د مرګتر سلګۍ مقاومت اختیار کړی وای".

د خوست د اوسېدونکو د کونډېي قبیلې د تارومارکېدو او د غونډ مشر صاحب نور محمد خان ګردېزي د ملاقات او د پوځي وسایلو د راسپارلو ښځه وروسته زموږ جنګیالیو د زمرک خان ځدراڼ او زلمي خان منګل په ګډون د بنګي باغ د کلا په طرف حرکت وکړ، هلته د حبیب الله د غونډ مشر قاضي عبدالله شمل، ګلام خان ګربز، بلند ځدراڼ او ملک جان خان سلېمانخېل جنګجویان وو او کله چې موږ د بنګي باغ کلا ته نږدې شوو هغوی پر موږ باندې د نوپن او شش پن توپونو ډزې پیل کړې، دوی موږ لره مخکښې هم د جنګ کولو اعلان کړی و او دا یې راته څرګنده کړې وه چې د کابل په لور باندې زموږ په مخ لاره نه پرانیزي، نو ځکه هغه د نوپن او شش پن ډزې یې د جنګ کولو مقدمه او اغاز و، د هغوی په وړاندې د ډېرې مجبور یې په اساس موږ هم جنګ پیل کړ او دې جنګ او جګړې پوره درې ورځې او شپې دوام پیدا کړ، دواړه رفه یو د بل په مقابل کښې په مېړانه او شجاعت سره جنګېدو، زما لښکریانو دوه مشکله درلوده:

۱- د ښمن په مور چل کښې و او د خپل سنګر دفاع یې کوله او موږ د حملې او تعرض په حالت کښې وو او باید دوی مورچې مو ماتې کړې وای او یا حد اقل د مورچو ښځه مو د جګړې ډګر ته را ایستلی وای.

۲- مورږ په سیمه کښې پوره بلد نه وو، او دلته هره لوړه او ژوره راته معلومه نه وه لکه څنګه چې په کندړ او وزیرستان کښې هر لاښ او غاښ راته معلوم و.

په جنګ کښې ګلام خان ګربز سخت ټپي شو. ملک جان خان سلیمان خېل ژوندی زموږ په لاس کښېووت قاضي عبد الله او بلندخان ماتې وکړه او یو زیات شمېر جنګیالي یې زموږ یرغمل شول. د ۱۳۴۸هجري قمري کال د ربیع الثاني نولسمه نېټه وه چې زما ننګیالیو او جنګیالیو د بنګي باغ کلا د حبیب الله د پلویانو څخه فتح کړه، ملک جان خان مو د ځان سره یرغمل وساته، ولې د یو جنګي اسیر په څېر مو ورسره کړه او رفتار نه کاوه.

د خوست په جنګونو کښې حاجي نواب خان کاکا او مولوي صاحب الله نواز خان زما د لښکرو سره د مېلمنو او سیلانیانو په شان ملګري وو او زما د لښکریانو جنګي قهرماني یې په خپلو سترګو سره مشاهده کولې او کله کله به یې په فرصت او مناسب وخت کښې راللره یادونه کوله: "ستا د جنګیالیو که هم دا جنګي قهرماني وي، چې یې موږ یې په سترګو وینو، ان شاء الله چې د حبیب الله څخه د کابل نیول هم اسانه کار دی."

د درو شپو او ورځو د جګړې د بنګي باغ د کلا د نیولو څخه وروسته چې د ربیع الثاني نولسمه نېټه وه، ما او زما لښکرو د نورو مشرانو په ګډون د ځاځیو په لور حرکت وکړ، هلته د ځاځیو په علي خېلو کښې سپاه سالار محمد نادر خان د حبیب الله سره د مقابلې په وړاندې خپل مرکز جوړ کړی و، الله نواز خان او حاجي نواب خان یې موږ لره دهمدې له

پاره رالېږلي وه، چې پر کابل باندې د حملې نه مخکښې د هغه (سپاه سالار) سره وګورو او په ګډه پر کابل باندې د جنګ کولو نقشه د افغانستان د نجات له پاره جوړه کړو.

د خوست او ځاځيو په منځ کښې د ځمکنيو سيمه او علاقه وه او ځاځيو ته زما لښکرې بايد د همدې لارې نه تللې واى. ولې په ځمکنيو کښې چې تر خوست نه ځاځيو ته په نژدې واټن کښې پرته ده، د حبيب الله پلويان د ملک مير اکبر او مغول خان تر قيادت او قوماندې لاندې حاکم وو؛ په هر صورت د خوست د جنګونو د ستړيا او ستومانۍ سره- سره مې خپلو جنګياليو ته د ځمکنيو په لور د حرکت قومانده ورکړه، زما جنګيالي په ډېر شجاعت او مېړانه سره د ځمکنيو په طرف و خوځېدل او کله چې ځمکنيو ته نژدې شوو. نو مې ملک مير اکبر او مغول خان ته پيغام ولېږه چې موږ د وزيرستان د قومونو او قبيلو ښه جوړ شوي لښکر د افغانستان د نجات او سلطنت د بيا اعادې له پاره د اورګون نظامي کلا د حبيب الله د پلويانو څخه ونيوله. په بنګي باغ کلا کښې قاضي صاحب عبدالله خان شمل او د خوست په بازار کښې کونډيانو زموږ لياره ونيوله او ناروا جګړه يې راباندې تحميل کړه. د څښتن تعالى په نصرت او زما د ننګياليو همراهانو په مېړانه د بلند خان ځدراڼ، ګلام خان ګربز، ملک جان خان او قاضي عبدالله شمل درو زرو ملګرو ماتې وخوړله. د خوست د جګړې زيات افراد د ملک جان خان سلېمانخېل په شمول هم دا ګنټه زما د جنګياليو سره يرغمل دي اوس مې ستاسو غيرتي عزيزانو څخه دا هيله او اميد دى چې د تاج او تخت د غاصب له

ملګرې او پلوې څخه لاسونه پر سر کړئ: د یوه سارق او رهزن ملګري او پلوي د قوم او ځان بربادي او تباهي ده.

ملک میر اکبر او مغول خان د خوست د جنګونو او د غونډمشر قاضي عبدالله خان شمل د ملګرو د ماتې څخه پوره اګاه او باخبره وو او دا هم ورته معلومه وه چې زما د جنګیالیو واپس تګ وزیرستان ته ناممکن او د افغاني غیرت څخه لیرې خبره ده نو هم هغه وو چې ملک میر اکبر او مغول خان بې له کوم ځنډه او خنډه څخه د ځاځیو په لور د څمکنیو لار زموږ په مخ پرانیستله؛ د حبیب الله د ملګرې او پلوې څخه یې لاسونه پر سر کړه او دا یې راسره عهد او پیمان وکړ؛ چې د حبیب الله په پلوې به یو ډز هم نکوي.

د څمکنیو لیاره زما د لښکر په وړاندې بې له کوم جنګ او جګړې څخه او بې له وینو تویولو نه خلاصه شوه؛ د څکمنیو د ولس مېړنو مشرانو افغاني او پښتني دود ته غاړه ټیټه کړه. او په خپل دې نیک عمل او کړو سره یې د افغانستان په نجات کښې برخه په نصیب شوه: د ملک میر اکبر او مغول خان له خوا د لارې په خلاصولو سره موږ د علي خېلو په لور حرکت وکړ. هلته سپاه سالار محمد نادر خان د ځاځیو تر حمایت لاندې خپل مرکز جوړ کړی ؤ او یورد شپږ میاشتې وتلې وې چې په همدې علي خېلو کښې د خپلو دوو ورونو (کرنیل شاه محمود خان او کرنیل شاه ولي خان سره د یو عالم ناامیدې او پرېشانې په حالت کښې ناست و هره هڅه یې ناکامه او بې ثمره شوې وه. د جنوبي د قومونو او قبیلو د مرستې او همکارې څخه زیات ناهیلی شوی ؤ ځکه چې د هغوی اکثریت د حبیب الله په طرف دربدلي وو سپاه سالار صاحب

محمد نادر خان او د هغه ورونو له ځانه سره نه جبهه خانه درلوده او نه يې خرڅنده په لاس کښې پيسه او دارايي وه. چې د هغه په زور يې په خپل طرف خلک اړولي واى او که چيرې دا دوه څيزونه يې په اختيار کښې درلوداى: نو ضرور چې زما د څلور زره او پينځه سوه لښکريانو په څوا به يې هم لاس رااوړد کړى واى، ولې ما د هغه (محمد نادر خان) نه د يوه کارتوس او يوې پيسې مرسته او مدد ونه ليد.

زما جنګيالي د علي خېلو د غره له لارې چې مولوي الله نواز خان. حاجي نواب خان کاکا. نور محمد خان ګرديزى. زمرک خان ځدراڼ او زلمى خان سګل راسره مله وه د ربيع الثاني په شلمه نېټه د مازديګر په مهال د ځاځيو د علي خېلو علاقې ته چې محمد نادر خان پکښې مېشت وُ نژدې شوو. زما د لښکر افرادو له ډېرې خوشالۍ د هسک په لور د ټوپکو ډزې کولې: او د ډول وهونکو د ډول سره ملي سندرې او اوازونه پورته وو:

*خان او مال مو د وطن له پاره ايښي*
*ننګ له پاره کوو. کهول څه مو دي لېښي*
*سوبه. فتحه په اوږکون. خوست کښې زموږ وه*
*دښمن هر مورچل په تېښته دي پرې ايښي*

موږ ټول مشران د لښکر څخه د اتيا او سلو قدمونو په فاصله مخکښې روان وو: چې علي خېلو ته ورسېدو. سپاه سالار محمد نادر خان او د هغه ملګري زموږ د ښه راغلي او هر کلي له پاره راوتلي وو او کله چې ورنژدې شوو محمد نادر خان او ورسره مل ملګرو موږ لره په لوړ او اوچت اواز سره خو خو

ځلې هرکلی او ښه راغلی ووایه. هغوی په یوه صف کښې ولاړ وو شاته یې د علي خېلو ولس و. د هغوی د صف په ښي پلو کښې اولي کس محمد نادر خان و چې افغاني جامه یې په تن کړې وه. موږ د لښکر مشران هم په ترتیب په خپل صف کښې وو، د صف په اول کښې لومړی ما مقام درلود. زما نه وروسته انګور خان او دلبازخان او داسې په ترتیب نور مشران وو؛ حاجي نواب کاکا او الله نواز خان هم راسره په صف کښې وو، اولا ما خپل ننګیالي او بهادر ملګري محمد نادر خان او د هغه سره ملو کسانو ته ورو پېژندل: سپاه سالار د ټولو مشرانو سره د غېږې روغبړ وکړ او هر مشر یې له ډېرې خوشالی او خوښی څخه تقریبا یوه دقیقه په غېږ کښې نیولی و. ما په همهغه ګنته او شېبه د محمد نادر خان په څېره کښې یوه ځانګړې خوشالي او خوښي ولیدله.

د ماښام لمونځ مو په همهغه ځای د مولوي الله نواز خان ملتاني تر امامت لاندې ادا کړ او تر لمانځه وروسته مې خپلو جنګیالیو ته هدایت وکړ چې په همدې ځای باندې دمه وکړي، که څه د علي خېلو ولس زما د جنګیالیو له پاره د خپلو مېلمستونونو ورونه ښېرته پرېښودلي وو ولې ما او نورو مشرانو دا نه غوښته چې د وزیرو، مسودو، تنیو او دوړو جنګیالي دي په نا اشنا مېلمستونو کښې شپه سبا کړي، زما سره دا وېره او ترس و چې د دښمن په پلان او نقشه سره د ځائیو ولس زما د لښکر سره په جنګ او جګړه اخته نه کړي، نو ځکه مې غوره ګڼل چې په هغه سېېره ډاګ باندې خپله شپه سبای کړي.

د ماښام د لمانځه د ادا کولو څخه وروسته سپاه سالار صاحب محمد نادر خان خپل استوګنځای ته تشریف یووړ،

مور مشران د خپلو لښکرو سره پاتې شوو او د ماسخوتن د لمانځه د ادا کولو څخه وروسته الله نواز خان او فیض محمد د عبدالغني ګردیزي زوی د محمد نادرخان له لوري مور لره راغله او ماله یې وویل چې سپاه سالار صاحب هیله لري چې نن شپه ستاسو مشرانو سره جرګه شي، که څه مور ډېر ستړي او ستومانه وو ولې بیا مو هم د محمد نادر خان بلنه ومنله او په هغه تیاره ماسخوتن مو د مولوي الله نواز خان په ملتیا د خپلو ټوپکو سره د چونۍ په طرف چې د سپاه سالار محمد نادر خان استوګن ځای وُ حرکت وکړ، هلته سپاه سالار صاحب زمور د ښه راغلی او هر کلی له پاره لاس پر نامه ولاړ وُ.

# په علي خېلو کښې زمور مشرانو او سپاه سالار لومړۍ غونډه

کله چې مور مشران د مولوي الله نواز او فیض محمد ګردېزي په ملتیا چونۍ ته ورسېدو؛ سپاه سالار صاحب شخصاً مور خپل مېلمستون ته رهنمايي کړو؛ وروسته تور چای راوړه شو او په جرګه باندې پیل وشو. لومړۍ سپاه سالار محمد نادر خان خبرې او وینا آغاز کړه څکه چې هغه زمور کوربه او مېلمه پال وُ:

"عزیزانو! د څښتن تعالی زیات او زیات شکرونه ادا کوم، چې ستاسو په څېر مېړنو سره یې زما ملاقات مهیا او تر سره کړ او هم د احد ذات شکرونه ادا کوم. چې تاسو د قوم ننګیالي مشران د مریاني یارمحمد خان په زیار او کوښښ سره د

وزیرستان څخه چې د انګریزانو تر اثر لاندې دی، د خپل افغان ورونو او خویندو د عزت پر ځای کولو او د وطن د نجات له پاره تر علي خېلو پورې رارسېدلي یاست؛ زه د خان او نورو راسره مل ملګرو او د خپلو دوو ورونو (شاه محمود او شاه ولي) په نماینده ګۍ ستاسو راتګ ته هزار هزار هرکلی او ښه راغلاست وایم.

غیرتمند عزیزانو! کله چې د یارمحمد خان په همت تاسو د افغانستان د نجات او د روانې فتنې د ختمولو له پاره د خپلو کورونو څخه د کابل په لور حرکت راوکړ، نو ستاسو د لښکر کشۍ خبر او اطلاع مالره راورسېده همهغه وُ چې زما عزیز حاجي صاحب نواب خان او جناب مولوي صاحب الله نواز خان مې د خپل پیغام سره درولېږل او کله چې تاسو په خوست کښې د حبیب الله ملګرو (عبدالله شمل، ګلام خان ګربز. بلند ځدراڼ او ملک جان خان) ته ماتې ورکړه، هغه شېبه پرما باندې د اختر ورځ وه، ستاسو د لښکر هغه جنګیالي چې د خوست په جګړه کښې په شهادت رسېدلي دي، الله پاک دې د نبي کریم(ص) د اصحابو په کتار کښې حشر کړي، یقین او باور لرم چې د افغانستان په تاریخ کښې به د هغه شهیدانو او ستاسو هر ننګیالي نوم په طلایي خط سره لیکل کېږي.

عزیزانو! اجازه راکړئ چې څه د زړه خواله هم درسره وکړم: زما پوره شپږ میاشتې ووتې چې د جنوبي په غرونو کښې د مقدس هدف په نیت استوګن او مسافریم، په دې اوږده مدت کښې چې هر څه مې هڅه او تلاش وکړ، چې د پکتیا ولس په ځنګ کښې ودروم. د هغه هم څه نتیجه په لاس

رانغله، هغوی ماله دا ګوته نیسي چې ما ولې په خپل نوم باندې سلطنت نه دی اعلان کړی، حضرت نورالمشایخ هم زما په وړاندې د جنوبي قومونه او قبیلې راپارولې دي، د وطن د نجات له پاره د هغوی اتحاد او اتفاق ماله زیات مشکل ښکاري. دلته ډېر لاسونه راغځېدلي دي، زیات شمېر ولس د حبیب الله ملګری شو دی، دلته د اعلیحضرت امان الله په نوم یادولو سره سر له تن څخه بېلېږي، د افغانستان پېړیو پېړیو تاج او تخت یوه سارق او رهزن غصب کړی دی، زما او د سراج و الملة والدین د کورنۍ نارینه او ښځینه د هغه په لاس کښې یرغمل دي.

امان الله خان هم مجبور شو چې وطن پرېږدي، زه هم اوس ډېر ناامیده او پرېشانه یم او ناامیدي رابانديې غلبه کړې ده، اوس چې تاسو عزیزانو د افغاني ننګ او غیرت د پر ځای کولو له پاره مّلاوې تړلې دي زما امید قوي دی چې په ګډه به ان شاءالله کامیاب شو. او تاسو ننګیالي به افغانستان ته له دې تورې بلا څخه نجات ورکوئ."

د سپاه سالار محمد نادر خان د همهغه شپې له خبرو او وینا څخه مور مشرانو دا پوره درک او احساس کړه چې سپاه سالار صاحب څومره ناهیلی او ناامیده دی او څه علت دی چې هغه په شپږ میاشتو کښې د جنوبي د قومونو او قبیلو څخه څلور سوه جنګیالي هم پر ځان نه راوګرځول. نه ځدرانو؛ نه منګلو، نه ګردېزیانو او نه لوګریانو په خپل ګاونډ کښې ځای ورکړ او هر چېرې چې ولاړ نو د همهغه ځای څخه د ټوپکو په ګولیو سره راوویستل شو.

د سپاه سالار صاحب له وينا وروسته ما د وزيرو، مسودو، دوړو او تنيو د قومونو او قبيلو د خانانو، ملکانو او مشرانو په نمايندګۍ او وکالت محمد نادر خان ته د لښکرو د فرد فرد عزم او اراده د افغانستان د نجات په هيله داسې بيان کړه:
"جناب سپاه سالار صاحب! د افغان پت او عزت پر موږ باندې تر خپلو نفسونو او مالونو څخه زيات ګران دی، زموږ مرګاو ژوند د افغاني ناموس له پاره دی او همدا سبب او علت دی چې زموږ د لښکر فرد فرد په مضبوط عزم او پخه اراده سره د افغاني پت او عزت د خوندي ساتلو له پاره ملاتړلې ده؛ د استقلال په جګړه کښې چې تاسو د جنوبي محاذ اعلی قوماندان واست زموږ هم دا عزم او اراده وه او تاسو شاهد ياست چې همدې ناستو او حاضرو مېړنو مشرانو په حساب پينځه پنځوس چونۍ او پوځي مرکزونه د فرنګيانو څخه ونيول.
سپاه سالار صاحب! موږ د وزيرستان ولس د حبيب الله د حکم په ارتباط کومه پابندي نه درلوده او نه د هغه له لوري تر همدې شپې پورې موږ له تکليف رسېدلی دی، ولې پوهېږو چې هغه د افغان تاج اوتخت غصب کړی دی، افغانان په خپل مينځ کښې په کورنۍ جګړه بوخت دي او دده د فتنې په اثر د افغانستان ځوان او قهرمان پاچا خپله د نيکونو او پلرونو خاوره پرېښودلې ده.
سپاه سالار صاحب! نن چې دا ننګيالي او جنګيالي د علي خېلو په سپېره ډګر کښې خپل کاکونه پخوي؛ دوی خاص د اعليحضرت غازي امان الله خان د هغه فرمان په اعتبار راغونډ شوي دي چې د ۱۳۰۸ کال د حمل په دوولسمه نېټه په

شاجوی کښې ماله وزیر صاحب عبدالاحد خان سپارلي وو، د وزیرستان مېړني ولس او د هغوی بهادر مشرانو چې اکثریت يې په دې غونډه کښې حاضر دي خپله وجیبه د ثور په میاشت کښې ادا کړه. د امان الله خان په ملاتړ تر اورګون پورې ورسېدل، ولې افسوس چې اعلیحضرت غازي امان الله خان په غزني کښې د یو محدود شمېر کوچیانو په وړاندې مقاومت ونه کړای شو او موږ واپس بې له جنګ او جګړې څخه وزیرستان ته ستانه شوو. دوهم ځل د جوزا په میاشت کښې موږ د اورګون پر پوځي کلا باندې برید وکړ؛ کلا او اورګون مو د حبیب- الله د پوځي او ملکي ملګرو څخه ترلاسه کړل، په همهغه وخت کښې ماشخصاً د لښکر د نورو مشرانو په سلا او مشوره د حاجي صاحب نواب خان کاکا د زوی (فیض محمد) په لاس تاسو جناب ته لیک راولېږه.

جناب سپاه سالا صاحب! زما تر قیادت لاندې دا څلور زره او پینځه سوه جنګیالیو عزم او اراده کړې ده چې د خپلو سرونو په ورکولو سره به د افغان تاج او تخت د حبیب الله څخه تر لاسه کوي او د همدې ارمان تر سره کولو له پاره موږ د اورګون او خوست په جګړو کښې ډېر غښتلي او غیرتي ځوانان له لاسه ورکړه تر څو چې موږ ځانونه تر کابل پلورې نه وي رسولي او وطن ته مو نجات نه وي ورکړی، وزیرستان ته واپس ګرځېدل زموږ فرد فرد ته عار او بې غیرتي ده."

زما تر وینا او خبرو وروسته عبدالله خان مداخېل د ملک زنګي خان مدا خېل ورور وویل: "سپاه سالار صاحب! مریانې یارمحمد خان هغه څه بیان کړه چې موږ مشرانو عهد او پیمان پرې کړی دی. موږ هر یوه د خپلو کورونو څخه رخصت

اخیستلی دی، چې د افغان تاج او تخت به د غاصب څخه اخلو او یا به د کابل په شاوخوا کښې د حبیب الله سره په جنګونو کښې مرو، ولې وزیرستان ته په ښت کېده زمونږ له پاره ناممکن دي او نیکي د هغه قوم او قبیلې په برخه ده چې زمونږ د لښکرو ملګري وکړي." د سپاه سالار صاحب سره د جرګې نه وروسته مونږ د لښکر مشران خپل تم ځای ته ستانه شوو او د غونډې په پای کښې فیصله وشوه چې سبا به جرګه کوو او د وطن د نجات له پاره به یو د بل په همکارۍ نقشه سنجوو.

د ۱۳۴۸ هجري قمري کال د ربیع الثاني یو ویشتمه نېټه وه چې د سهار په لسو بجو باندې د علي خېلو په چونۍ کښې چې د محمد نادر خان مقر وُ د مشرانو غونډه جوړه شوه او په دې غونډه کښې سپاه سالار محمد نادر خان، کرنیل سردار شاه محمود خان، مولوي صاحب الله نواز خان، حاجي صاحب نواب خان، زلمی خان منګل، زمرک خان ځدراڼ، سنک خان منګل، عبدالغني خان ګردېزی، فیض محمد د حاجي نواب خان زوی، غونډ مشر صاحب نور محمد خان ګردېزی، سردار صاحب امین جان د اعلیحضرت امان الله خان ورور، فقیر محمد خان مومند د اعلیحضرت غازي امان الله خان د سلطنت په دوره کښې د جنوبي سمت د ځنګلونو رئیس، حاجي صاحب جان خان سربلند، سید خان او لیپت خان د ځاځیو د ګل غونډۍ، شېر جان تنی، سدوخان تنی، شادینخان دوړ او د وزیرو او مسودو ټولو مشرانو زما تر قیادت لاندې ګډون درلود.

د ربيع الثاني د يوويشتمې جرگه سپاه سالار صاحب په خپلو ځو لنډو خبرو سره پيل کړ، په دې جرگه کښې بيا هم محمد نادر خان خپل مجبوريت او پرېشاني مور مشرانو ته په گوته کړه، د سپاه سالار صاحب د افتتاحيه وينا څخه وروسته، د جرگې او غونډې د گډون کوونکو د اوږدو خبرو نه وروسته مور مشرانو او سپاه سالار محمد نادر خان په دې لاندينۍ پرېکړه تعهد او پيمان وکړ:

١. د ټولو قبيلو او قومونو مشران دې خپل جنگيالي وطن ته تر نجات ورکولو پورې ترغيب کوي.
٢. د ځدرانو، منگلو، ځاځيو او گردېزيانو لښکر دې بېل وي او د وزيرو، مسودو، دوړو او تنيو د جنگياليو لښکر دې بېل وي.
٣. د حبيب الله د طرفدارانو سره د جنگ او جگړې ټول امور به د مشرانو په پرېکړه او فيصله سره کېږي.
۴. د کابل تر نيولو پورې دې سپاه سالار صاحب په علي خېلو کښې ځای پر ځای وي او کرنيل شاه ولي خان دې دسپاه سالار په وکالت د لښکرو سره مل وي.
۵. د وطن د نجات نه وروسته دې اعليحضرت غازي امان الله خان سلطنت کولو ته راوغوښتل شي او يا دې دده د خېلخانې څخه وبل اهل ته سلطنت وسپارل شي.
٦. د اعليحضرت غازي امان الله خان تر راتگ پورې به سپاه سالار صاحب د سلطنت وکيل وي.
٧. حقاني علماؤ او مشايخو د طريقت ته دې په درنده سترگه او عزت سره وکتل شي.

۸. د عسکرو روزنـه او پالنـه دې پـه هغـه طریقـه سـره وشـي. ځنـګه چـې د یـو مملکـت پادشـاه د خپلـې کورنـۍ د غـړو روزنه او پالنـه کـوي.

۹. د ولـس د لوټولـو او د بـدو اخیسـتلو څخـه دې د حکومـت د مـامورینو لاس ونیـول شـي.

۱۰. هغـه کسـان چـې د وطـن د نجـات لـه پـاره د ځانونـو او مـالونو څخـه تـېر شـوي دي، حکومـت دې د هغـوی یـادښت واخلي او په تـاریخ کـښې دې ثبـت شـي.

۱۱. د وطـن د نجـات حـاصلولو نـه وروسـته دې. د نـاجي لښکـرو د شـهیدانو او معلولینـو وارثـانو تـه معاشـات او مکافـات مقرر کړه شـي.

۱۲. ځنګه چـې د افغانسـتان پـوځ پـه کورنـۍ جـګړه کـښې تباه شـوی دی او هـم یـو شـمېر صـاحب منصبـانو د خـاورې او حکومـت سـره خیـانت او غـداري کـړې ده، نـو د نـاجي لښکرو مشرانو او افـرادو تـه دې پـه پـوځ کـښې دنـدې ورکـړل شـي.

۱۳. د وزیـرو او مسـودو د لښکـرو مشـرانو د ۱۳۰۸ لمریـز کـال د ثور د میاشـتې څخـه بیـا تـر دې ګنټهو پـورې د وطـن د نجـات او د تاج او تخـت د بیـا اعـادې لـه پـاره پـه کروړونـو کروړونـو افغانـۍ لګولـې دي. د وطـن د نجـات نـه وروسـته دې هغـه لګښتونـه محاسـبه شـي او د حکومـت د خزانـې څخـه دې د لښکر مشرانو ته تادیـه شـي.

۱۴. همـدا ګنـټه دې د حبیـب الله ټولـو پلویـانو تـه عفـوه او بخښنه اعـلان شـي.

۱۵. د جګړې بنديان دې د وطن تر نجات پورې وساتل شي او د نجات تر حاصلېدو وروسته دې په عزت او احترام سره رخصت کړل شي.

د جرګې د پرېکړې او فيصلې نه وروسته سپاه سالار صاحب محمد نادر خان چې ډېر پرېشانه او نهيلی ؤ، زمونږ مشرانو څخه يو ځل بيا تعهد واخيست چې مونږ به د کابل تر نيولو پورې او د حبيب الله د طاقت تر محوه کولو پورې د دوی تر څنګ ولاړ يو، مونږ چې د افغاني ننګ او عزت د پر ځای کولو له پاره ملاوې تړلې وې، د محمد نادر خان سره مو عهد او تعهد وکړ چې د خپلو ځانونو تر قرباني کولو پورې د وطن د نجات له پاره جنګېږو. همدا د ځاځيو د علي خېلو د غره چې د سفر غره په نوم سره يادېږي جرګه کښې نادر خان زمونږ مشرانو سره په قرآن لاس ليک وکړ چې د جرګې ټولو پرېکړو او فيصلو ته به غاړه ږدي او له حبيب الله سره به هېڅکله مصالحه نه کوي. د غونډې د پای ته رسېدو څخه وروسته کله چې مونږ د لښکرو مشران د سپاه سالار محمد نادر خان له حضور څخه رخصتېدو؛ هغه (سپاه سالار صاحب) چې زما لاس په خپل لاس کښې ټينګ نيولی ؤ؛ مونږ مشران مخاطب کړو:

"عزيزانو! تاسو ته ځرګنده ده چې زه نن يو مسافر او ددې سيمې د ولس مېلمه يم. راسره څه په لاس کښې نه شته؛ چې د هغه په ذريعه ستاسو د ټولو لښکريانو د عزت او احترام پر ځای کولو له پاره مهماني وکړم، ولې د ټولو د عزت او احترام پر ځای کولو له پاره اوس زما دا هيله ده چې نن شپه تاسو معزز مشران زما سره د مسافرۍ په دسترخوان باندې کښېنئ".

مور مشرانو د سپاه سالار صاحب بلنه ومنله او د همهغه شپې ډوډۍ چې ښوروا وه د سپاه سالار صاحب سره مو په یوه دسترخوان وخوړله او په همهغه ځای کښې ما د ځاځیو د قوم غیرتي مشرانو (حاجي صاحب جانخان، سید خان، سربلند خان او لیپت خان) ته وویل: تر څو چې مور د کابل په لور حرکت کوو تاسو د ځاځیو د قوم مشران او ولس به په نوبت سره زمور لښکرو ته ټیکله برابروئ او هغه مېړنو مشرانو په ورینه ټنده سره زما غوښتنه ومنله؛ نو همهغه وو چې د ربیع الثاني په دوه ویشتمه نېټه د ځاځیو د ګل غونډۍ په لور د خپلو لښکرو سره د علي خېلو څخه وخوځېدم. د ځدرانو او منګلو جنګیالي چې یو سل او پنځوس افراد کېده د خپلو مشرانو (زلمی خان منګل او زمرک خان ځدران) سره په علي خېلو کښې پاتې شوه، په ګل غونډۍ کښې د ځاځیو مېړنو مشرانو او غیرتي کلیوالو زما د څلور زره او پینځه سوه جنګیالیو د خوراک له پاره هره ورځ پسونه او غوایه ذبح کول او زما جنګیالي یې د کاک پخولو څخه فارغ کړي وو. د ځاځیو په ګل غونډۍ کښې زمور د اوسېدو په اوږدو کښې ننګیالي او مېړني فقیر محمد خان مومند د ځنګلونو رئیس یوه ورځ او ماښام زما ټوله لښکریان مېلمانه کړه او تر حد او اندازې یې زیات په دې مېلمستیا کښې زمور مېلمه پالنه وکړه. په ریښتیا او حقیقت سره چې رئیس صاحب فقیر محمد خان مومند په خاوره او خپل ولس مین افغان ؤ، بهادر فقیر محمد خان د اعلیحضرت غازي امان الله خان د درجه اول پلویانو او ملګرو څخه ؤ، د اعلیحضرت غازي امان الله خان د بدخواهانو سره یې دښمني او د هغه له دوستانو او پلویانو سره یې یاري او

ملګري وه کله چې زما جنګيالي د ځاځيو په ګل غونډۍ کښې اوسېده، نو ما او رئيس صاحب فقير محمد خان مومند به هره ورځ يو د بل سره ليدنه او کتنه کوله او د زړه خواله به مو سره بيانول. يوه ورځ يې په خصوصي مجلس کښې چې زما په ښۍ اوږه يې لاس ايښودلی و رانه وپوښتل: "غونډمشر صاحب مريانۍ يارمحمد خانه! داسې راته ويل شوي دي: کله چې ته په شاه جوی کښې استوګن وې، يو پښتون ملنګ ستا څخه د مرستې تر لاسه کولو له پاره خواست کړی و او هغه نا اشنا پښتون تا د خپلو سړيو په بدرګه په ډېر عزت سره تر هزاره جات پورې ورساوه؛ تا د هغه بېچاره او بې کسه ملنګ څخه دا تپوس ونه کړ چې هغه هزاره جات ته د څه کار او مطلب له پاره روان و؛ د رئيس صاحب پوښتنې هک پک کړم او فکر مې وکړ چې شايد زما ملګرو رئيس صاحب ته هغه کيسه کړې وي. د څه مکث کولو وروسته مې ورته وويل: رئيس صاحب د سوالګر څخه دا پوښتنه تر اوسه هم چا نه ده کړې چې دا سوالګري د څه له پاره کوې او ما هم د پښتنې دود سره سم د هغه ملنګ څخه دا تپوس ونه کړ چې په هزاره جات کښې څه کوې؟ رئيس صاحب فقير محمد خان مومند په کټکې خندا سره راته څرګنده کړه چې هغه ملنګ په خپله دی و او هزاره جات ته د امان الله خان په پلوي د هزاره قوم د پارولو له پاره يې د سفر مطلب و، چې هغه وخت سردار امين جان هم په هزاره جات کښې و، د همدې خبرو او مجلس په ترڅو کښې رئيس صاحب فقير محمد خان مومند دا هم راته يادونه وکړه:

"مريانۍ يارمحمد خانه! زما سره د اعليحضرت غازي امان الله خان مينه او محبت په زړه کښې دی، ستا سره هم د هغه

مینه او محبت دی، دا د وزیرو او مسودو جنګیالي تـا د خپلـو کورونـو څخـه د افغانستان د نجات او د اعلیحضرت غـازي امـان الله خـان د پلـوۍ لـه پـاره را ایسـتلي دي؛ ګوره پـه دې عظیـم کار او ستر خدمت کښې د چا پـه سیاسـي لوبـه کښې رانښـکېل نـه شې او د محمـد نـادر خـان پـه عـهد او پیمـان بـاندې بـاور ونـه کـړې."

د رئیس صاحب فقیر محمـد خـان لـه یـادونې څخـه وروستـه مـا رئیس صـاحب تـه ځرګنـده کـړه: رئیس صـاحب پـه ښتـن قسـم چې دا جنګیـالي مـا د اعلیحضـرت غـازي امـان الله خـان پـه طرفداریو راروان کـړي دي کاشکې هغـه د خپلواکـۍ محصـل د همدې جنګیـالیو پــه مخکښې وای او مـوږ لـره یـې د جنـګ قومانده راکولای. د هغـه ورور سـردار امـین جـان همـدا اوس موجـود دی، ولـې هغـه مـالره ضعیـف النفس معلومېږي پـه علـي خېلو کښې زموږ مشرانو په جـرګه کښې مـا د هغـه لـه خولـې څخـه د خپـل ورور پـه برخـه کښې یـو کـلام هـم نــه واورېدئ. هغـه د سپاه سـالار صـاحب محمـد نــادر خـان پـه فرمـان دی. رئیـس صـاحب تـه بـاور او یقین ولـره کـه چېرې سـردار امـین جـان د سلطنت د وکـالت دعـوی همـدا ګنـته وکـړي نـو پـه همهغـه شـېبه به زمـا جنګیـالي محمـد نـادر خـان او د هغـه ملګري د غونـډ مشر غیاث الدین خان او غونـډ مشر عبدالله خـان شـمل پـه سرنوشـت اختـه کـړي. زه پـوره بـاور لـرم چـې زمـرک خـان ځدراڼ، زلمـی خـان منګل، نورمحمـد خـان ګردېزی اوهمـدا د ګل غونـډې مشران به زمـوږ پـه څنـګ کښې ولاړ وي. رئیس صـاحب! مخکښې لـه دې چـې زمـا او ستا لـه همـدې نیت څخـه څوک خـبر شـي،

اولاً تــه د سـلطنت د وكـالت لـه پـاره د سـردار امـين جـان موافقــه ترلاسه كړه، وروسته ټولــې چـارې زمـا پـه غـاړه دي.

د ربيــع الثــاني څلېرويشـــتمه نـــېټه وه چـــې د لښكــر مشــران د محمــد نــادر خــان پــه دعــوت د ګل غونـډۍ څخــه علــي خېلــو تــه ولاړل؛ پــه همـدې جـرګه كـښې چـې اكـثريت مشــران حــاضر وو، سـپاه سـالار صـاحب مـوږ لـره يادونـه وكـړه چـې دده ورور كرنيــل شـاه ولي خـان خـبر ورتـه رالـېږلی دی چـې د حبيـب الله پلويــان پـه درسـت لـوګر او ګرديز كـښې پـه انتظامـاتو بـاندې بوخـت دي چـې د كـابل پـه لـور د وزيـــرو او مســـودو د جنګيـــاليو د روانـــېدو مخكـښې پـر ځائيـو بـاندې بريـد او حملــه وكـړي او هــم يــې څرګنـده كـړه انګرېزي مقاماتوشـكايت كـړی دی چـې د وزيــرو او مسـودو افـرادو بـې د دوی د اجـازې څخـه لـه مريـانې يـارمحمد خـان تـر قيـادت لانـدې چـې د فرنګيـــانو حكومـــت تـــه جنـــګي مجرم دی درغلـــي دي؛ نـو كـه چـېرې واپـس د وزيـرو او مسـودو د قومونــو او قبيلــو افــراد وزيرســتان تــه راســتانه نــه شــي، مــوږ بـــه د هغـوی كورونـه د بمونـو پـه اورولـو سـره وسـوځو. د سـپاه سـالار صـاحب د وينـا نـه وروسـته بجـان خـان او انـګور خـان فرقـه مشـر محمـد نـادر خـان تـه وويـل: "سـپاه سـالار صـاحب فرنګيـانو څو څو ځلې زمـوږ كورونـه او مالونـه د بمونـو پـه اورونـو سـوځولي دي دا كومـه نـوې خـبره نـه ده پـرېږده چـې د عزيـز افغانسـتان د نجــات پـه جـرم يـو ځلـــې بيــا د وزيــرو او مســـودو د ننګيــاليو كورونــه وسوځوي او دا چـې زمـوږ جنګيـالي بـه پـه كومـه نـېټه د كـابل پـه لـور حركـت كـوي، د هغـه پرېكـړه او فيصلـه د يـارمحمد خـان پـه لاس كښې ده". د بجـان خـان فرقـه مشـر او انـګور خـان فرقـه مشـر د وينـا كولـو څخـه وروسـته پـه يـوه جملـه كـښې مـا محمـد نـــادر

خان ته په ګوته کړه: سپاه سالار صاحب! ان شاءالله و تعالی ډېر ژر به زما جنګيالي د کابل ښار په بازار او کوڅو کښې وګرځي. په همدې جرګو کښې محمد نادر خان په خپل لاس او سور رنګ سره ليکلی ليک د ټولو مشرانو په حضور کښې راکړ:

"عزيزم سيد يارمحمد خان ادم لايق و خدمت های د رست نموده. انشاءالله خدمت های او به دين و دنيا ضايع نميشود".

(محمد نادر)

په هم هغه نېټه واپس مونږ د وزيرو، مسودو، دوړو او تنيو د قومونو مشرانو د علي خېلو څخه ګل غونډۍ ته راغلو. په سبا چې د ربيع الثاني پينځه ويشتمه نېټه وه؛ د رئيس صاحب فقير محمد خان مومند سره مې وکتل او هغه د تېر خصوصي مجلس خبره مې ور په زړه کړه هغه ننګيالي او په اعليحضرت امان الله خان باندې زړه بايللي افغان په ډېر مات زړه راته وويل: "يارمحمد خانه! سردار امين جان د سلطنت د وکالت ستر کار ته ځان نه شي نيولای، هغه بې زړه شوی دی او يا دا چې د سردار يوسف خان زوی د هغه په زړه باندې د خپل قهرمان ورور په وړاندې حسد ننه ايستلی دی".

## د ګل غونډۍ څخه د علي خېلو په لور حرکت

د ۱۳۴۸ هـ ق کال د ربيع الثاني د مياشتې اووه ويشتمه او د ۱۳۰۸ هـ ل کال د ميزان د مياشتې اوايل وو، چې د سهار د

لمانځه د ادا کولو څخه مې وروسته خپلو جنګیالیو ته د کابل په لور د حرکت قوماندہ ورکړه. موږ د لښکر مشرانو د رئیس صاحب فقیر محمد خان مومند او په ګل غونډۍ کښې د ځائیو د غیرتي قوم د مشرانو څخه خدای پاماني وکړه او د هغوی د مېلمه پالنې او احساناتو څخه مې ورته تشکر او مننه عرض کړه او دا مې ورته په ګوته کړه چې ان شاءالله ورحمن ډېر ژر به په کابل کښې سره وګورو.

د ګل غونډۍ څخه زما د لښکرو حرکت د همغه ورځې د سهار په اوو بجو وشو او واپس علي خېلو ته راغلو، ځکه چې هلته د منګلو او ځدرانو د جنګیالیو مشران زموږ په انتظار وو: هلته موږ مشرانو یو ځل بیا د سپاه سالار محمد نادر خان په پیشنهاد سره جرګه شوو. په دې جرګه کښې محمد نادر خان څه شانته پرېشانه ښکارېده او ما ترېنه تپوس وکړ: سپاه سالار صاحب نن ورځ څه پرېشانه او غمګین راته ښکارې. کوم خواشینی خبر خو دې نه دی تر غوږو شوی! سپاه سالار صاحب راته څرګنده کړه: نه؛ جرنیل صاحب صحت مې ښه نه معلومېږي. د هغه نه وروسته ما د کابل په لور د خپلو لښکرو د حرکت او حملې فیصله ورته بیان کړه او ورته مې په ګوته کړه چې نن ان شاءالله و تعالی د څښتن په نصرت د کابل په لور خوځېږو: په ځائیو کښې زیات تم شوو او نور په ځائیو کښې تم کېدل بې فایدې دي نو په همدې جرګه کښې محمد نادر خان موږ مشرانو ته وویل: "زما ورور شاه ولي خان په دوبندي کښې د یوشمېر افرادو سره د حبیب الله د طرفدارانو په وړاندې مورچه دی، د هغه سره لیدنه وکړی او بیا په اتحاد او اتفاق سره پر کابل د برید او حملې نقشه جوړه

کړئ! الله نواز خان او صاحب نواب خان کاکا هم هیله لري چې ستاسو مشرانو د لارې ملګري وي".

د سپاه سالار صاحب د یادونې او پېشنهاد څخه وروسته شیر جان خان تنې، د حاضرو او غایبو مشرانو په وکالت محمد نادر خان ته ډاډ ورکړ او ورته یې روښانه کړه: "سپاه سالار صاحب! موږ الحمدلله مسلمانان او افغانان یو، د مسلمانانو او افغانانو هر کار په مشوره او جرګه وي او دا جنګیالي چې د افغانستان د نجات له پاره راغونډ شوي دي د همدې مشرانو په مشوره او جرګه سره شوي دي او په اینده کښې به هم ان شاءالله زموږ ټولې چارې په مشوره او جرګه وي، تاسو پوره ډاډ ولرئ چې د سقاو د زوی مقابله به ستاسو د ورور کرنیل شاه ولي خان سره په سلا او مشوره کوو.

# د علیخېلو څخه د دوبندي په لور خوځېدنه

کله چې غونډه او جرګه پای ته ورسېده او ملاقسیم اخند خوجلخېل د ناجي لښکر د برې او د افغانستان د نجات او د افغان ولس د اتحاد او اتفاق دعا وکړه نو موږ د لښکرو مشران د سپاه سالار صاحب محمد نادر خان په شمول د سفر د غره د چونې څخه زما د لښکر او جنګیالیو د تم ځای په لور راروان شوو. لښکر ته زموږ په رسېدو سره حاجي محمد خان د ملک ګل خان زوی، امرالدین خان او نصرالله خان د ډول په یوه اواز سره ټول جنګیالي په یوه شېبه کښې د یوه منظم جنګي لښکر په څېر په لیکو کښې ودرول او کله چې ښه ورنژدې

شوو د ډول د ږغولو سره د نجات، نجات او ناجي لښکر ناري اوچتې شوې. کله چې د وزيرو، مسعودو، دوړو او تنيو د جنګياليو ليکو ته ورسېدو، نو موږ مشران د لښکر په وړاندې ودرېد. د سپاه سالار نادر خان ښي اړخ ته موږ د وزيرو، مسعودو، تنيو او دوړو مشران ولاړ وو او کيڼ خنګ ته يې د ځدرانو، منګلو، ځاځيو مشران او د سپاه سالار صاحب خپل ملګري ولاړ وو. د ځدرانو او منګلو يو سل او پنځوس جنګيالي چې مشران يې زمرک خان او زلمی خان وو هم راورسېدل او زما د لښکر په خوا کښې ودرېدل. سپاه سالار صاحب محمد نادر خان د لښکر په ننداره سره ډېر خوښ او خوشاله برېښېده، زه چې يې ښي اړخ ته ولاړ وم، بې واکه يې زما لاس په لاس کښې ونيوئ او څرګنده يې کړه: "يارمحمد خانه! ستا مېړانه او دا ستر احسان به هيڅ‌کله زموږ فراموش نه شي."

وروسته يې په لوړ او اوچت اواز سره نورو مشرانو ته مخ ورواړاوه او د زړه له کومي يې دا تکي او جملې ويستلې: "عزيزانو! اوس مې دا پوره يقين او باور دی چې زموږ محبوب افغانستان به د حبيب الله له فتنې او شرارت څخه ډېر ژر نجات پيدا کړي". د لښکريانو، سلاح، جبهه خانې او درندو توپونو د ننداري څخه وروسته چې د ربيع الثاني اووه ويشتمه وه، ما، سپاه‌سالار صاحب او نورو غيرتي مشرانود لښکر په مخکښې د لوګر د دوبندی په لور حرکت وکړ، سپاه سالار صاحب يو څو قدمه راسره همرايي وکړه او د خدای په امان څخه په څټ خپل استوګنځي ته ستون شو.

د علي خيلو څخه د لوګر د دوبندي په لور زموږ حرکت پلی و؛ څه محدود سپرلي راسره وه چې پر هغه باندې مو

خپله جبهه خانه بار کړې وه، په اورګون او خوست کښې د حبیب الله د ملګرو او پلویانو څخه په لاس راغلي سلاح او جبهه خانه زموږ په اختیار کښې وه او هم د غونډ مشر صاحب نور محمد خان ګردېزي راسپارل شوي توپونه او نوره سلاح زما جنګیالیو د جګړې په لور انتقالوله. د منګلو او ځدرانو دجنګیالیو څخه ټوپکونه وو، هغوی نه ماشیندار او نه کوم نوپن او شش پن توپ درلود؛ حاجي صاحب نواب خان کاکا او مولوي صاحب الله نواز خان ملتاني د سپاه سالار په سپارښت زموږ د لښکرو سره ملګري شوي وو؛ چې نه یې ټوپک په اوږه او نه یې د کارتوسو کتار تر ملا و. هغوی هر یوه ته موږ ځانګړې سپرلي په اختیار کښې ورکړې وه، د معززو مېلمنو په څېرمو په ټول سفر کښې د هغوی عزت او احترام کاوه.

د ځاځیو د علي خېلو څخه تر دوبندي پورې مزل اوږدو. دا د یوه او دوو سړي د ملګرې مزل نه وو، دا د څلورزرو او پینځه سوه جنګیالیو د پلي تګ لیاره وه، لوږې او ژورې هم په لاره کښې وې، په مخکښې د داسې دښمن مقابله کول وو، چې د افغانستان په ټولو برخو باندې یې قبضه حاصله کړې وه او زما د لښکرو په وړاندې خپلو جنګیالو څخه دېوالونه درولي وو، نو ځکه ما خپلو لښکرو ته په دمه دمه سره حرکت ورکاوه او نه مې غوښته چې زما ناجي لښکر د لارې ستړي او ستومانه د حبیب الله د پلویانو سره مخامخ شي، موږ ماتې خوړلی لښکر نه وو چې په منډو منډو د غلیم له ویرې وتښتو، د لوړې او ژورې د ځوزانو او سخرو خیال ونه ساتو. زه په دې ډاډه وم چې د علي خېلو څخه تر دوبندي پورې د خوست په څېر په جنګ کښې نه ایسارېږو؛ په اورګون اوخوست کښې زما د

جنګیالیو د میړانې او بهادرۍ اوازې د حبیب الله پلویان په هر لور نا ارامه او نا قراره کړي وو. د ۱۳۰۸ هـ ل کال د میزان پینځمه نېټه وه او د ماسپښین قضا مال و چې موږ دوبندۍ ته ورسېدو، ټول ننګیالي مشران د لښکر مخکښې روان وو. زما جنګیالیو د خوښۍ او خوشحالۍ څخه د اسمان په لور د ټوپکو ډزې کولې، ډول وهونکو خپل ډولونه وهل. زموږ ښه راغلي او هرکلي ته د سپاه سالار محمد نادر خان ورور (کرنیل شاه ولي خان) او د هغه ملګري راوتلي وو.

شاه ولي خان د خپلو ملګرو په څنګ کښې د ځائیو جامې په تن کړې وې؛ مولوي الله نواز خان او حاجي نواب خان کولنګاري موږ د وزیرو، مسودو، دوړو او نیو مشران ورو پېژندلو، شاه ولي خان زموږ هر مشر سره د غېږې سترې مشي وکړه او د ډېرې خوشالۍ څخه یې موږ هر یو څو څو ځلې په رېږه او مخ ښکل کړ او زما سره په روغبړ کولو کښې یې راته وویل: "ستا د لښکرو دا د ټوپکو ډزې کول اسراف دی". دا هغه خبره وه چې سپاه سالار ماله په علي خېلو کښې کړې وه او ما د هغه په ځواب کښې ویلي وو: د چا د جیبه چې زما جیب ته راځي، د ځان سره دې یې وساتي. او تر بڼه خپه د خپلو جنګیالیو سره کښېنستم، څو یې راباندې د مشرانو مرکه وکړه. ولې دا ځل مې د هغه ورور (شاه ولي خان) ته څرګنده کړه: کرنیل صاحب ارګ او د کابل د فتح کولو کلی زما او د همدې جنګیالیو په لاس کښې ده، زما جنګیالي هغه کارتوس په لګښت رسوي، چې په خپلو وینو ورکولو سره یې ګټلي دي، نن نه ما او نه بل کوم کس ته اجازت شته چې د وزیرو او مسودو جنګیالیو ته ووایي چې د ټوپکو ډزې مه کوئ!

دا ګڼته که ورته ووایو چې د ټوپکو ډزې اسراف دی. نو د حبیب الله سره د جګړې په ډګر کښې به په کومه ژبه ورته وایو چې ډزې کول اسراف نه دی! کرنیل صاحب! دا هغه جنګیالي دي چې د ټوپک سره رالوی شوي دي او د ټوپک سره مري.

کله چې موږ دوبندي ته ورسېدو، د ځائیو د علي خیلو او ګل غونډی د سیمو په خبر مې خپله کرنلاره غوره کړه. او د لښکر ټولو غړو ته مې هدایت وکړ: پر کوم ځای چې ولاړ دي پر همدغه ځای دې خپل څادرونه وغوړوي. شاولي خان او د هغه همراهانو ته مې په ګوته کړه چې د نن شپې د ماسخوتن د لمانځه د ادا کولو څخه به وروسته په همدې ډګر د اینده پلانونو او نقشو په اړه ملاقات کوو. د دوبندی په سپېره ډګر باندې په همهغه ګڼته زه او زما تورزن ملګري پاتې شوو، الله نواز او حاجي نواب خان د کرنیل شاه ولي خان سره د هغه استوګنې ځای ته ولاړل.

# د شاه ولي خان سره لومړی غونډه او دخوشي په لور زموږ د حرکت فیصله

زما لښکرو په هغه سپېره خاورین ډګر باندې اورونه ولګول او خپل د سفر غذا (کاکونه) مو پاخه کړه؛ د ماسخوتن د لمانځه ادا کولو نه وروسته پیرې او ګزمې وټاکلې شوې، د هرې پیرې او ګزمې قومانده او اداره یوه یوه جنګیالي ته وسپارل شوه، د لښکر فرد فرد ته مو اطلاع ورکړه چې د تعین

شوې ساحې څخه په تیاره کښې بهر نه شي. د لښکر یو شمېر افرادو دمه او استراحت وکړ، ټوپکونه یې ترسرونو لاندې کړه او د لښکر څه افرادو خپل مجلس او ټوکې ټکالې په خپلو مینځو کښې کولې، په توپونو او ماشیندارو او جبهه خانې باندې مې د پیرې دنده د پاخه سن او سال جنګیالیو ته ورتر غاړه کړه. د انسجام او انتظام وروسته موږ د لښکر مشران په غونډه او جرګه بوخت شوو. زموږ د غونډې او جرګې څه شیبې نه وې تېرې شوې چې زموږ د ګزمې او پیرې د افرادو په بدرګه سره کرنیل شاه ولي خان او ورسره مل ملګري یې راورسېدل، موږ ټول د افغاني دود د پرځای کولو له پاره د هغوی د عزت او احترام په هیله اوچت شوو، غاړې مو سره ورکړې په مخونو او ږیرو مو سره ښکل کړه او د روغبړ کولو څخه وروسته مو په خپله غونډه او جرګه پیل وکړ. هر کس د جنګ او جګړې او د اینده پېښو او مسایلو په ارتباط خپلې خبرې وکړې. د لښکریانو د نظم او انضباط او د ګډوډۍ د مخنیوي په اړه نظریات او پېشنهادونه وړاندې شوه. په جرګه کښې ټولو مشرانو په اتفاق او اتحاد سره ګټورې پرېکړې او فیصلې وکړې. د جرګې غړو دا هم فیصله کړه چې په سبا به ټول د شتر ګردن له لارې د خوشۍ په لور خوځېږو. کله چې ټولو مشرانو دا پرېکړه او فیصله اعلان کړه نو کرنیل صاحب شاه ولي خان د سپاه سالار محمد نادرخان نائب او وکیل څرګنده کړه: "د حبیب الله لس زره پلویان په ګردېز کښې دي، لس زره پلویان یې په درویش کاریز کښې دي او پنځوس زره په سلاح مجهز جنګیالي یې د کابل په خوا و شا کښې په مورچو او سنګرونو کښې کښېنولي دي چې د هغه (حبیب الله)

د پوځیانو او پلویانو په وړاندې دا زموږ جنګیالي په شمار او حساب کښې نه راځي". په هغه لحظه کښې د شاه ولي خان له خبرو او ګفتار څخه ماته دا پته ولګېده چې د حبیب الله د قوت او طاقت په مقابل کښې دوی څومره وارخطا او بې زړه وو او د دوی دا بې زړه توب او وارخطايي هم دلیل او سبب درلود او هغه دا چې په لوګر کښې د سپاه سالار صاحب ماتې او شکست د جرنیل صاحب پینه بېګ د لاسه او په ګردېز کښې د کرنیل صاحب شاه ولي خان د داستان او بیان څخه وروسته ما هغه (شاه ولي) او ورسره مله ملګرو ته د هغوی د بشپړ ډاډ او اطمینان په خاطر دا څو جملې ور په زړه کړې: جناب کرنیل صاحب شاید چې پوره معلومات په لاس کښې ولرئ کله چې سپاه سالار صاحب او تاسو د حوت په میاشت کښې د فرانس ~~څخه د~~ اعلیحضرت غازي امان الله خان په ملاتړ افغانستان ته راغلاست: د حمل په میاشت کښې زه په وزیرستان کښې زما او ستاسو د ولینعمت غازي امان الله په طرفدارۍ د جنګیالیو په راغونډولو بوخت وم، کوم وخت چې تاسو په ګردېز کښې د عصمت الله خان او غونډ مشر محمد صدیق خان سره په جګړه کښې واست؛ زما همدې جنګیالیو غونډ مشر عبدالغیاث خان کوهدامني او سید محمد حسن خان چندولي په اورګون کښې تر محاصرې لاندې راوستلي وو، همدا جبهه خانه او دا څو توپونه چې اوس زما د لښکر په لاس کښې دي، د حبیب الله پلویانو زموږ په وړاندې چلول. د خوست په بازار او د بنګي باغ کلا د جنګونو شاهدان مولوي صاحب الله نواز خان او حاجي صاحب نواب خان دي، هغوی به زما د جنګیالیو د بریالیتوبونو بیانونه په تفصیل سره

تاسو ته کړي وي؛ زه نن په دې غونډه او جرګه کښې چې اکثریت معزز مشران حضور لري په ګوته کوم: د کابل تر فتح کولو پورې د وزیرو؛ مسودو، دوړو او تنیو د قومونو د جنګیالیو ننداره وکړئ او هر کله چې ددې جنګیالیو جسدونه په ځمکه ولېده؛ نو بیا دې په خپل نوبت سره هرکس او هر قوم چې وي دې وطن ته د حبیب الله د فتنې څخه نجات ورکړي، ولې زه یقین او باور لرم چې زما دا محدود شمېر جنګیالي به د حبیب الله سل زره پلویانو ته ماتې ورکوي او ان شاءالله چې هغوی به ماتې خوري د حبیب الله د پلویانو جنګي روحیه ما په اورګون، خوست او ځمکنیو کښې لیدلې ده.

جناب کرنیل صاحب! موږ لیدل چې حبیب الله توپونه، ماشینګنې، الوتکې، جبه خانه او خزانه لري. دا جنګیالي افغاني ننګ او غیرت تر دې ځایه رارسولي دي او که بالفرض موږ ټول د افغانستان د نجات په خاطر دلته تباه شو د وزیرو، مسودو، دوړو او تنیو د قومونو او قبیلو پاتې مشران او ولس به دومره بې ننګه او نامرده نه وي چې د خپلو وروڼو لاشونه د حبیب الله دسپاهیانو او د تاج او تخت د غاصبینو تر پښو لاندې پرېږدي.

زما دې سپینو خبرو او د واقعیت بیانولو د شاه ولي خان او د هغه د ملګرو زړونه ډاډه کړه. ننګیالي زلمی خان منګل، مېړنی او بهادر زمرک خان ځدراڼ، مولوي صاحب الله نواز خان او جناب حاجي صاحب نواب خان کاکا زما د جنګیالیو ټولې قهرمانی او خدمتونه چې هغوی په خپلو سترګو لیدلي وې وستایل او هر یوه د وزیرو، دوړو، تنیو او مسودو د ناجي لښکر د زیار او تکالیفو یادونه وکړه. د غونډې او جرګې کولو

څخه وروسته شاه ولي خان او د هغه ملګري خپل استوګن ځای ته ولاړه.

د ۱۳۰۸ ل کال د میزان د میاشتې شپږمه نېټه وه میاشت وه؛ چې ټول په ګډه سره د شترګردن له لارې د خوشي په لور وخوځېدو او د همغه ورځې ماسپښین قضأ ؤ چې خپل مطلوب ځای ته مو ځانونه ورسول.

## د تنګي واخجان فتحه او د حبیب الله د پلو یانو ماتې

کله چې مونږ د دوبندی څخه د شترګردن له لیارې د خوشي علاقې ته د میزان د میاشتې په شپږمه نېټه ورسېدو، زمونږ په قافله کښې د شاه ولي خان سره د ځاځیو د غیرتي قوم او د ګردېزانو څلور سوه افراد ملګري وو، چې زما د جنګیالیو په تناسب یې یوه وړه فیصدي تشکیلوله او د کرنیل شاه ولي خان په ګفته سره، ددې څلور سوه افرادو جنګي قوت او طاقت دومره نه ؤ چې د لوګر او د کابل په شاوخوا کښې د حبیب الله د اویا زرو جنګیالیو مقابله وکړي او هم ددې څلورو سوو یو شمېر ټوپکې هم د ځانونو سره نه درلودې او نه ورسره ثقیله سلاح وه. په خوشي کښې ما د خپلې پخوانۍ کرنلارې په څېر خپلو جنګیالیو ته هدایت ورکړ چې د خوشي د ولس د ابادیو څخه په لیري واټن کښې استوګنه اختیار کړئ او چاته دا اجازه نه شته چې زمونږ مشرانو بې له اجازې څخه ددې علاقې د خلکو سره راشه - درشه وکړي. د ځدرانو او منګلو جنګیالیو هم زما د لښکرو سره

واړول، شاه ولي خان او د هغه تر قیادت لاندې افراد د خوشۍ د ولس ابادیو ته د شپو سبا کولو له پاره د خپلو مشرانو سره ولاړه.

د خوشي ابادیو ته زما د جنګیالیو د ننوتو مخه چا نه وه نیولې د هغې علاقې دوډۍ مار ولس د ناجي لښکرو د فرد فرد پر مخ خپل ورونه پرانیستلي وو او کله چې شاه ولي خان او دده تر قیادت لاندې جنګیالي د خوشي ابادیو ته د شپو تېرولو له پاره ولاړه نو د هغه علاقې خانان او ملکان مونږ لره راغلل او په ورینو تندو او پوره اخلاص سره یې بلنه راکړه چې زمونږ ننګیالي د میزان د میاشتې د شپې ساړه د دوی په مېلمستون کښې سبا کړي. مونږ مشرانو د هغه دوډۍ مارو خانانو او ملکانو د نیک نیت او بشپړ افغاني اخلاص څخه مننه وکړه او خپله غوره کړې کړنلاره مو ورته په ګوته کړه هغوی زمونږ عذر قبول کړ او څرګنده یې کړه تر څو چې زمونږ لښکرې په خوشي کښې استوګنه لري د غرمې او ماښام خواړه به د دوی په غاړه وي.

په خوشي کښې مونږ دوې شپې او دوې ورځې تم شوو او په دې دوو شپو او دوو ورځو کښې مونږ ټول مشران د جګړې په نقشه او لښکرو په نظم او انتظام باندې تېرې کړې، د میزان د اتمې په سهار زما په وړاندیز ټولو مشرانو دا فیصله وکړه چې د وزیرو او مسودو جنګیالي دې په تنګي کښې د حبیب الله په ملګرو باندې برید او حمله وکړي نو د همدغه ورځې د مازدیګر په پینځه بجو باندې زه او زما د تورزن لښکر یو زر او دوه سوه جنګیالي د تنګي په لور د حبیب الله د پلویانو مقابلې ته وخوځېدو او د لښکر نوره برخه مې په خوشي کښې

د تیارسئ په حال پرېښودله ځکه موږ د وزیرو، مسودو، دوړو او نېیو مشرانو خپلمنځي دا فیصله کړې وه، چې د لښکر یوه یوه برخه دې د دښمن د قوتونو مقابله کوي او دا هغه جنګي کړنلاره وه چې موږ د وزیرستان مجاهدینو د استقلال په جګړه او د هغه نه په مابعد جنګونو کښې د فرنګیانو په وړاندې اختیار کړې وه.

په تنګي کښې د حبیب الله پلویان د سپاه سالار صاحب پردل خان او جرنیل محمد عمر خان ناصري تر قوماندې او قیادت لاندې وو او هلته یې خپلې مورچې او سنګرونه مضبوط کړي وو، توپونه او ماشین ګنې یې په خپلو مورچو کښې درولي وو. چې د هر خطر د له مینځه وړلو له پاره وربإندې مقابله وکړي، پردل خان او محمد عمر خان دوه تکړه او غښتلي جرنیلان وو چې د حبیب الله د غاصب حکومت دوې اساسي او اصلي پایې ګڼل کېدې د هغوی ماته او شکست په اصل کښې د حبیب الله د بخت د ستوري لوېدل او د حکومت زوال وٌ او د بل لوري څخه د هغه دوو تجربه کاره جرنیلانو کامیابي او بریالیتوب د ناجي لښکرو ابدي بربادي او تباهي وه. زه د خپلو یو زر او دوه سوه جنګیالیو سره چې پوره یو غونډ کېده د هغه دوو تکړه او په جنګي چارو پوه او آګاه جرنیلانو د مقابلې له پاره تنګي ته ورسېدم، په څنګ کښې مې د استقلال د جګړې قهرمانان او د غلچکي جنګونو قوماندانان وو؛ هغه یو زر او دوه سوه جنګیالي مې په دوولسو ټولګیو ووېشل او د هر ټولګي په سر مې یو یو قهرمان ټولی مشر مقرر کړ او هغه ټوله شپه مو د مورچو په ایستلو او د سنګرونو په جوړولو تېره کړه. چې د دښمن د ټوپکو او توپونو د اور څخه

په امنان واوسو. د میزان د میاشتې د نهمې د سهار پنځه بجې وې چې هاغه دوولسو قوماندانانو ته مې د جنګ او تعرض د پیل کولو قوماندہ د ډول په ذریعه ورکړه. د سپاه سالار صاحب پردل خان او جرنیل صاحب محمد عمر خان ناصري چې په سورجرنیل سره خلکو پېژاندہ په سنګرونو باندې زما جنګیالیو له هر لوري څخه د انګرېزي ټوپکو د ګولیو باران آغاز کړ. هغوی چې زموږ په وړاندې د جنګ کولو او خپلې دفاع له پاره پوره تیار او اماده وو، زموږ د برید سره یې جوخت زما د جنګیالیو په لور د توپونو او ماشین ګنو د ګولیو اورول پیل کړه، څنګه چې موږ د تعرض او هغوی د خپلو سنګرونو د ساتلو په حالت کښې وو نوزما جنګیالي قدم په قدم د هغوی سنګرونو ته نژدې کېده. د پردل خان او محمد عمر خان افراد، حبیب الله ته په ډېره وفادارۍ او صداقت سره جنګېدل، د سهار تر یوولسو بجو پورې د هغوی یو فرد هم د خپل سنګر او مورچې څخه په شا نشو، دا جګړه دومره سخته شوه: چې زما جنګیالي د سپاه سالار پردل خان او جرنیل محمد عمر خان د افرادو د مورچو پر سر ودریدل او لاس په لستوني جګړه پیل شوه. دې تن په تن جګړې پوره یوه ګنټه دوام وکړ. د غرمې دوولس بجې وې چې د زیاتې مرګاو ژوبلې نه وروسته د حبیب الله په ملګرو باندې ماتې ګډه شوه او هرکس دا هڅه او تلاش کاوه، چې په فرار کولو سره د مرګ څخه نجات حاصل کړي. جرنیل محمد عمر خان او سپاه سالار پردل خان چې د قوماندې په مرکز کښې وو او زموږ مشرانو په خبر د خپلو افرادو په څنګ کښې نه جنګېده؛ هغوی مخکښې تېښته کړې وه، زما د حبیب الله د ملګرو ماتې د

جنګ په ډګر کښې په کاروه، نه د دوی تباهي او مرګ ځکه دوی هم افغانان او مسلمانان وو.

د تنګي جګړه چې د سهار د پنځو بجو څخه پیل شوې وه او د غرمې تر دوولسو بجو پورې یې دوام وکړ، په دې جګړه کښې د حبیب الله زیات شمېز پلویان مړه او ژوبل شوه او په حساب شمېرلي پینځه سوه جنګیالي یې زما د مېړنو په لاس کښېوتل. زما د یو زرو دوه سوه ناجیانو څخه شل تنه په شهادت ورسېدل اوولس تنه سخت ټپیان شوه. ننګیالي او تورزن اختي جان زلیخېل چې د خوست په جګړه کښې ټپي شوی و د تنګي په جګړه کښې بیا د حبیب الله د ملګرو په لاس ټپي شو زما دوه نور بهادر ملګري حاجي خان ګګي خېل او میربادشاه خان چې د جګړې په لومړۍ لیکه کښې په شجاعت او مېړانه سره جنګېدل د هغه شل تنو شهیدانو تر څنګ د وطن د نجات په خاطر په خپلو وینو ورنګېدل او د هغه دوو ننګیالیو د شهادت په افتخار د کابل تر فتح کولو پورې د لښکر فرد فرد دا سندره ویله:

*مړ شوې حاجي خانه د سقاو سره په جنګ کښې*
*جنګ کښې تنها نه وې میرپاچا دې و په څنګ کښې*
*حورې د جنت مو جنازه په اوږه وړینه*
*ځای مو دی فردوس کښې د غلمانو په پالنګ کښې*

په تنګي کښې د جګړې د پای ته رسېدو او د حبیب الله د ملګرو د فرار څخه وروسته موږ خپل شهیدان دفن کړه او د زخمیانو پر زخمونو مو پټۍ ولګولې او د هغه وروسته مې د لښکر د نورو مشرانو (عبدالله جان غوند مشر، زرمین خان، اختي جان، عبدالله خان مداخیل) په سلا او مشوره دا فیصله

وکړه چې د تنګي څخه د زرغون ښار په لور وخوځېږو هغه سپرلۍ چې زموږ په اختیار کښې وې، هغه مې د خپلو زخمیانو او د جبه خانې انتقال ته وقف کړې، د تنګي د جګړې هغه پينځه سوه جنګي اسیران مو د خپل لښکر په مینځ کښې کړه او د زرغون ښار په لور مو حرکت وکړ؛ په خوشي کښې پاتې مشرانو ته مې احوال ورکړ چې بې له ځنډه او معطلي څخه د لښکرو سره ځانونه زرغون ښار ته راورسوي.

## د تنګي د فتحې څخه وروسته د زرغون ښار په لور حرکت او د محمد آغې نه د حبيب الله د ملګرو برید

د تنګي واغجان د فتح کولو او د حبیب الله د ملګرو او پلویانو د بشپړې ماتې او فرار څخه وروسته ماپه هم هغه ګنټه د راسره مل مشرانو په سلا او مشوره دا پرېکړه او فیصله وکړه چې د خپل فاتح او غالب لښکر سره د زرغون ښار په طرف چې تر خوشي کابل ته څو قدمه نژدې و حرکت وکړم. په تنګي کښې ما د حبیب الله د ملګرو ماتې او د هغوی د سنګرونو ماتول او غورځېدو، غوښتل ځکه نو ما د تنګي د مورچو د ساتنې او حفاظت له پاره یو فرد هم نه پرېښود او نه زما د جنګیالیو هغه محدود شمېر او د تعداد دا تقاضا کوله، چې د حبیب الله د ملګرو څخه د هر فتح شوي سنګر پیره او څوکیداري دې وکړي او که چېرې ما او د لښکر نورو مشرانو دا غیر معقوله او بې سنجشه کړنلاره اختیار کړې وای نو زما

جنګیالي هومره وو چې د اورګون، خوست او څمکنیو فتح شوي سنګرونه او مورچې یې ساتلي وای او د کابل په سنګرونو کښې د دښمن د اویا زره جنګیالیو په وړاندې به زه او یو څو په ګوتو شمار افراد حاضرېدو چې دا په اصل کښې د انساني عقل څخه ناچیز اقدام او پوره لېونتوب و.

کله چې موږ اراده او عزم وکړه چې د تنګي څخه زرغون ښار ته حرکت وکړو، نو په خوشۍ کښې زما پاتې لښکر او نورو جنګیالیو ته مې د خپل استاځي په لاس خبر ولېږه چې بې له ځنډ څخه زرغون ښار ته حرکت راوکړي. زه او زما د تنګي فاتح لښکر زرغون ښار ته د مازدیګر په وخت ورسېدو او په هغه اوږده لیاره کښې مېشت او استوګن ولس زموږ ښه راغلي او هرکلي ته راوتلی و، تر دې چې د کورونو د غولو او بامونو څخه د ښځو د هرکلي او ښه راغلاست اوازونه زموږ تر غوږو کېدلو. او زما جنګیالي یې نور هم د وطن د نجات او د دښمن د مقابلې په لور پارول. کوم وخت چې ما خپلو جنګیالیو ته د تنګي څخه د زرغون ښار په لور حرکت ورکاوه، دا مې ورته په ګوته کړې وه چې د منزل مقصود تر رسېدو مخکښې دې یو کس هم د ټوپک ډز نه کوي.

په خوشي کښې زما پاتې لښکریان او د نورو قومونو او سیمو جنګیالي د ټولو مشرانو او د شاه ولي خان په ګډون د همغه ورځې د ماښام په اته بجو باندې چې د ۱۳۰۸هـ ل·کال د تلې نهمه نېټه وه زرغون ښار ته پر کوم ځای چې موږ اړولي وو راورسېدل، په همغه شېبه د خوښۍ او خوشحالۍ څخه ډولونه ږغول کېدل او د ډول د اواز سره د اسمان په لور د ټوپکو ډزې او د جنګیالیو اتڼ و.

مـوږ مشـرانو يـو لـه بـل سـره د غـېږې روغبړ وكـړ او د خوشــي
خخـه رارسـېدلو مشـرانو مـالره د تنـكي د فتحـــې او د حبيـــب الله
د زبردسـتو او تجربـه كـارو جرنيلانـو (سـپاه سـالار پـــردل خـــان او
فرقـه مشـر محمـد عمـر خـان نـــاصري) د مــاتې او فـــرار مبــاركي
ووېلـه. د سـپاه سـالار صـاحب محمـد نـادر خـان وړور (سـردار شـاه
ولي خـان) پـه همهغـه لحظــه او شــبيه هومــره زيــات خـــوښ او
خوشـحاله و چـې د خپلـې زيـاتې خـــوښۍ او خوشـحالۍ څخـه يـې
مـوږ د وزيرسـتان د لښكـر مشـران څو څو ځلـه پـه ږيـــرو او مخونـــو
ښكل كړو او بـې ارادې بـه يـې خپلـو نـورو ملـګرو تـه ويـل: "زمـوږ
وړونو هېڅكلـه هـم دا هيلـه او اميـد نـه و چـې يـوه ورځ بــــه زه د
دومـره جنګيـاليو پـه ملـګرۍ پـه زرغـون ښار كـښې قـــدم ايږدم". د
سـترې مشـۍ او د تنـګي د فتحـــې د مباركـــۍ نـــه وروســـته ټولـــو
مشـرانو د تنـګي پـه جـګړه كـښې زمـــا د لښكـــر د ټپيــانو د حـــال
پوښتنـه او ګروېږنـه وكـړه او ورسـره وعـده وشـوه چــې د كـــابل د
فتـح كولـو وروسـته بـه د افغانسـتان اينـــده حكومـــت د دوی ددې
سـرښندنې او د دوی د هـر زخـــم او ټپ پـــه عـــوض كـــښې پـــوره
مكافات وركـــوي او د ټپيـانو د حـال پوښتنـې د فراغـت نـه وروسـته
په همهغـه تيـاره شـپه حـاضرو مشـرانو د تنـګي د جـګړې د اسـيرانو
ليدنه او ملاقات وكـړ او فيصلـه پـه دې وشـوه چـې پـه كـابل كـښې
د جـګړې د پـای تـــه رسـېدو وروســـته دې پـــه عـــزت او احــــترام
رخصـت كـړه شـي، د جـګړې پـه دې اسـيرانو كـښې د حبيـب الله
د پلويـانو لـوړ رتبـه پـوځي اويـا قومـي مشـر زمـوږ پــــه لاس نـــه وه
كښېوتلی، هغـــه ټول خـوار او بـېچـاره افـراد وو او د حبيـب الله لـه
لـوري پـه دې غولـېدلي وو چـې ګواكـــي د قاديـــاني اعليحضـــرت
غازي امان الله خــان د پلويـانو سـره جنـګېږي.

په زرغـون ښار کـښې ما د علـي خېلـو، ګل غونـډې، دوبنـدې او خوشې په څېر ځان او خپلــو جنګيـاليو تـه يـو ځل بيا پـر سـپېره ډګر د بـاندې شـپې تـېرول غـوره او اختيـار کـړه او د زرغــون ښار د ولـس تــر تــودو تنــدوري ډوډيــو او طعــامونو مــوږ مشــرانو د سوځېدلو او بې مالګې کـاکونو خـوړل بـهتر او د لښکـر پـه امـــن وګڼل. زه پـوره پوهـېدم چـې د زرغـــون ښار د خلکـــو هـــر ډوډې مار زما ناجي لښکـر تـه پـه اخـلاص او ورينـه تنده سـره ذ پسونو او غويو پـــه ذبـح کولـو سـره د وينـو ويـالې بـهوي. پـه همهغـه شـپه د زرغون ښار د مېړني ولـس د کليوالـو نـه يـو سـپين ږيـري او بـوډا د لس کلــن زنکـي سـره چـې د هغـه بـوډا زوی و، مـالره راغــی چـې خاورين تـــور لـوښې ورځخـه و، د سـلام او روغبـړ ادا کولـو وروسـته يې راتــه عـرض وکـړ: "ما اورېدلي دي چـې تـه خپـل يـوه لښکـري تـه هـم اجـازه نـه ورکـوې، چـې د کليوالـو پـه مېلمستونونو کـښې شپه سبا کـړي، اوس مـا ستا د جنګيـاليو د مېلمسـتا لـه پـاره پـه دې خاورينـه کـټوه کـښې څه ښوروا او وچـه مـړی چـې مـا او زمـــا دې تنکـي ماشـوم زوی د فقــر او ســوال پـه پيســو برابــره کـړې ده راوړې ده او کـه چـېرې مـا پســـونه او غويونـــه درلــودلای، نـــو د همـدې جنګيـاليو بـه مـې قربـــان او صدقــه کـړي وای". د هغـه غـيرتمن او مېلمـه پـال بـوډا چـې خپلــه عبدالرحيــم او زوی يـــې عبدالرحمــن نومـېده پـه مخکــښې مــوږ څو تنـو مشـرانو د هغـه راوړه شـوې ښوروا پـه ډېر خونـد او مـزه سـره وخوړلـه او پـه رښتيـا چـې هغـه ډېره خونـدوره ښوروا وه ځکـه پـه هغــه ښوروا کــښې د بـوډا عبدالرحيـم خـان اخـلاص او د وطـن د نــاجي لښکــر ســره مينـه او محبـت پـروت و او انـګور خـان د ټولـو مشـرانو پـه وکـالت هغه بوډا مېلمـه پـالونکي عبدالرحيـم خـان تـه وويـل: "تـره! څنـګه

چې مـو ګورې مـوږ هـم د کورونـو څخـه راوتلـي مسافران يـو او دا اوږد سفر مـو د وطـن د نجـات لـه پـاره کـړی دی، ستا همـدې ستر اخـلاص پـه عـوض کـښې مـوږ د حبيـب الله د ملـګرو څخـه دا غنيمت شوی ټوپـک عبدالرحمـن جـان تـه بخښو او کلـه چـې دی ځوان شي همدا ټوپـک بـه پـه ښه ورشـي":

ما او زمـا نـورو ملـګرو تـه د جنـګ او جـګړې اصولـو او قواعـدو چې مـوږ پکـښې پخـه تجربـه درلـوده، دا مصلحـت او اجـازه نـه راکوله چې د جنـګ او جـګړې پـه حـالت کـښې خپـل جنګيـالي د ټوپکـو او کارتوسـو سـره د يـوې ګولـې ډوډۍ او تـاوده وريـن بړستن له پـاره د ولـس پـه مېلمستونونو او يـا کورونـو کـښې خـواره واره کـړو، د دښمـن سره د جنګ پـه حـالت کـښې د لښکريـانو خـواره واره کـېدل او يا پــه نرمــو او پســتو پـالنګونو بـاندې د مشـرانو ويـده کـېدل نــه د جنــګ اصــول دي او نــه د دارنــګه کړنـلارې پـه اختيـارولو سره د غليم مقابلـه کـېدای شـي او نــه د يـوه لښکـر قـايد او قوماندانـانو تـه دا مناســب او لايــق دي چــې دښمــن مخــامخ ورتــه مــورچــه او ســنګر نيــولی وي او دده جنګيـالي پـه پـردو کورونـو کـښې خـواره واره وي، پـه يـوه داسـې حالت کښې د دښمـن د نـاڅاپـي بريـد او حملـې پـه شـپو کـښې د اواره لښکريـانو راټولـول او راغونـډول، انسجام او انتظـام ورکـــول او بيـا د وظـايفو ټاکـل هـر قـايد او قومـاندان تـه هـر څومـره کـه مېړنـی او پـه جنـګي امـورو اګاه او بـاخبره وي، مشـکل او ناشـونی کـار دی. د دښمـن سـره جنـګ او جـګړه نـه ټوکـې او نــه ټکـالې دي او نه په ټوکـو او ټکـالو سـره دښمـن تـه مـاتې ورکـول کـېدای شـي. پـه وزيرسـتا کـښې پـوره اووه مياشـتې زمـا هـڅه او تـلاش دا نه و چـې د وزيـرو او مسـودو ننګيـالي د خپلـو کورونـو څخـه رابـهر

کړم، د اولادونو او مېرمنو څخه يې بېل کړم، د خوارۍ او مزدورۍ څخه يې واچوم، د خوست، ځائيو او لوګر نندراره ورباندې وکړم ولې زما ټول هاند او کوښښ دا و چې د هغوی په قوت او طاقت سره وطن ته د حبيب الله د فتنې څخه نجات ورکړم او ددې عظيم هدف په خاطر ما هم خپل کور او کهول پرېښودلی و. د اوربدو څخه په غزني کښې د خپلواکۍ د محصل اعليحضرت غازي امان الله خان د بې شمېره کندهاري جنګياليو ماتې او شکست د يو څو بې ټوپکو کوچيانو له لاسه د هغه د لښکر د قوماندانانو خپل غفلت او د جنګ نه تجربه وه او هم د هغوی خپلمنځي اختلافات او يو پر بل باندې برتري او فوقيت غوښتل وو، الحمدلله چې زما په جنګياليو کښې دا نخښې او نښانې نه ليدل کېدې او نه زمونږ مشرانو سره د مقام او درجې غوښتلو خيال او فکر و. د وزيرو، مسودو، دوړو او تنيو د قومونو او قبيلو ټولو غيرتي مشرانو په بشپړ اخلاص او صداقت سره د لښکر قومانده او قيادت ما لره سپارلی و.

هغه شپه چې سبا لره يې د ۱۳۰۸هـ ل کال د ميزان د مياشتې لسمه نېټه وه، زما د وياړ او سرلوړي جنګياليو د ځدرانو او منګلو د سرتېرو په ګډون د زرغون ښار په سيمه کښې پر هغه سېېره ډګر باندې سهار کړه، چې د تنګي د فتحې نه وروسته مونږ پر هغه ډګر اړولي وو. هغه د ميزان د مياشتې د سړو او يخنيو شپه چې زما جنګياليو او د لښکر بهادرو مشرانو د زرغون ښار په علاقه کښې پر هوار بيابان او وچه صحرا باندې په يوه څادر کښې سبا کوله، په همهغه شپه شاه ولي خان شخصا د خپلو نورو ملګرو (حاجي نواب خان لوګري، عبدالغني خان

ګردېزي او الله نواز خان ملتاني) سره د ملک عبدالقادر خان علیخېل پر ځای باندې مېلمه و او دده ځاځي او ګردیزي جنګیالي د دوی په قوماندې او هدایت سره د زرغون ښار د خلکو په مېلمستونونو باندې وېشل شوي وو او د هغو دا جنګي کړنلاره زموږ د جنګي کړنلارې د فکر او مزاج سره موافقه نه وه او شاید دا علت او سبب و چې په ګردېز کښې د حبیب الله وفادار (محمد صدیق خان) ورباندې غلبه حاصله کړه او زموږ تر رارسېدو پورې د دوبندی څخه یو قدم د کابل په لوري وړاندې نه شوه او چېرې چې د حبیب الله د پلویانو سره مخامخ شوي وو، هلته یې ماتې او شکست خوړلی و.

د میزان د میاشتې د لسمې د سهار سپېدې نه وې چاودلې چې د محمد اغې او نورو پلونو څخه د زرغون ښار په طرف باندې د توپونو، ماشینګنو او ټوپکو ډزې پیل شوې او داسې خیال او اټکل کېده چې د حبیب الله ملګرو او محلي پلویانو د ډېر قوت او طاقت سره زموږ د مقابلې او محوه کېدو له پاره د زرغون ښار په خوا باندې حرکت راکړی دی او په همهغه ګنته دا اندېښنه په زړه او فکر کښې راوګرځېدله چې د حبیب الله په محاصره کښې رانښکېل شوو او د خوست محاصره رایاده شوه، موږ چې شپه له یخنی څخه په ارامه نه وه تېره کړې. د سپېدو د چاودو مخکښې د توپونو، ماشین ګنو او ټوپکو ډزو د تنګي د جګړې ستړیا او د شپې یخني رانه هېر کړه. او سمدستي موږ ټول حاضر مشران سره راغونډ شوو او فیصله وشوه چې بې له ډول رغولو دې د افرادو په ذریعه لښکر ته د تیار سئ خبر او قوماندې ورسول شي، ما خپلې ټولې لښکرې په نیمه ګنته کښې د ورځې د اینده پېښو او خطرونو او

د دښمن د پوره مقابلې له پاره تیارې او اماده کړې او جنګیالي مې د څلورو خواوو جګړې او مقابلې ته وګومارل؛ زما د لښکر هر جنګیالي خپل ټوپک پر اوږه کړ او د کارتوسو کتارونه یې تر ملا وتړل او هغه ماشینګنې او توپونه چې د اورګون په جګړه کښې موږ د حبیب الله له ملګرو عبدالغیاث خان غونډ مشر او محمد حسن خان کنډکمشر څخه تر لاسه کړي وو، هغه هم زما د جنګیالیو د دښمن د مقابلې او د جګړې ډګر ته د وړلو له پاره سمبال او اماده کړه.

زما جنګیالي د حبیب الله د پلویانو او پوځیانو د مقابلې په وړاندې تیار وو او راسره په لاس کښې جبهه خانه هم د جګړې محاذ ته د وړلو له پاره په اسونو او کچرو باندې بار وو، چې سردار صاحب شاه ولي خان د ملک عبدالقادر خان علي خېل د مېلمستون څخه پر اس سپور د خپلو نورو ملګرو عبدالغني خان ګردېزي، مولوي صاحب الله نواز خان، حاجي صاحب نواب خان، سنک خان منګل، فیض محمد د عبدالغني خان زوی، ملک جانخان ځاځي سره زما د لښکر تم ځای ته راغلل، چې د تېري تیارې د توپونو او ماشیندارو د ډزو په اړه زموږ مشرانو سره وږغېږي. ولې دوی ته دا پته نه وه چې د راتلونکو ټولو خطراتو او د هغه سره د مقابلې په خاطر په همهغه صبح کاذب ما خپل جنګیالي تیار او اماده کړي وو او کله چې هغوی زما د لښکرو تیارسئ او په إسونو او کچرو باندې بار شوې جبهه خانه ولیده؛ نو زموږ د جنګي نظم او انسجام په ارتباط هک پک پاتې شوه او شاه ولي خان خپلو ملګرو ته مخ کړ او ویې ویل: "همدا دي د جنګ اصول او قواعد".

د مشرانو د روغبړ او احوال پوښتنې څخه وروسته سردار صاحب شاه ولي خان د محمد اغې له لوري نه د ډزو په اړه یادونه وکړه: "عزیزانو! د حبیب الله ملګرو تنګی واپس نیولی دی، محمد اغې ته یې زیات پوځیان او ملکي پلویان زموږ د مقابلې له پاره رالېږلي دي داسې اورېدل کېږي چې د درویش کاریز قواو ته یې هدایت کړی دی چې د هغه لوري حمله وکړي او د جګړې د اورېدو او زموږ د مقاومت او ایستادګی په صورت کښې ممکن د ګردېز قواو او د هغه د نورو سیمو پلویان د جنګ محاذ ته راودانګي او دایې نقشه ده چې موږ په همدې زرغون ښار کښې محاصره کړي". د مشرانو د اورېدو خبرو او په لوګر کښې د حبیب الله د پوځیانو او پلویانو د مقابلې په اړوند، لوی مجاهد ملک ډنډ خان مداخېل سردار شاه ولي خان او نورو معززو مشرانو ته په ګوته کړه: "د محمد اغې له طرف څخه د توپونو او ماشیندارو د ډزو په اورېدو سره موږ مشرانو په همدې سپېره او اغزن ډګر کښې دا پرېکړه وکړه چې د حبیب الله د ملګرو د مقابلې له پاره دې ټول جنګیالي تیار شي. اوس زموږ سرتېري اماده دي چې د دښمن مقابله وکړي او زه په خپلو سرو باندې چې د یار محمد خان په قوماندې او قیادت راروان شوي دي دا باور لرم چې د حبیب الله د ملګرو څخه به د جنګ په میدان کښې یو قدم هم په شا نه شي".

په هغه سپېره ډګر کښې زموږ مشرانو تر مینځ څه خبرې کښته او پورته شوې. عبدالغني خان ګردېزي او سردار شاه ولي په غیر مستقیم ډول سره په تنګي کښې د حبیب الله د پلویانو د بیا څرګندېدو پړه د وزیرو او مسودو د جنګیالیو په

مشرانو اړوله. او همدا ټکی و چې په هم هغه حساس وخت کښې چې د دښمن تر محاصرې لاندې راتلو، نژدې وو چې زمونږ او د دوی تر مینځ د همکارۍ او ملګرۍ خط او برید وشي، ولې له نېکه مرغه نورو مشرانو (زمرک خان ځدراڼ، زلمی خان منګل، سنګ خان منګل، شېر جان تنی او کوکو خان) چې د قوم او وطن په چارو پوه او اګاه وو، خبره سره کړه. عبدالله جان غوندمشر احمدزی وزیر چې په خوی او طبیعت سخت او یو زیږ غرنی مجاهد پښتون و؛ شاه ولي خان او عبدالغني خان ګردېزي ته داسې په ګوته او څرګنده کړه: "مونږ خو په خپله خوښه دا لښکر د افغانستان د نجات له پاره را غونډ کړی دی؛ نه د چا عسکر یو او نه چا یوه پیسه راسره منلې ده، چې د هغه له پاره وجنګېږو، په تنګي کښې مونږ سپاه سالار پردل خان او جرنیل محمد عمر خان ته غونږ پېچ ورکړ، د حبیب الله هر ملګری زمونږ په نوم اورېدو سره زیږدي او که څوک زمونږ په جنګیالیو داپړه اچوي چې د تنګي په نیولو سره هغوی ولې تنګی بې له محافظینو پرېښود اوس دې هغه کسان چې پر مونږ پړه اړوي؛ تنګي ته ولاړ شي، لومړی دې د حبیب الله پلویان له سنګرونو څخه ولاړ کړي او بیا دې د تنګي پیره داري وکړي".

څنګه چې د یوه پلو نه د حبیب الله د پلویانو د جرنیلانو او کرنیلانو په درویش کاریز؛ تنګي واغجان او محمد اغه کښې دا هڅه اوتلاش کاوه چې مونږ په زرغون ښار کښې تر جنګي محاصرې لاندې راولي او د کابل سنګرونه زمونږ د وړاندې تګ په وړاندې قوي او مضبوط کړي، له بل لوري څخه د جنګ د کړنلارې په ارتباط زمونږ مشرانو په خپل مینځ کښې څه

اختلاف و، د سردار صاحب شاه ولي خان او د هغه د نږدې ملګرو دا کوښښ و چې د کابل په سنګرونو او مور چو کښې د ټولو جنګياليو قيادت په خپل نوم سره ونوموي او مور د وزيرو، مسودو، تنيو او دوړو د قومونو او قبيلو مشرانو هغه لره غاړه نه ايښوده، ځکه مور د استقلال په جګړه کښې دا ترخه تجربه حاصله کړې وه، کله چې مور د وزيرستان مجاهدينو د خپلو وينو په تويولو سره د فرنګيانو څخه پينځه پنځوس چونې او مرکزونه ونيول په هغه پينځه پنځوس چونيو او مرکزونو کښې د مجاهدينو د يوه قايد او يا د قوم د مشر نوم د افغانستان حکومت په خوله ياد نه کړ او نه کوم د قوم مشر د خپل جهادي خدمت په اړه د افغانستان د حکومت څخه کومه تحسين پانه تر لاسه کړه او د ټل پوځي چونې چې مجاهدينو ونيوله او بيا يې د سپاه سالار صاحب محمد نادر خان څخه هيله وکړه چې په خپل قدم سره چونې په رسمي توګه فتح کړي او بيا د هغه فتح شوې چونې فتح د محمد نادر خان په نوم سره ونومول شوه، ولې دا ځل مور مشرانو د هغه تېرې تجربې تکرار نه غوښت، ځکه نو زمور او د سردار صاحب شاه ولي خان تر مينځ څه اختلافات وو.

زما د جنګياليو تعداد د هر قوم د جنګياليو تر تعداد زيات و او زمور هر فرد انګريزي ټوپک د خپل ځان سره درلود، د نورو قومونو جنګي افراد زمور د جنګياليو د شمېر او جنګي وسايلو په پرتله په درياب کښې د باران يو څاڅکي و، په زرغون ښار کښې د ټولو قومونو او قبيلو جنګي افراد په دې حساب وو:

۱. د وزیرو او مسودو د قومونو جنګیالي څلور زره او پينځه سوه افراد، چې د قوم مشرانو، خانانو او ملکانو د لښکر قیادت او قوماندې مالره سپارلې وه.
۲. د تنیو د بهادر او غښتلي قوم جنګیالي لس کم سل تنه د سدو خان تني او شېر خان تني په مشرۍ او زما تر قیادت او قوماندې لاندې.
۳. د دوړو د تورزن قوم جنګیالي دوه سوه افراد د شادینخان دوړ په مشرۍ او زما تر قیادت او قوماندې لاندې.
۴. د منګلو د غیرتي قوم جنګیالي اویا تنه د زلمي خان منګل په مشرۍ، چې د خوست په جګړه کښې یې زموږ سره ملګري حاصله کړې وه.
۵. د ځدرانو د سرتېري قوم جنګیالي په حساب شمېرلي اتیا سړي د ننګیالي زمرک خان ځدران په مشرۍ چې په خوست کښې زموږ سره یو ځای شوي وو.
٦. د ځاځیو د مېړني قوم او د ګردېز د شجاع ولس جنګیالي څلور سوه افراد د سردار شاه ولي خان، عبدالغني خان ګردېزي او جانخان ځاځي تر مشري او قیادت لاندې چې په دوبندي کښې زموږ د لښکر په رسېدو سره زموږ ملګرې شوه.
۷. د سلېمانخېلو د قوم د موسی خېلو د قبیلې افراد دری سوه جنګیالي د کوکو خان او محمد جانخان په مشرۍ د تنګي د نیولو څخه وروسته په زرغون ښار کښې زموږ سره همراه شوه.

په همغه ورځ زموږ مشرانو د اوردو خبرو او بیانونو څخه وروسته په اتفاق دا پرېکړه وشوه، چې زما جنګيالي دې په تنګي واغجان او محمد اغه کښې د حبيب الله د پلويانو سنګرونه مات کړي.

## په تنګي او محمد اغه کښې د حبيب الله د ملګرو ماتې

د مشرانو د اوږدو خبرو او د ځينو اشخاصو سره د مزاج او طبيعت د تريخوالي څخه وروسته د ټولو فيصله او پرېکړه په دې شوه؛ چې د وزيرو او مسودو جنګيالي دې په محمد اغه او تنګي کښې د حبيب الله د پلويانو مقابلې ته ورودانګي. او دې پرېکړې او فيصلې درې علتونه او دلايل درلوده:

اولا: د وزيرو او مسودو جنګيالي په جنګ کښې راستر شوي افراد وو. د جنګ په اصولو او قواعدو د بل هر قوم تر افرادو ښه بلد او اشنا وو او په ښنان ويشتلو کښې هرکس دومره ماهر او رسېدلي وو چې په درې سوه قدمه سره ستن هم تري نه خطا کېده.

ثانيا: د محمد اغې څخه د زرغون ښار په طرف د ډزو په اورېدو سره زما ټول جنګيالي د تيارسئ په حالت کښې او د حبيب الله د ملګرو مقابلې ته پوره چمتو شوي وو او د نورو قومونو افراد د زرغون ښار د ولس په مېلمستونونو کښې مېشته وو، د هغوی راغونډېدو او بيا جنګ ته د هغوی چمتو کولو زيات وخت غوښته.

ثالثا: زما د لښکرو شمېر تر هرچا زيات و او هم قومانده يوه وه، په تنګي او محمد اغه کښې د حبيب الله مقابله او بيا د هغه د پوځيانو او پلويانو ماتې د درى اويا څلورسوه افرادو تر واک وتلې خبره وه او چېرې چې بيا څو قوماندې او قيادتونه او د مختلفو قومونو او قبيلو سرې په يوه لښکر کښې سره روان وي.

د مشرانو د فيصلې او غونډې نه وروسته مې حاجي محمد د ملک ګل خان زوى ته هدايت ورکړ چې ډول وهونکو ته وظيفه ورکړي چې د لښکريانو د حاضرولو له پاره ډول وږغوئ؛ څرنګه چې زما جنګيالي تيار او اماده وو، د ډول د اواز په اورېدو سره د يوه منظم او منسجم حکومتي پوځ په څېر زمونږ مشرانو په وړاندې ودرېدل او په دې څو ټکو کښې مې هغوى لره د سنګر په لور د حرکت کولو نيت بيان کړ: "زما عزيزانو! نن مونږ خپل ځانونه د کابل دروازې ته رارسولي او کابل ته د ننوتلو په لياره کښې د تاج او تخت غاصب ډېر پيره داران ګومارلي دي او نه پرېږدي چې ستاسو په څېر جنګيالي مېړونه وطن ته له دې فتنې څخه نجات ورکړي؛ ما او ستاسو نورو غيرتي مشرانو دا پرېکړه او فيصله وکړه؛ چې تاسو د وزيرو، مسودو؛ تنيو او دوړو جنګيالي به دا تړلې دروازه د نورو په مخ پر خپل همت او مېړانه سره پرانيزئ او ان شاءالله ليرې نه ده چې د کابل ښکلي او ګلالي ښار ته به په خپل زور او قوت سره ننوځو او د حبيب الله په لاس غصب شوى تاج او تخت به خپل اصلي مالک او مستحق وارث (اعليحضرت غازي امان الله خان) ته سپارو او دا هغه خبره ده چې مونږ او تاسو د ماما په زيارت کښې ورباندې عهد او موافقه کړې ده.

عزیزانو! نن د حبیب الله د ملګرو او پلویانو مقابلې ته د هغه جنګیالیو د تلو وار او نوبت دی چې د تنګي واغجان په جګړه کښې یې ګډون او برخه نه درلوده او د تنګي د تېرې جګړې بهادران دې همدلته دمه وکړي.

• د محمد اغې او تنګي په لور ما (یارمحمد مریانی)، دلباز خان، انګور خان، ملک دندخان، بجان خان، نصرالله خان، میرو خان، زرمین خان، ... او سدو خان تنې له دوو زرو جنګیالیو سره حرکت وکړ. جلات خان، اختي جان خان، اصل خان، ګل خان. عبدالله جان، رمضان خان مسود. شېر جان خان تنی او سادینخان دوړ مو په زرغون ښار کښې د ساتې لښکریانو د انتظام او سرپرستی له پاره پرېښودل خو د ضرورت او احتیاج په حالت کښې زموږ د امداد او مرستې له پاره تیار او اماده وي او هم شاه ولي خان ژمنه وکړه چې زموږ په حرکت سره به د نورو قومونو جنګیالي د خپلو مشرانو تر قیادت او قوماندې لاندې د درویش کاریز د محاذ په لور لېږي.

د خیر او فتحې د دعا او د نورو قومي مشرانو او جنګیالیو څخه د خدای په امانی وروسته د همهغه ورځې د سهار په لسو بجو ما د خپلو دوه زره تورزنو سره د حبیب الله د پلویانو د ماتې او شکست په نیت د محمد اغې په طرف حرکت وکړ او داسې اورېدل کېده چې په تنګي کښې د سلطنت د غاصبینو د شکست سره، حبیب الله په خپله د دوو غونډو پوځیانو سره ځان محمد اغې ته د مقابلې له پاره رارسولی دی او دا یې هوډ کړی دی چې د اورګون او ځاځیو په شمول درست جنوبي د اعلیحضرت غازي امان الله خان د طرفدارانو او هوا

خواهانو ښځه پاک کړي، د وزیرو او مسودو جنګیالي په لوګر کښې نیست او نابود او کورونه یې په وزیرستان کښې د پرنګیانو په لاس بمباري کړي

محمد اغې ته زما د جنګیالیو په نژدې کېدو سره د حبیب الله پلویانو د توپونو او ماشین ګنو ګولی زموږ په لور اورولې او دایې رالره څرګندوله چې په محمد اغه کښې د دوی زیاتو پوځیانو د کابل د حفاظت له پاره سنګرونه نیولي دي په رښتیا هم که چېرې په همغه ګنټو او شپېو کښې ځینو ډارن او بې ارادې افرادو د حبیب الله د پلویانو د توپونو او ماشین ګنو د باروتو دودونه په سترګو لیدلي وای؛ ضرور چې خپل جنګیالي به یې دښمن ته بې له قاید او سرپرست ښځه پرېښودلي وای او په خپله به له ډګر ښځه په پټه تښتېدلي وو. د همغه ورځې په شپه زما جنګیالیو د حبیب الله د پوځیانو په وړاندې په ډېرې نژدې فاصلې سره خپلې مورچې او سنګرونه ونیول او دا فاصله تقریبا تر ځلور او پینځو سوو قدمه ښځه زیاته نه وه او له دریو خواوو ښځه مې د حبیب الله د پوځیانو په وړاندې د جنګ جبهه وپرانیستله، چې د ماتې او شکست په حالت کښې یوازې کابل نه د په ښت کېدو لپاره خلاصه وه. موږ د لښکرو مشرانو هر یوه خپله دنده په غاړه واخیسته انګورخان، نصرالله خان او ما (یارمحمد مریاني) د لښکر د قاعدې اداره کوله، کیڼ پلو ته ملک دند خان، بجان خان او مېرو خان د جنګیالیو جنګي اداره په لاس کښې لرله او د لښکر د ښي اړخ انتظام او قوماندې د دلباز خان، زرمین خان او سدوخان تني په لاس کښې وه او په دښمن باندې په یو ځل د برید او د لاس په

لستوني د جنګ علامه مو هم سره وټاکله او دا پرېکړه وشوه چې دا قومانده باید د لښکر د قاعدې څخه صادره شي.
زما د ویاړ او سرلوړی جنګیالي چې توله شپه د مورچو او سنګرونو په جوړولو بوخت وو او په یو ستړیا سره بله ستړیا په مخکښې ورته راتله. د همهغه شپې په تیاره سهار چنې د ۱۳۰۸ ل کال د میزان د میاشتې یوولسمه نېټه وه، قومانده مې ورکړه چې له دریو خواوو څخه دې حمله پیل شي. او دا قومانده د ډول په رغولو سره وه. او دا د جنګ د پیل کولو هغه نخښه او علامه وه چې موږ مخکښې ټاکلې وه او ډول وهونکو به دری دری ځله په وقفه سره ډول رغاوه، د حبیب الله پوځیانو د ښکار کلا څخه چې اوس د موسی خان جرنیل په نوم سره یادېږي پر موږ باندې د درندو توپونو او ماشین ګنو په ذریعه ډزې کولې، چې د باروتو لوګی یې زموږ د مورچو پر سر ګرځېدل او خاورې یې زموږ په سنګرونو کښې پاشل کېدلې.
ولې دا راته څرګندېده چې د دوی جنګیالیو یو قدم هم د خپلو مورچو څخه نه دی اوچت کړي. د دښمن د توپونو او ماشینګنو په مقابل کښې موږ هم د انګرېزي ټوپکو د استعمالولو په څنګ کښې د هغه توپونو او ماشینګنو څخه استفاده کوله چې مو د خپلو ځانونو سره د اورګون او خوست څخه راوړي وو. پوره دری ګنټې زموږ او د حبیب الله د ملګرو تر مینځ جګړه په همدې څېر روانه وه، هغوی د ښکار کلا او موږ د خپلو مورچو څخه یو پر بل باندې ګولی اورولې؛ د لمر په راختو سره موږ د خپل جنګ کړنلاره وګرځوله؛ خپلو جنګالیو ته مې هدایت وکړ چې د دښمن د مورچو په وړاندې ورو ورو وخوځېږي، ځکه د حبیب الله ملګرو غوښته چې موږ

همدلته په جنګ بوخت وساتي او کومه جبهه خانه چې زمونږ په لاس کښې وه، هغه په همدې جګړه کښې راتمامه کړې. د دوی ختې ته غاصب حکومت ولاړ و، د درست هیواد خزانه، جبهه خانه او غله د همدوی په لاس کښبوتلي وو او زمونږ په لاس کښې دومره وسایل نه وو چې د دښمن سره د اوږده جنګ او زیات وخت له پاره وربانديږ وجنګیږو د خپلواکي محصل وطن پرېښودلی و: سپاه سالار محمد نادر خان سلو کسانو ته د تورې ښوروا په ورکولو سره قدرت او طاقت نه درلودئ زیات و کم شپږ میاشتې کیدې چې د وزیرو او مسودو د غیرتي قومونو بهادران د افغانستان د نجات په خاطر د ژوند د نورو کارونو څخه لاس پر سر وو، خپل کلي او کورونه یې زما د ملګرې په هیله پرېښودلي وو، فرنګیانو هم هره ګنته زما د جنګیالیو وارثین په وزیرستان کښې تهدیدول. ځکه نو د جنګ د اوږدېدو په صورت کښې ما زیات خطرونه په سترګو لیدل.

زما جنګیالي د قوماندې سره سم له دریو خواوو څخه قدم په قدم د حبیب الله د ملګرو د مورچو او سنګرونو په لور روان وو او د دوی د همدې خوځېدو د حفاظت له پاره مو د دښمن په مورچو باندې د توپونو او ماشینګنو ګولی اورولې، څرنګه چې د حبیب الله پلویانو خیال او تصور کړی و، چې په محمد اغه کښې جنګ د اوږده مدت له پاره جاري وساتي، د هغوی همدا مکر مونږ په خپله جنګي نقشه سره خنثی کړ. زمونږ د نوین توپ د ګولی اور د دوی په جبهه خانه باندې ولګېد او څنګه چې د محمد اغې په جنګ کښې حبیب الله په خپله زمونږ په وړاندې جنګېدئ او د پوځیانو جنګي قومانده یې په لاس کښې درلوده. له نیک مرغه زمونږ د نوین توپ دوهمه

ګولۍ د حبیب الله د اس په مخکښې ولګېده چې د همدې سره جوخت ورباندې ماتې او شکست ګډ شو او په فرار سره د کابل سنګرونو ته په خټ شول او کله چې د دوی له سنګرونو څخه مور د ټوپکو او ماشینګڼو د ډزو خاموشي ولیدله، په دې وپوهېدو چې دښمن د فرار او تېښتې په حالت کښې دی. نو مې خپلو جنګیالیو او سرتېرو ته د پرله پسې ډول ږغولو په علامه سره قوماندو ورکړه چې بې له ځنډ څخه د فراریانو په سنګرونو باندې وروخېږي. زما جنګیالیو په ډېره مېړانه او شجاعت سره په محمد اغه کښې د دښمن ټولې مورچې او سنګرونه ونیول او هم مو دری سوه په حساب جنګي افراد ژوندي ونیول چې په دې دری سوه جنګي اسیرانو کښې غونډ مشر عبدالغیاث خان کوهدامنی هم شامل و؛ دا هغه غونډ مشر و چې د جوزا په میاشت کښې د اورګون په فتحه کښې زما په لاس اسیر کښېوتلی و او د عفوې او بخښلو وروسته ما ورلره د جبهه خانې څخه یو میل ټوپک، دوه سوه کارتوس او دده په خوښه او اختیار سره د اورګون د پوځي کلا د کمند څخه یو راس تکړه اس بخښلی و. غونډ مشر عبدالغیاث خان او د هغه جنګي اسیر ملګري مې په همهغه ورځ د خپل یو شمېر جنګیالیو په ذریعه زرغون ښار ته ولېږل، ځکه د جنګ په حالت کښې د هغوی حفاظت، ساتنه او پالنه راته ګرانه وه او زمور په وړاندې په تنګي کښې د حبیب الله د پلویانو سره جګړه پرته وه.

په محمد اغه کښې د دښمن د مورچو او سنګرونو د نیولو نه وروسته همهغه ټوله ورځ او شپه د خپلو جنګیالیو سره پاتې شوم. او زمور سره دا فکر او خیال و چې دښمن به نوی قوت

او طاقت زمونږ مقابلې ته راولېږي. د میزان په دوولسمه کله چې مونږ په دې باندې باوري او ډاډه شوو چې په دښمن کښې دا توان او طاقت نشته چې زمونږ مقابلې ته افراد راولېږي نو همهغه وو چې د همهغه ورځې په سهار د محمد اغې څخه د تنګي واغجان د بیا فتح کولو له پاره د خپلو جنګیالیو سره وخوځېدم او کله چې تنګي ته ورسېدو نو سمدستي مې خپلو جنګیالیو ته هدایت او ښودنه وکړه چې د دښمن په وړاندې سنګرونه ونیسي او تر څو چې د سپېدو چاودو پورې د هغوی له خوا جنګ نه وي پیل شوی یوه ګولۍ دې هم د هغوی په لور نه اورول کېږي؛ هغه ځوله شپه مونږ ددې انتظار وکېښ چې د حبیب الله ملګري به جنګ پیل کړي، ولې د میزان د دیرلسمې تر سپېده چاود پورې د هغوی له خوا یوه ګولۍ هم زمونږ په طرف فیر نه شوه؛ همهغه وو چې خپلو جنګیالیو ته مې قوماندہ ورکړه چې د دښمن په سنګرونو باندې د ډولونو په ږغولو سره بې له وقفې برید وکړي؛ دلته د حبیب الله د پلویانو مقاومت زمونږ په مقابل کښې دوه ګنټې هم نه و او ژر تر ژره یې ماتې او شکست په برخه شو او دا په دې چې په محمد اغه کښې یې د خپلو ملګرو د سختې ماتې او فرار خبر اورېدلی و او هم د بل لوري څخه د تنګي په سنګرونو کښې یو ځل بیا هغه ماتې خوړلې افراد راغونډ شوي وو، چې په اوله جګړه کښې د محمد عمر خان جرنیل او سپاه سالار پردل خان تر قوماندې او قیادت لاندې زمونږ سره مخامخ شوي وو او اوس هغه دوه تکړه جرنیلانو یو په درویش کاریز او بل په کابل کښې د حبیب الله د پلویانو قیادت او قوماندہ په غاړه لري، ځکه نو دا ځل بې ځایه مقاومت ورلره فایده نه رسوله او

همدا سبب او علت و چې د مقاومت او جنګ کولو پر ځای يې دا غوره او بهتره وګڼل چې خپل سرونه په فرار کولو سره په امن کړي.

## د کابل فتح او د وطن د نجات اخري ګنتې

په محمد اغه کښې د حبيب الله د ملګرو د ماتې او د تنګي د دوهم ځل د نيولو څخه وروسته د خپلو فاتحو او سوبمنو جنګياليو سره په څټ زرغون ښار ته راغلم او د همغه ورځې په دوولس بجو محمد ګل خان مومند چې يو ننګيالی او غيرتي افغان و تنها او يوازې زرغون ښار ته رارسېدلی و او نه دوهم سړی او نه لښکر ورسره و چې په زرغون ښار کښې د ناجي لښکرو همراه شو. د محمد اغې او تنګي جنګونو موږ ډېر ستړي او ستومانه کړي وو. ولې د وطن د نجات او د غاصب حکومت د راپرځولو په لاره کښې موږ لره دا ستړيا او ستوماني هېڅ وه، نو همغه وو چې د همغه ورځې په ماسپښين د قومونو او قبيلو مشرانو دا پرېکړه او فيصله وکړه چې بې له کوم ځنډ او ځنډ څخه بايد د ټولو قومونو جنګيالي د کابل په طرف حرکت وکړي او دا داسې ګنتې او لحظې وې چې د محمد اغې او تنګي جنګونو او زموږ سوبو په کابل کښې د حبيب الله د پلويانو او پوځيانو جنګي روحيه کمزورې کړې وه، جرنيل محمد عمر خان په درويش کاريز کښې د حبيب الله د ملګرې په اړه زړه نازړه و، سپاه سالار پردل خان په شمالي کښې د دهقانانو څخه په لښکر راغونډولو بوخت و؛

عبدالغیاث خان غونډ مشر په زرغون ښار کښې اعدام شوی و او د کابل په سنګرونو کښې د حبیب الله د ملګرو څخه داسې نامداره، جنګیالی او تجربه کاره جرنیل او کرنیل نه و چې زموږ په وړاندې یې مقاومت کړی وای.

د کابل په لور باندې د حرکت کولو پېشنهاد د وزیرو، مسودو دوړو او تنیو د مشرانو پېشنهاد او غوښتنه وه، ځکه په محمد اغه او تنګي کښې د حبیب الله د پلویانو ماتې او فرار د استقلال په جنګونو کښې د فرنګیانو د ماتې او فرار سره مشابهت درلودئ. کله چې موږ مجاهدینو د کندر، ګوملې او وزیرستان په سنګرونو کښې فرنګیانو ته ماتې ورکړه نو هغوی د روب په طرف ښې ته ولاړله او موږ مجاهدینو چې د هغوی دا جنګي کمزورې روحیه ولیدله نومو په ګډه د هر لوري څخه په روب کښې وکوټل، د حبیب الله د ملګرو حالت د همهغه حالت سره پوره مشابهت درلود.

د زرغون ښار څخه د کابل په لور باندې د ټولو جنګیالیو حرکت او خوځېدنه په دوو بجو پیل شوه او دا پرېکړه وشوه چې محمد ګل خان مومند دې د احمدزي کوچیانو او درود احمدزیو سره د موسهی لوګر له لارې او موږ د چهار اسیاب له لارې کابل ته ننوځو. د زرغون ښار څخه تر چهار اسیاب پورې خلکو موږ لره ښه راغلی او هرکلی وایه، نارینه او ښځینه د خپلو کورونو څخه زموږ د لیدلو له پاره راوتلي وو او زموږ د بري او کامیابی ناري یې وهلې زموږ په وررسېدو سره د خلکو د زړونو څخه هر رنګ وېره وتلې وه، په لاره کښې سردار صاحب شاه ولي خان د غلام حیدر خان جرنیل مېلمه شو، د سهار نهاری یې د هغه سره وکړ.

د ۱۳۰۸ ل هـ کال د میزان د میاشتې څورلسمه نېټه وه چې ما د خپلو جنګیالیو سره په هنډکیو او د کابل په نورو هسکو کښې د حبیب الله د جنګیالیو په وړاندې سنګرونه او مورچې ونیولې؛ په همغه ورځ بې له دمې اچولو او هوسایي ځخه موږ جګړه پیل کړه او د حبیب الله د ملګرو څخه مو ځلور سنګره ونیول. د حبیب الله پلویان هم په ډېره مېړانه او دلاورۍ سره زموږ په وړاندې جنګېدل، د هغوی مېړانه او غیرت هم زموږ په څېر و ځکه دوی هم افغانان وو ولې تفاوت او فرق په دې کښې و چې هغوی د غاصب په طرف ولاړ وو او موږ وطن ته د غاصب له منګولو څخه نجات ورکاوه. د هغوی مورچې او سنګرونه پوره مضبوط او مستحکم وو. دوی چې په خپلو مورچو کښې د دفاع په حالت کښې وو او موږ تعرض کاوه، نو رالره سخته او مشکله وه چې په یوه ګنټه او یا په یوه ورځ کښې هغوی د خپلو سنګرونو او مورچو څخه ولاړ کړو ولې هر کله چې به موږ د حبیب الله د ملګرو څخه قدم په قدم مورچې نیولې، نو د نورو مورچو جنګیالیو به یې خپله جنګي روحیه له لاسه ورکوله او زموږ په وړاندې به یې دومره مقاومت نه ښکاره کاوه. په دوهمه ورځ چې د میزان د میاشتې پنځلسمه وه، هغه ټوله ورځ او شپه زموږ او د حبیب الله د ملګرو تر مینځ جنګ جاري و؛ د هر لوري څخه د توپونو او ماشین ګڼو ګولۍ اورول کېدې. جنګ په دومره شدت او بېړې سره روان و چې د توپونو د ګولیو د باروتو دود او لمبو ورځ تیاره کړې وه او شپه یې روښانه کړې وه. زما جنګیالي چې په مېړانه او د کابل د نیولو له پاره په ټینګ عزم او اراده سره

جنګېدل د حبیب الله د پلویانو د زیات مقاومت سره ځلور سنګرونه تر لاسه کړل.

زما جنګیالي د کابل په هسکو او دنګو کښې د حبیب الله د ملګرو او پلویانو په وراندې په سخت جنګ او جګړه باندې بوخت وو، منور لزه نه تیکله او نه په پرېمانه اندازه سره د ځښاک اوبه هغه هسکو او دنګو ته رارسېدل او نه زما جنګیالي دومره وزګارېدل چې خپل کاکونو پاخه کړي او په هغه جنګونو کښې چې د کابل په مورچو او سنګرونو کښې مور ورسره مخامخ شوي وو او هم د مقابل لوري جنګیالیو سخت مقاومت کاوه؛ زمور وروکې خطا او تېروتنې دښمن ته د بري او زمور د ماتې زمینه برابروله. د حبیب الله د جنګیالیو شاته غاصب حکومت ولاړ و؛ ټوله خزانه او جبه خانه د هغوی په واک او اختیار کښې وه. د هغوی د ټوپکو، ماشینګنو او توپونو ګولۍ زمور په طرف د پسرلي د باران په څېر اورېدلې چې د خپلواکۍ په جنګونو کښې فرنګیانو هم په دې څېر پرې‌مانۍ سره پر مور نه وې اورولي. زما د جنګیالیو ځټ ته خوک نه وو چې زمور د تیکلې ذمه یې وهلې وای. شاه ولي خان په چهلستون کښې دربار غوړولی و، سپاه سالار صاحب محمد نادر خان د ځاځیو په علي خېلو کښې زما د جنګیالیو د ماتې او بري د خبر په انتظار و او هغوی هم په خپل ځان پورې حیران وو. د جنګ په ټولو اوږدو کښې هر څه مور د خپل جېب څخه لګول او د کوم وخت څخه چې ما خپل جنګیالي د کابل د فتح کولو له پاره راروان کړي وو بیا تر همدې سختو او پرېشانه حالاتو پورې محمد نادر خان او دهغه ورونو یوه افغانۍ هم زما او د نورو مشرانو په لاس کښې نه وه اېښودلې،

لښکر ته د ټیکلي او اوبو تهیه کولو له پاره زه شخصا د پنځوسو تنو ننګیالیو وزیرو او مسودو سره د هینډکي بازار للندر نومي ځای ته ولاړم هلته مې په قیمت تادیه کولو سره د بازار څخه ټول وچ توت او هندواڼي رانیولې او د خپلو جنګیالیو مورچو او سنګرونو ته مې د سړیو په سر ووېشل، د توتو څخه مو د مړی کار اخیسته او د هندوانو څخه مو د څښاک د اوبو استفاده کوله او هغه هم په نیولي لاس سره.

زما د وزیري، مسودي، دوړي او تڼي جنګیالیو او د حبیب الله د ملګرو تر مینځ جنګ د کابل دنګو غرونو او هسکو کښې په ډېر شدت روان و. او د جګړې د محاذ او مورچلونو څخه بهر افرادو ته دا پته نه وه چې یوه ګنټه وروسته به د کابل او کابلیانو برخلیک څه وي، ولې ماله دا یقین او باور و او په خپلو جنګیالیو مې هم دا اعتماد و، چې ژر تر ژره به دا مقاومت زمونږ په وړاندې غلي کېږي. د حبیب الله ملګري د کابل د حفاظت له پاره او مونږ ارګته د ننوتلو له پاره جنګېدو: د شپې او ورځې د سخت جنګ څخه وروسته مونږ د مخالفینو څخه دری اساسي سنګرونه ونیول او زما د شملې د ځګولو او په ټول ژوند کښې راته د افتخار جنګیالي په پوره مېړانه او دلاوری سره په اسمایي غره (کوه اسمایی) کښې کاسه برج، شیر دروازه او بیني حصار کښې د حبیب الله د منظمو پوځونو د توپونو او ماشینګنو په وړاندې جنګېدل، دښمن د مرنجان غونډی څخه چې اوس هلته د سپاه سالار محمد نادر خان مزار دی زمونږ په مقابل کښې مورچې او سنګرونه نیولي وو او د ششپن توپونو د ګولیو خاورې او دودونه به یې زمونږ په مورچو ګرځېدل.

مور د لوړې او تندې په حالت کښې د حبیب الله د پوځیانو په وړاندې چې هر څه یې په واک او اختیار کښې وو، په پخه اراده او قوي عزم سره جنګېدو او د کابل د فتح کولو او د تاج او تخت د اعاده کولو څخه مو بله ستره هیله او اسره نه وه نه د خلکو د وژلو او نه د کابل د لوټولو له پاره د وزیرستان څخه راروان شوي وو او هم نه زمور مشرانو سره دا خیال او فکر و چې د کابل په فتح کولو سره په کابل کښې مېشته شو او همدا پاکې او سپېڅلې هیلې او اسرې وې، چې د دښمن د پوځي تفوق سره ګنته په ګنته په هرمورچل او سنګر کښې د هغوی قدمونه ښویېدل. د کابل د دنګو غرونو هسکې څوکې او پراخې لمنې زمور په لاس کښې وې او په هر لور باندې زما د غیرتي ځوانانو له خوا د حبیب الله د ملګرو او پلویانو په وړاندې جنګ په شدت او کامیابۍ سره روان و چې په همدې حالت کښې کرنیل صاحب سردار شاه ولي خان د منګلو د مشر (زلمي خان منګل) د ځدرانو د مشر (زمرک خان ځدران) د ځاځیو د مشر (ملک جان خان) په بدرګه په اس سپور د چهلستون څخه مالره راغی او د احوال پوښتنې څخه یې فورا څرګنده کړه: "داسې معلومېږي چې ستاسو جبه خانه په تمامېدو ده، دښمن هم سخت مقاومت کوي، خدای(ج) دې نه کړي چې په دې حساس او نازک وخت کښې شکست ونه کړئ".

زمور په هغه سخت حالت کښې چې د کابل ښار په شاوخوا کښې د سقاو د زوی د پوځیانو په وړاندې په سنګرونو کښې جنګېدو او د وزیرستان څخه مو یواځې او یواځې د افغاني ننګ او غیرت د پرځای کولو له پاره ټوپک اوږې ته اچولی و.

د ۱۳۰۸ لمریز- هجري کال د ثور د میاشتې نه بیا تر همغه ګنټو او شپو د ژوندانه ټولې لارې او چارې پربښودلې وې؛ کور او کهول مو د افغاني سپېڅلې دندې او اسلامي فرض.د پر ځای کولو له پاره هېر کړی وو او هم مو په اوله ورځ چې دا جنګیالي په وانه او برمل کښې راغونډېده دا عزم او اراده کړې وه چې د حبیب الله له خوا غصب شوی تاج او تخت به د خپلو وینو په برکت او نذرانه سره د همغه اصلي وارث او څښتن ته سپارو.

کرنیل صاحب شاه ولي خان په همغه شپو کښې ددې له پاره چې زموږ همغه بې اسرې کوښښونه او زموږ ربړې او مشکلات د وطن د نجات په لاره کښې لیدلي وای او یا یې راته څرګنده کړې وای چې په دې ناآشنا علاقه کښې څه خورئ او څه څښئ. نو د همغه پر ځای یې ما او زما ملګرو ته د مایوسۍ او نا امیدۍ تلقین کاوه او ماله دا پته ولګېده چې د سردار صاحب څخه ګیله نشته.،ځکه چې د حبیب الله ظاهري قوت او طاقت او د همغه د توپخانې اور کرنیل صاحب زیات مایوسه او وارخطا کړی دی او بل دا چې مخکښې زموږ د لیدلو نه همغه د سورجرنیل سره ملاقات کړی و.او دا چې محمد عمر خان څه ورته ویلي وو د همغه څخه زه ناخبره وم. په اورګون، خوست، څمکنیو، تنګي، محمد اغه او اوس د کابل په سنګرونو کښې زما د جنګیالیو بریالیتوبونو او د دښمن ماتې او فرار د شاه ولي خان په سترګو تورې پردې غوړولې وې د همغه د وزیرو او مسودو په پښو لوڅو او سربرو جنګیالیو په شجاعت او مېړانه باندې باور او یقین نه راته. د؛ همغه په خیال او نظر همغه کس شجاع او دلاور و؛ چې پوځې لباس یې

په ځان وای؛ په همهغه شپه ما سردار صاحب شاه ولي خان ته دومره یادونه وکړه: "نن به موږ مشران غونډه او جرګه وکړو او دا به فیصله کړو چې څه وکړو او د مشرانو د پرېکړې احوال به تاسو ته درولېږو". په همدې اثنا کښې غونډ مشر عبدالله جان احمدزي وزیر چې سخت حاضر ځواب او د ناامیدۍ یوه وړه خبره یې په ازاد مزاج او غرني طبعیت باندې نه نه لګېده او د وطن د نجات له پاره یې ځانګړي سپېڅلي احساسات او هیلې درلودې د خپل ځایه څخه اوچت شو او ټولو د مجلس حاضرینو ته یې خطاب وکړ: "موږ د وزیرستان ولس د هغه سپین ارګنیولو ته راغلي یو چې د هغه له جګو برجونو څخه اعلیحضرت غازي امان الله خان د فرنګیانو د درۍ لکه پوځ په مقابل کښې د جهاد او خپلواکۍ اعلان وکړ، زه اوس همهلته د خپلواکۍ د قهرمان تصویر په سترګو وینم او د هغه ارګټول برجونه او دېوالونه موږ لره ناري وهي چې اې د وزیرو او مسودو ځوانانو زه سپین یم ما په خپلو وینو ورنګوئ؛ څنګه چې مو د وانه، ته خپلو او اپوزي دېوالونه په خپلو وینو رنګولي دي، دا ټولو ته معلومه ده او اکثرو لیدلې هم ده چې موږ د وزیرو او مسودو ولس د فرنګیانو سره په جنګونو کښې د څټ ګولۍ ونه خوړله او د څټ ګولۍ د وزیرستان د قومونو او قبیلو ځوانانو ته بې ننګي او بې غیرتي ده؛ موږ ټوله دې لره راغلي یو چې د حبیب الله د ملګرو په ګولیو خپل ټترونه سوري سوري کړو ولې خپلو اولادونو ته پېغور نه پرېږدو او ان شاءالله چې د سپین ارګ په دروازو کښې به خپل ځانونه قربان کړو او که چېرې د کوم

کس او یا کومې قبیلې دا قرباني په توان او طاقت کښې نه ده، هغوی همدا شپه رخصت دي".
د همهغه ورځې ماسپښین قضا وچې سردار صاحب شاه ولي خان واپس چهلستون ته ستون شو؛ د شاه ولي خان د ستنېدو سره جوخت پ‌ـه همهغه ګنته ما او نورو مشرانو ډ اضطراري غونډې جوړېدو پرېکړه وکړه، غایب مشران او دسنګرونو قوماندانان مې راوغوښتل او ټولو مشرانو او د سنګرونو قوماندانانو په اتحاد او اتفاق سره دا ډول فیصله وکړه "نن شپه به د الله پاک په فضل او نصرت سره د کابل ښار ته ننوځو او خپل ټول جنګیالي به د هر لوري څخه ارګته رسوو او که ژر تر ژره خپل برید او حمله ونه کړو حبیب الله هڅه کوي چې د مشرقي، جنوبي او کندهار څخه خپل پښتانه پلویان زموږ مقابلې ته راولي او دا بایللی جنګ او جګړه د هغو په وینو تویولو باندې وګټي او د جګړې د اوږدېدو په صورت کښې شاید چې کابلیان هم د حبیب الله په طرفدارۍ ټوپکي اوږو ته کړي".
د فیصلې څخه وروسته زما د جنګیالیو د هرې ډلې او هرسنګر قوماندان واپس خپل مورچل ته ستون شو او د همهغه ماښام او ماسخوتن لمونځونه مو یو ځای او په یو وخت ادا کړه او څه چې راسره وه هغه مو په نیم نس وخوړل، د سنګرونو زیات قوماندانان د قومونو او قبیلو مشران وو او د خپلو ورسره سړو سره اوږه په اوږه جنګېدل او ټول د یوه برید او د سنګرونو څخه د خوځېدو د قوماندې په انتظار تیارسئ وو، د قوماندې په مرکز کښې زه یارمحمد، انګور خان، دلباز

خان، شیر محمد خان، شیر خان تنی، شادینخېل خان دوړ، ملک ګل خان او ملک ډنډ خان او سیدو.

د ماسخوتن نهه بجې وې چې ډول وهونکي ته مې هدایت ورکړ چې لښکرو ته د کابل په لور د برید او د مورچو څخه د خوځېدو ډول ووهي. د وزیرو، مسودو، دوړو او تنیو هر جنګیالی او قوماندان په دې پوه او اګاه و چې د ډول دا څېر اواز د څه له پاره دی. څکه چې دوی په جنګ کښې د ټوپک او ډول سره راستر شوي وو. د هغوی هر یوه غوږونه د ډول له ډول ډول اواز سره داسې اشنا او بلدوو لکه چې د یو کس غوږونه د رباب د اواز سره اشنا وي او په دې پوهېږي چې د رباب هر تار څه وایي. د قوماندې د ډول سره سم له هر لوري څخه ډول وهل بېله وقفې پیل شوه او هر جنګیالي که څه خپل مرګاو د ژوند اخري ګنتې په سترګو لیدلې. د ډولونو د پرله پسې ږغولو او د انګرېزي ټوپکو د ګولیو د ټکهار سره دا رنګه ناري او چیغې وهلې "اې د سپین ارګاصلي خاونده! چېرته یې. نن مونږ د افغاني ننګ د پر ځای کولو له پاره ستا د راتګ په هیله دلته خپل ځانونه په وینو لمبوو او تر هغه به په څټ نه شو خو مو دا سپین ارګپه وینو نه وي رنګولی او اې د سپین ارګاصلي خاونده چېرته یې". په همهغه نبکو او سپېڅلو احساساتو او بې اسرې هیلو سره زما جنګیالي ټوله شپه د حبیب الله د پلوي پوځیانو په وړاندې په پوره مېړانه او شجاعت سره وجنګېدل او د همهغه شپې د سهار اووه بجې وې چې مونږ خپل ځانونه د لاهوري دروازې، بالاحصار، بالاکوه او درختې شینګ څخه د کابل اصلي ښار ته ننه ایستل. د حبیب الله ملګرو په ټولو سنګرونو کښې ماتې او

شکست وکړ، خپل مړي او سلاح یې زمونږ په ښو کښې پرېښودل او ما چې د حبیب الله د پوځیانو او ملګرو کمزورې جنګي روحیه او د خپل بادار سره نه وفاداري ولیده نو مې بې له تم کېدو شخه د محاذ قوماندانانو او جنګیالیو ته هدایت وکړ چې د ارګ په لور باندې له هر طرف شخه خپل حرکت ته ادامه ورکړي. ارګ ته تر رسېدو پورې زمونږ په مخکښې د حبیب الله د ملګرو کوچني او واړه مقاومتونه وشوه او دې مقاومتونو پوره درې ګنټې ونیولې او همهغه سهار لس بجې وې چې زما جنګیالي ارګ ته ورسېدل او خپله د سقاو زوی (حبیب الله) مو په ارګ کښې محاصره کړ او ما خپلو جنګیالیو ته هدایت ورکړ چې د محاصرې د ټینګولو له پاره د کابل رود په برخه کښې خپل سنګرونه او مورچې ونیسي.

د ارګ د محاصرې سره جوخت ارګ ته نږدې شخصا زه د یو شمېر مسلح ننګیالیو سره د پست شعبې ته ولاړم څو د کابل د نیولو زېرې او پیغام وزیرستان ته ولېږم او هلته نارام او پرېشان فکرونه په خپل زېري او پیغام سره ارام کړم، د پست منتظم مامور ته مې هدایت وکړ، چې وزیرستان ته وېرلیس (Wireless) وکړه چې کابل مو فتح کړئ. د پست منتظم مامور وپوښتل د چا په امر، د هغه ددې پوښتنې په ځواب کښې ما ورته وویل: زما یار محمد وزیري جرنیل په امر او هدایت سره. هغه د پست منتظم مامور چې زمونږ انګرېزي ټوپکي او زمونږ په مخونو خاورې او دوړې او هم زمونږ د هفتو هفتو ناوینځلې په تن جامې ولیدلې نو یې بې له ارادې او په زیاته خوشحالۍ سره راته وویل: "تاسو د امان الله خان د مجاهدینو شخه یاست". ما ورته په یوه کلمه کښې غبرګه کړه

هـو! هغـه بـې لـه اضـافي سـوال او ځواب څخـه د ادرس مطالبـه او غوښتنه وکړه او مـا پـه وزيرسـتان کـښې د خپـل پيغـام او د کـابل د فتـح کولـو د زېري لېږلـو ادرس د پسـت منتظـم تـه پـه دې تـوګه سـره ورکـړ: تحصيـل ټانـک- پسـت تنـايي. زرخـان وزيـر زليخـېل را گفته شود که امروز شـهر کـابل را فتـح کـرديم. احـوال زخمـي هـا و مرده ها را بعدا خواهـم بـه شـما بدهيـم".

وزيرسـتان تـه د وېرليـس (Wireless) د لېږلـو سـره سـم مـې کلکتې ته پـه دې پتـه پيغـام وليـږه: "شـهر کلکتـه – بـړه بـازار هـري سينګ روډ – دوکـان سـه تلـه عبـدالله خـان مريـانې افغـان را گفتـه شـود کـه شـهر کـابل را فتـح کـرديم. از طـرف جرنيـل يـارمحمد خـان".

وزيرسـتان او کلکتـې تـه د کـابل د فتحـې د زېري او پيغـام استولو څخـه پـه څټ د خپلـو سـرتېرو جنګيـاليو سـنګرونو تـه راغلم او دغـه ټولـه ورځ د ارګ څخـه زمـوږ پـه سـنګرونو او مـورچـو بـاندې د ماشـين ګنو او تـوپونـو درنـدې ګولـۍ اورول کـېدې او حبيـب الله پـه ارګ کـښې د خپلـو ملـګرو سـره محـاصره و، د ارګ څخـه بـهر د هغـه د پلويـانو ټول سـنګرونه او مـورچـې زمـا د جنګيـاليو پـه مېړانـه او همـت سره وران شـوي و، د کـابل ښار او کابليـانو د امـن لـه پـاره مـا د خپلـو جنګيـاليو څخـه پـه هـر لـور ګرځنـده ټولـګي وټاکـل. پـه دولتـي ځايونـو او سـفارتخانو مـې پيرې ودرولـې. شـخصا هـم د خپلـو جنګيـاليو د قومـاندې او د ارګ د محاصرې د څارلـو پـه څنـګ کـښې پـه ښار کـښې پـه پيره او ګزمـه ګرځېدم؛ د ځدرانو، ځاځيـو او منګلـو جنګيـالي هـم راورسـېدل او زمـا د جنګيـاليو پـه څنـګ کـښې يـې مـورچـې ونيولـې.

د ۱۳۰۸ لمریز کال د میزان اتلسمه نېټه وه چې سردار صاحب شاه ولي خان پر اس سپور د خپلو ځاځي او ګردېزي پیره دارانو سره چې یو شمېر قومي مشران او خانان ورسره مله وو د کابل ښار ته راغلل. ما د کابل ښار امنیت برقرار کړی و، د غلو او رهزنانو د چور او چپاول د لاس لنډولو او مخنیوي له پاره د وزیرو او مسودو د جنګیالیو پیرې په هر طرف په ګرځېدو وې. شاه ولي خان او د هغه ملګرو موږ د لښکر مشرانو او قوماندانو ته د کابل د فتحې مبارکي راکوله او هومره خوشحاله او مسرور و، چې له زیاتې خوښۍ او خوشالۍ څخه یې موږ هر د قوم مشر او قوماندان په زېړه او مخ باندې څو څو ځله ښکلولو، هغه زما لاس په خپلو دوو لاسونو کښې ونیو او ما دا خیال او تصور وکړ چې سردار صاحب زما لاسونه ښکلوي نو مې هڅه وکړه چې خپل لاس د شاه ولي خان د لاسونو څخه ازاد کړم. ولې هغه په همدې شېبه کښې ټولو حاضرو مشرانو ته خطاب کړه: "د افغانستان ولس به یارمحمد خان او دده دا کارنامې هېڅکله هېرې نه کړي". او همدا ورځ وه چې یوه سړي د شاه ولي خان زوی عبدالولي جان چې د دوو کالو ماشوم و، شاو ولي خان ته وسپاره. او دې حالت د سردار صاحب خوښي او خوشالي نوره هم زیاته کړه.

موږ په کابل کښې د چا سره پېژندګلوي او اشنايي نه درلوده او کله چې د کابل ښار ته داخل شوو او ارګ مو محاصره کړ، د ښار ټول مخورین په خپلو کورونو کښې وو او یو کس مو هم نه و لید چې موږ د وزیرو او مسودو د لښکر مشرانو ته د کابل د فتح کولو مبارکي ووايي او یواځې مو د کابل عام او غریب خلک لیدل چې نارې به یې وهلې: "زنده و پاینده

باد فاتحين كابل" او ځينو به دا ناري هم وهلې: "زنده باد غازي امان الله خان". د چهلستون څخه د کرنيل صاحب شاه ولي خان په رارسېدو سره د کابل ښار مخورين او سرداران هم د خپلو کورونو څخه راووتل او هر يوه شاه ولي خان ته د کابل د نيولو مبارکي ويله او د تېري د وري څخه يې خپل شکايتونه وړاندې کول. او د ښار د هر مخور او سردار دا هڅه او تلاش و چې د شاه ولي خان د اس د سوو قدمونه ښکل او خاورې يې رانجه کړي. هغوی زمونږ ببرو سرونو، لوڅو پښو او ناوينځلو جامو ته نظر نه کاوه، شايد چې د دوی د مال او مقام طامع نفس او عقل دا ورته امر او حکم کاوه چې د کرنيل صاحب شاه ولي خان د اس قدمونه ښکل کړي او ما لره يو ځل بيا دا پته ولګېده چې د افغانستان د خپلواکۍ محصل او قهرمان (اعليحضرت غازي امان الله خان) همدې کابلي مخورينو او سردارانو د پلار او نيکه تاج او تخت پرېښودلو ته مجبور کړ؛ که نه نو څنګه ممکن وه چې يو لاروهونکی دې په ټول افغانستان قابض شي.

## د پردل سپاه سالار لښکر او د سردارانو وارخطايي

ارګزما د جنګياليو له خوا په هغه ځېر سره محاصره و او د ارګ د داخل څخه زمونږ په مورچلونو باندې د اور لمبې ګرځېدلې سردار صاحب شاه ولي خان او د هغه ورور سردار صاحب شاه محمود خان د خپلو دوستانو او عزيزانو په ملاقات باندې بوخت وو، په مورچو او سنګرونو کښې مونږ پراته وو؛ د

ښار د امنیت ساتلو پیرې او ګزمې موړ کولې، ددې په څنګ کښې په هر لور دا اوازه او ډنډوره وه چې د کندهار، جنوبي، مشرقي او شمالي څخه د حبیب الله په ملاتړ پوځونه راروان دي، دې اوازې د کابل د ښاریانو په روحیاتو باندې زیات اثر غورځولی و او هر کور او کهول د خپل برخلیک په انتظار و؛ ځکه هغوی د چور او چپاو څخه په وېره او ډار کښې وو او هیڅ کس دا اټکل نه شو کولای چې سبا ته به په کابل کښې څه تېرېږي، په ارګ کښې حبیب الله مقاومت کاوه او دا یې هیله او امید و چې پلویان به یې له هر لوري څخه د محاصرې ماتولو له پاره راودانګي، ولې د هغه اکثریت ملګري د مال او مقام او د ښې ورځې ملګري وو، د اعلیحضرت غازي امان الله خان د ملګرو څخه حبیب الله پند او نصیحت نه و اخیستلی او همهغه د اعلیحضرت غازي امان الله خان د دربار او حکومت مامورین، مخورین، پیران او سرداران په ده باندې راټول وو.

د ۱۳۰۸ لمریز - هجري کال د میزان د میاشتې اتلسمه نېټه وه، چې سردار صاحب شاه محمود خان د یو شمېر پېره دارانو سره پر اس سپور د شور بازار څخه زما د جنګیالیو مورچو ته چې د کابل رود پر غاړه وې راغی، د سلام او معرفت څخه یې وروسته په ډېره وارخطایی او زیاته پرېشانی سره راته وویل: "د وزیرو او مسودو قهرمان مشره د کابل د فتح کولو اصلي او اساسي رکن یارمحمد خانه! حالات ډېر خطرناک دي. پردل سپاه سالار د شېر زره جنګي افرادو سره د خیرخانې د کوتل څخه هجوم راوړی دی، د هغه په تعقیب نور مسلح افراد هم د شمالي څخه راروان دي. سید حسین د مزار څخه د شپېته زره جنګیالیو په بدرګه د کابل په طرف

حرکت راکړی دی". سردار صاحب شاه محمود خان تر حد زیات وارخطا و او د رنګ بڼه یې هم بایللې وه؛ هغه نرم، متواضع او حسابي شخصیت و، هغه اشخاص او افراد پېژندل او دا ورته معلومه او څرګنده وه چې د سپاه سالار صاحب پردل خان مقابله څوک کولی شي؟ په همهغه ګنته ما د شاه محمود خان پر اوره باندې خپل لاس کښېښود او دا کار مې د هغه د ډاډ او تسکین له پاره وکړ، ځکه په افغانانو کښې د ډېرو خورو او باوري اشنایانو هم دا معمول دي او ورته مې د خپل لښکر د نورو ننګیالیو مشرانو په مخکښې څرګنده او په ګوته کړه "جرنیل صاحب! ته غم او فکر مه کوه! حبیب الله دا دی، په ارګ کښې زموږ تر محاصرې لاندې دی. ټولې ربړې او مشکلات خدای پاک په خپل نصرت سره هوارې کړې دي، زما جنګیالي په پوره دلاورۍ او بشپړ اخلاص سره تر همدې لحظو د حبیب الله د ورکاوۍ له پاره جنګېږي، هغوی د اعزم او اراده کړې ده چې ډېر ژر به د ارګپر دېوالونو باندې ورپورته کېږي او حبیب الله به ژوندی زما او ستا په مخکښې دروي؛ پردل خان ما او زما وزیري او مسودي جنګیالي پوره پېژني، هغه تکړه او غښتلی سپاه سالار او جرنیل دی، ښه پوهېږي چې د هغه امیر او بادار چا په ارګ کښې محصور کړی دی او کوم جنګیالي دي چې دده د ملګرو سنګرونه یې مات کړي دي، موږ او پردل خان په تنګي کښې خپل زور او قوت ازمویلی دی، هلته جرنیل صاحب ناصري هم ورسره ملګری و او ماتې یې وخوړله. نن سپاه سالار صاحب د عبدالغیاث خان په خېر خپل مرګته راروان دی".

شاه محمود خان حاضر او موجود و چې د کابل رود پر غاړه مې ډول وهونکو ته هدايت وکړ چې جنګ ته د روانېدو ډول ووهي او دا د ۱۳۰۸ ل هـ کال د ميزان د مياشتې اتلسمه نېټه وه، د ډول وهونکي د ډول د ږغولو سره سمدستي زما ننګيالي چې په ښار کښې په پيره او ګزمه وو راغونډ شوه، د سنګرونو او مورچو جنګيالي هم حاضر شوه، په حساب او ګوتو شمېرلي يو زر او پينځه سوه سرتېري مې د پردل خان سپاه سالار مقابلې ته تيار او اماده کړه، شاه محمود خان هغه ميدان او صحنه په خپلو سترګو مشاهده کوله. زما د جنګياليو هغه ملي احساس او د بل لوري د حبيب الله د پلويانو ناخاپي او بې خبره هجوم حيران کړی و. د لښکر نور افراد مې په خټ خپلو دندو ته ولېږل. د ارګ‌څخه همهغسې زمو‌ږ په مورچو باندې د توپونو او ماشينګنو ګولۍ اورول کېدې؛ زه، انګور خان، بجان خان، عبدالله خان د ملک ډنډ خان ورور او شير محمد خان د لښکر په مخکښې روان شوو، په ډېره مينه سره ملي ډولونه وهل کېدل او د جنګياليو فرد فرد ملي غاړې پورته کړې وې. د کابل اوسېدونکو د خونړۍ جګړې خبرې کولې او د چا سره دا پته او معلومات نه وو چې د جګړې برې به د چا په برخه او نصيب وي؛ ځينې کسان هم موندل کېده چې موږ يې د پردل په لاس د وينو په درياب کښې غرق او لاهو حساب کړي و؛ موږ مشران د خپلو لښکريانو سره د ده افغانان له لارې څخه د کلو له پښتې په طرف د پردل مقابلې ته وخوځېدو، ډول وهونکو ته مې هدايت او رهنمايي وکړه چې د خپلو ملي ډولونو اواز تر هغه وخت پورې خاموش نه کړي، چې جنګياليو پوره کاميابي او بری نه وي تر لاسه کړی

ډول او دا زما هغه جنګي کرنلاره وه چې د ډول په ږغولو. د ملي سندرو په ويلو او په موقع موقع سره د خطابو په ورکولو سره مې د خپلو بهادرو او تورزنو لښکريانو ملي احساسات په جوش او حرکت راوستل. د بدنونو وينه مې ګرمه او تاوده ساتله. زما د جنګياليو د جنګي احساساتو راز او احوال تنها مور د وزيرو او مسودو قومي مشرانو او خانانو ته رامعلوم و، هغوی ما د خلکو د سال او عزت لوټولو او چورولو ته نه وو پارولي او هم که به چېرې د جنګ او جګړې په حالت کښې کوم جنګيالي د ملي او قومي اساساتو څخه خلاف تېروتنه وکړه، د وزيرو او مسودو د قومي دستور په اساس به ناغه کېدل. زمونږ د جنګياليو د مړو او ټپيانو د خدمت دنده به ورسپارل کېده

زمونږ په خوځېدو سره د حبيب الله پلويان د سپاه سالار پردل خان په قومانده او جرنيلۍ سره د خيرخانې د کوتل څخه راتېر شوي او د بي بي مهرو علاقې ته يې ځانونه رسولي وو: ماهم د خپلو لښکريانو لاره بدله کړه او په بي بي مهرو کښې د حبيب الله د پلوي جنګياليو سره په جنګ او جګړه باندې بوخت شوو او دا داسې خونړۍ جګړه وه چې د خوست او د تنګي د لومړۍ جګړې څخه په کمه نه وه. په تنګي کښې همدا سپاه سالار صاحب پردل خان و، چې د حبيب الله په پلوۍ يې ملګري او پوځيان زمونږ سره جنګېدل، د بي بي مهرو په سيمه کښې هم د تنګي غونډې په جګړه لاس او لستوڼي ته ورسېدل. ولې دلته پردل په خپله د خپلو پوځيانو او طرفدارانو نر څنګ په مېړانه او شجاعت سره

جنګېده او په تنګي کښې ده (پردل) او جرنيل محمد عمر خان ناصري د خپلو لښکرو څخه په پټه فرار او تېښته کړې وه.

د بي بي مهرو په جنګي محاذ کښې د حبيب الله زيات طرفدار جنګيالي د وزيرو او مسودو د سرتېرو په لاس مړه او ټپيان شوه، د دوی هڅه او تلاش دا و چې د ارګ محاصره ماته کړي، جنګ د کابل ښار کوڅو ته انتقال کړي او هم يې دا کوښښ کاوه چې روانه جګړه دوې درې ورځې اوږده وساتي چې د سيد حسين قوت ورته راورسېږي. ما او زما سره نور مل غيرتي مشرانو د پردل خان دا جنګي مکر او خدعه په همهغه حساسو لحظو کښې درک او احساس کړه، د الله په بشپړ نصرت سره چې زموږ په طرف و د درو ګنټو جنګ په اوږدو کښې سپاه سالار صاحب پردل خان د جګړې په ډګر کښې زموږ له خوا ووژل شو او د هغه په مرګ سره يې په لښکر باندې ماتې ګډه شوه، دا چې څوک وايي د پردل او زموږ جګړه د شهر ارا او باغ بالا په سيمه کښې وه؛ هغوی دهمدې جنګ څخه واقف نه دي او نه يې په جنګ کښې برخه او ونډه درلوده.

د سپاه سالار پردل خان د وژلو او د هغه د لښکر د ماتې او شکست اوازه ډېر ژر په ټول کابل کښې خپره شوه؛ هغه کسانو چې زموږ سره په جنګ کښې ګډون نه و کړی او په کابل کښې د کابلي مخورو او سردارانو په پالنه او ګروېږنه باندې بوخت وو، فورا يې ځانونه د بي بي مهرو فتح شوي محاذ ته راورسول پردل خان چې يو جنګيالی او تکړه جنرال و؛ د سپاه سالارۍ په لباس کښې په وينو پروت و او يو شمېر افراد او اشخاص د پردل خان سپاه سالار د مړه جسد څخه هم په وېره او لړزه وو.

د پردل خان په وژلو سره هغه مور نه پېژانده، ځکه د هغه په ژوند مور د وزيرو او مسودو مشرانو نه وو ورسره ليدلي او کله چې د هغه په ملګرو ماتې ګډه شوه؛ يو شمېر يې فرار وکړ، يو شمېر يې مور ژوندي تسليم کړه او يو شمېر يې په جنګ کښې ووژل شول او د همدې مړو او په وينو لژندو کسانو په قطار کښې مو وليدل چې يو فرد د سپاه سالارۍ په يونيفورم او لباس کښې په خپلو وينو ککړ د مرګپه خوب ويده دی نو د همغه سپاه سالارۍ په لباس ليدلو سره مو دا اټکل او خيال وکړ چې همدا سپاه سالار پردل خان دی د شاه ولي خان او شاه محمود خان په غوښتنه او زيات اصرار سره مور مشرانو دا موافقه وکړه چې د حبيب الله د پلويانو د روحياتو د بايللو او د سلطنت د غاصبينو د عبرت لۀ پاره دې د پردل خان جسد د کابل پر چوک وځړول شي.

د سپاه سالار پردل خان د جسد د انتقال څخه وروسته، ما د خپلو غالبو لښکريانو سره د حبيب الله ماتې خوړلي پلويان تر حسين کوټ او قلعه مراد بېګ پورې تعقيب کړه، هغوی هلته د کليوالو په کورونو کښې ځانونه پټ کړي او پنا اخيستلې وه، کوهدامن ته زمور په رسېدو سره د هغه کلو او باندېو پاک لمنو ښځو د جنګي فراريانو د امن او شفاعت لـه پاره قرانونه په لاسونو کښې نيولي وو، د هغه افغاني بيبيانو په ليدلو سره ما خپل جنګيالي واپس د کابل په لور راروان کړل.

کله چې د حسين کوټ او قلعه مراد بېګ څه د خپلو جنګياليو او قهرمانانو سره کابل ته راورسېدم، ارګپه همغه خبر زما د پاتې کسانو لـه خوا په محاصره کښې و، په ټوله ښار کښې د وزيرو او مسودو د جنګياليو ګزمې ګرځيدلې، په دولتي

ځایونو او سفارت خانو باندې زما د ملګرو پیرې ولاړې وې، د کابل ښار اوسېدونکي ډاډه او خوشحاله ښکارېدل. د حسین کوټ او قلعه مراد بېګ څخه زموږ په راتګ سره محمد ګل خان مومند، زمرک خان ځدراڼ، عبدالغني خان ګردېزی، مولوي صاحب الله نواز خان، شاه محمود خان او شاه ولیخان د مبارکۍ او ښه راغلئ له پاره راغلل. هلته زما د جنګیالیو په مورچو کښې په سلا او مشوره بوخت شوو؛ د وزیرو مسودو د قومونو زیات مشران دخپلو سړو سره د ښار په پیره او ګزمه وو او ځینې بیا په خپلو سنګرونو کښې په جنګ بوخت وو، د ارګ څخه پر له پسې د عمومي باغ او کابل رود په لور د توپونو ډزې کېدلې، زما د جنګیالیو د سنګرونو څخه هم د ارګ په طرف د مردکو ګوزارونه په وقفو وقفو شروع وو او په ارګ کښې به دودونه اوچتېدل. هغه د کابل رود د غاړې په جرګه کښې ما ټولو مشرانو ته وویل: "زما سره وېره او اندېښنه ده او هغه دا ده که د ارګمحاصره همدا رنګه اوږده شي او حبیب الله یو څو ورځې مقاومت وکړي، شاید چې د کندهار، مشرقي، جنوبي او شمالي څخه د حبیب الله په مرسته کابل ته قوتونه راورسېږي او موږ د همدې ښار په مینځ کښې تر محاصرې لاندې راولي ارګبه زموږ د محاصرې څخه خلاص شي او موږ به مجبور یو چې په څلورو خواو کښې وجنګېږو چې په هغه صورت کښې زموږ د ټولو قومونو د سرتېرو شمېر دومره نه دی نو د همدې اندېښنې او وېرې د لیرې کولو له پاره ما د ځان سره دا فیصله کړې ده چې د نن شپې د سهار په مهال په یوه چیغه د ارګپه لور باندې په ګډه ور ودانګو او ددې پر ځای چې په خپلو سنګرونو کښې د حبیب الله د ملګرو په لاس

ووژل شو او یا د هغوی په لاس ژوندي کښېوزو ‌زه دا جنګي کړنلاره غوره ګڼم چې د ارګ‌هغه سپين دېوالونه په خپلو وينو ورنګوو او په هغه صورت کښې چې موږ ټوله په سنګرونو کښې مرو، دا به ښه وي چې په سلو کښې پنځوس د ارګپه فتح کښې ومرو اوس ستاسو مشرانو خوښه او اختيار دی چې زما دې وېرې او اندېښنې ته څرنګه ځواب ورکوي". زما ددې وينا سره ټول حاضر مشران يوه شېبه په فکر او سوچ کښې شوه نو همهغه و د ټولو څخه لومړی محمد ګل خان مومند چې د ډېر حساس فکر خاوند و او زمرک خان چې د خپل غيرتي پلار (ببرک خان ځدراڼ) په څېر په جنګي مسايلو پوه او اګاه و،. څرګنده کړه: "يارمحمد خانه! ستا دا اندېښنه او وېره پر وخت او پر حق ده، زموږ هم دا خوښه ده چې په يوه ځل پر ارګ باندې برید وکړو او دا د سلطنت غاصب د خپل عمل په جزا ورسوو. د محمد ګل خان مومند او زمرک خان ځدراڼ څخه وروسته ټولو په دې موافقه او فيصله وکړه چې د ١٣٠٨ لمريز هجري کال د ميزان د شلمې له سپېدو چاود سره دې په ارګ باندې په ګډه فيصله کوونکی برید او حمله وشي او دا ګنته دي د لب دريا، کوه اسمايي او شېر دروازې څخه د توپونو په ګوليو ارګېر له پسې وويشتل شي. که څه هم شاه ولي خان او شاه محمود خان پوره موافق نه وو، ځکه د هغوی کورنی په ارګ‌کښې د حبيب الله په لاس کښې بندي وه، ولې په ظاهره يې څه اظهار نه کاوه او مجبور وو چې د نورو مشرانو پرېکړې ته غاړه کښېږدي.

زموږ د پرېکړې سره ارګ‌هسې په شدت د توپونو په ګوليو وويشتل شو، چې د ارګله غولي څخه داور لمبې او دودونه

اوچت شوه، محمد یعقوب خان چې پوځي صاحب منصب و او تر اندازې اوږده برېتونه یې درلوده ددې پر ځای چې د توپ په ګولۍ ارګوولي، د توپ ګولۍ یې زما د جنګیالیو په سنګرونو کښې ولګېده، د همدې حالت په لیدو سره مې فورا د محمد یعقوب خان سنګر ته ځان ورساوه او له ډېر قهر څخه مې هغه بېچاره تر برېتو ونیو او په خپله مې د توپ اداره په لاس کښې واخیسته.

# د اغا ګل مجددي په مشرۍ د حبیب الله د سولې هیات

د ۱۳۰۸ لمریز هجري کال د میزان د شلمې سپېده چاود و چې زموږ د برید وخت او نېټه لا نه و رارسېدلې چې د میزان د نولسمې په ماسخوتن چې نهه بجې وې حضرت اغا ګل مجددي چې د حضرت صاحب نورالمشایخ مجددي ورور د دوو نورو ملایانو په ملتیا حبیب الله او د هغه خپلخاني ته د سر د امن غوښتلو په درخواست زموږ سنګرونو ته راغلل. هغوی د ارګ څخه زموږ تر مورچو پورې په موټر کښې چې سپین بیرغ وربانديې په رپا و راورسېدل. د حضرت صاحب او د هغه دوو دیني علماو موږ زیات احترام او عزت وکړ، د هغوی سره د معرفت وروسته چې حکمران سردار علي شاه خان یې هم ملګرى و د حبیب الله شفاهي پیغام موږ مشرانو لره ووایه؛ د هغه د ټول پیغام مطلب دا و چې هغه باید په صحت او سلامت سره د ارګ څخه ووځي او چېرې یې چې خوښه وي هلته ولاړ شي. د حبیب الله د همدې پیغام او پښنهاد په اړه

مـور حضـرت صـاحب اغـا ګل مجـددي او ورسـره ملـګري هيـات تـه وويـل: "ښه د حبيـب الله د پېشـنهاد او غوښتنـې پـه اړه بـه مـور د لښکـر مشـران پـه خپـل مينـځ کـښې غونـډه او جـرګه وکــړو او د خپلې فيصلې نتيجـه بـه ستاسـو جنـاب پــه لاس حبيــب الله تــه ولېږو".

د حبيـب الله د پېشـنهاد او غوښتنــې پــه اړونــد مــور د لښکـر مشـرانو پـه همهغـه لحظـه چـې د شـپې څه د پاسـه نهـه بجــې وې خپلمينـځي جـرګه وکــړه. او پــه دې اصلــي او اساســي غونــډه کـښې چـې د وطـن د نجـات اخـيري ګنتې وې شـېر محمـد خــان وزيـري فرقـه مشـر، انـګور خــان وزيـري فرقــه مشــر، دلبــاز خــان وزيـري فرقـه مشـر، عبـدالله جـان وزيـري غونـډ مشـر او شـخصا مــا (يــار محمــد وزيــري جرنيــل) د وزيــرو، مســودو، تنيــو او دوړو د جنګيـاليو پـه وکـالت، زلمـی خــان منـــګل، زمــرک خــان ځدراڼ، محمـد ګل خــان مومنـد، شـاه ولي خــان او شــاه محمــود خــان ګډون درلـود. حضـرت صــاحب مجـــددي د مشـرانو پــه همهغــه غونـډه کـښې تـر هرکـس مخکـښې د وزيــرو او مســودو د لښکــر د مشـرانو رايـه او نظريـه وپوښتـل ځکـه چـې حضـرت صــاحب اغــا ګل مجـددي تـه پـوره پتـه او معلومـات و چـې د کـابل پـه فتـح او د ارګپه محاصره کــښې زمـور د لښکـر برخـه تـر هـرچـا زياتـه ده او هــم يې دا درک او احسـاس کـړې و چـې بې زمــور لــه موافقــې حاصلولو څخــه هـڅه هـم نـه کـېږي. نـو همهغـه و چـې پـه جـرګه کـښې د وزيـرو د قـوم بـهادرو مشـرانو د پرېکـړې اختيــارات مــالزه وسپارل او مـا د وطـن د نجـات او حبيـب الله تـه د امـن ورکولــو پـه ارتبـاط د ځان او د خپلـو جنګيـاليو نظريـه پــه دې ټکــو سـره بيان کـړه:

"جناب حضرت صاحب او معززو مشرانو! د هغه ورځې څخه چې حبیب الله د افغان تاج او تخت غصب کړی دی. نو د همهغه ورځې څخه بیا تر همدې شپېو پورې هغه رهزن او سارق د افغانستان ملت ځورولی دی، کور په کور یې نفاق او دښمني زېږولې ده، اعلیحضرت غازي امان الله خان د همدې رهزن د بغاوت او قیام په نتیجه کښې له ډېرې مجبورۍ څخه وطن پرېښودلی، که څېرې هغه وخت د حبیب الله هدف او مرام دا و چې امان الله خان دې پر تخت نه وي. اعلیحضرت غازي امان الله خان د افغانستان او ملت د مصالحو په خاطر تاج او تخت عنایت الله خان معین السطنه ته پرېښودی، ولې څرنګه چې حبیب الله د خپل بغاوت د پیل څخه د تاج او تخت د غصب کولو خیال درلود؛ معین السلطنه یې هم دری ورځې ارام نه پرېښود، جنوبي، مشرقي او کندهار هم دې سارق په کورنۍ جګړه بوخت کړی دی. د شمالي پتمن افغان ولس هم د ملک محسن، سید حسین او دده څخه په تنګ دي، دا دری رهزنان هغه بېچاره اوغریب خلک په جبر او اکراه سره د جنګ ډګر ته استوي. په اورګون، تنګي او محمد اغه کښې د هغه بېچاره خلکو څخه یو زیات شمېر زموږ اسیر شوه او د یو زیات شمېر یې اولادونه یتیمان او مېرمنې کونډې ګرځي. دا ټوله د همدې رهزن او سارق د لاسه دي.

جناب حضرت صاحب! د حبیب الله د نهو میاشتو د سلطنت په مدت کښې د هغه ټول جنایتونه تر موږ تاسو ته معلوم او څرګند دي او تاسو محترم په خپلو سترګو د نژدې مشاهده کړی دی، موږ دا عزم او اراده کړې ده چې دا غصب شوی تاج او تخت به د حبیب الله څخه د ټوپک د

ګولۍ په زور اخلـو او دا لهی امـانت بـه اصلـي وارث او مـالک تـه سپارو. اوس خـدای پـاک هغـه ګنـتې راوسـتلي دي. نـو دا بـه ښه امکان ولري چې مـوږ د ملـت قـاتل تـه امـن ورکـړو او يـا پـه امـن فـرار وکـړي. د شـريعت هـم دا حکـم نـه دی، چـې د ملــت قاتل ته دې بخښنــه او امـن ورکـړه شـي. د همـدې قـاتل د ملګرو لـه لاسـه يـواځې د کـابل پـه جـګړه کـښې زمـا د لښکـر څخـه پـه حسـاب دوه سـوه لـس کسـان پـه شـهادت رسـېدلي دي او پنځـوس سـړي مــې ســخت ټپيــان دي، اوس کــه څوک زمــا د لښکــر د مشـرانو فيصلـه پوښتــي، زمـوږ فيصلـه خـو همـدا ده او مـوږ دا نــن پرېکـړه وکـړه چـې د حبيـب الله څخـه بـه قـدرت پـه زور اخلــو او هلته په ارګ‌کـښې بـه يـې لاس تـړلی نيسـو؛ د حبيـب الله لـه لـوري دا ستاسـو د معـزز او خـانداني هيـات رالـېږل هــم د هغــه ســارق يوه بله حيله ده، تاسو جنــاب همدلتـه زمـوږ سـره اوسـئ، چـې نـن شـپه مـوږ ورسـره خپـل زور وازمـايو؛ څو بيـا سـبا يـو بـل رهــزن او سارق د افغـان تـاج او تخـت غصـب نـه کـړي، ان شاءالله چـې دا د نـاجي لښکـر جنګيـالي بـه د لمـر راختــو ســره حبيــب الله او د هغه ملګري د ارګ‌څخه پـه زنځير تـړلي همـدې جـګړې تـه حـاضر کـړي".

پـه هغـه جـرګه کـښې زمـا د وينـا پـه وخـت کـښې د غونـډې ګډون کوونکـي ټول مشـران غلـي او چـوپ وو او کلـه چـې زمـا وينا پـای تـه ورسـېدله، مخکـښې لـه دې چـې حضرت صـاحب اغـا ګل مجـددي د حبيـب الله د امـن غوښتلـو د پېشـنهاد پـه اړه د بـل کـوم مشـر رايـه او نظريـه وغـواړي، سـردار صـاحب شـاه ولي خان فــورا د حـاضرو مشـرانو څخـه د څو کلمـو ويلـو اجـازه طلـب کـړه او پـه ډېره عاجزانــه وينــا ســره يــې مــوږ مخــاطب کــړو:

"یارمحمد خان جرنیل صاحب هغه څه وویل چې زموږ ټولو مشرانو د واحد زړه او فکر خبرې وې. اوس به موږ د حبیب الله سره په څه توګه جنګ وکړو. هغه په ارګ کښې دی او زموږ د کورنۍ نارینه او ښځینه غړي هغه څو ورځې مخکښې په ارګ کښې یرغمل کړي دي، زموږ د لوري په حبیب الله باندې فشار، زموږ د کورنۍ د غړو ژوند په خطر کښې اچوي ولې بیا هم د وطن د نجات په هیله تاسو د قوم مشرانو چې هر څه پریکړه وکړه په هغه باندې زما او د شاه محمود موافقه ده".

سردار شاه ولي خان او سردار شاه محمود خان په هغه غونډه کښې چې زیات و کم یوه ګنټه مشرانو پکښې د حبیب الله د امن او د لارې د لټون په اړه خبرې کولې. پرېشانه او مانیجن ښکارېده محمد ګل خان مومند چې یو حکومتي او قومي هوښیار او ځیرک شخصیت و او د جرګې چاپېریال یې ډېر ښه خاره د ټولو مشرانو څخه هیله او خواست وکړ چې د حبیب الله د امن فیصله شاه ولیخان او شاه محمود خان ته وسپارل شي او د هغه دلیل یې د حبیب الله په لاس کښې د دوی یرغمل شوی ناموس ګاڼه او کله چې محمد ګل خان مومند د پت او عزت مسئله رامخکښې کړه؛ موږ مشرانو هم خپل درست اختیارات او صلاحیت شاه محمود خان او شاه ولي خان ته وسپاره او سردار صاحب شاه ولي خان په زیاته خوشحالۍ سره د سقاو زوی ته په دې ټکو سره لیک ولیکه:
"حبیب الله وروره! ته د افغانستان د حکومت غاصب یې او د افغانستان مظلوم ملت دې ټوکر ټوکر کړی، اوس ته امن غواړې. زموږ له لوري څخه تاته امن دی او د خپل ال و

عیال سره د شمالي دروازې له لارې نه کوهدامن ته ولاړ شه، په بیت المال او جبه خانه باندې لاس مه وهه".

د ماسخوتن لس بجې وې چې د شاه ولي خان په لاس تحریر شوی لیک مو حضرت صاحب اغا گل مجددي او هغه دوو ملایانو ته وسپاره. سردار صاحب عالیشاه خان چې بیا وروسته د کندهار نایب الحکومه شو هغه مو له ځان سره راوګرځاوه او دا هغه علیشاه خان و چې د وطن د نجات په لاره کښې د وزیرو د ننګیالي قوم وینې او شهیدان یې هیر شوي وو او بې له مور د څخه یې د وطن د نجات په قهرمانانو د کندهار بندیخانې ډکې کړې او قهرمان جرنیل پایو خان وزیري په زندان کښې ووژل شو.

حضرت صاحب اغا گل مجددي د نورالمشایخ ورور او هغه دوه تنه دیني علما چې د حبیب الله د ملګرو او پلویانو څخه وو د ماسخوتن په لسو بجو باندې په خپله سپرلۍ کښې د ارګ په لور روان شوه او مور ټولو مشرانو ددې انتظار ایسته چې د همدې نه به وروسته څه واقع کیږي. یوه ګنټه هم پوره نه وه تیره شوې چې خبر مو تر لاسه کړ چې حبیب الله د خپلو ټولو ملګرو سره د شمالي برج له لارې کوهدامن په طرف فرار کړی دی. ددې خبر اوریدو موږ ټول حیران او په سخته اندیښنه کښې واچولو او دا راته څرګنده نه شوه چې حبیب الله څه وخت او په کومه ګنټه د ارګ څخه فرار کړی و. د شپې یوولس بجې وې چې ارګ ته د خپلو جنګیالیو سره داخل شوو، د ارګ دننه مو د چور او چپاول د مخنیوي له پاره پیرې او ګزمې مقررې کړې او په همهغه تیاره شپه مو د حبیب الله د بندیخانې څخه د سپاه سالار محمد نادر خان، شاه ولي خان،

شاه محمود خان، سردار اسدالله خان، سردار علیشاه خان د کورنۍ غړي او د اعلیحضرت امان الله خان ورور راوایستل او د هغوی د حفاظت له پاره مې شل تنه وزیري جنګیالي د انګریزي ټوپکو سره د سلطان فقیر او امین فقیر ګګي خېل وزیر تر قوماندې او هدایت لاندې وټاکل چې هغوی خپل استوګنځي او محفوظ ځای ته ورسوي.

د ارګ او کابل فتح په همهغه شپه وشوه. د حبیب الله او د هغه د ملګرو د شر او فساد څخه د افغانستان ځورېدلي ملت نجات وموندئ؛ څنګه چې زما جنګیالیو عزم او اراده کړې وه، چې د ارګ دېوالونه به په خپلو وینو رنګوي په همدې لاره کښې یې خپل عهد او پیمان ترسره کړ.

## د سلطنت پر سر د مشرانو دوګانګي او د نادر خان عهد شکني

د کابل د فتح کولو څخه د کابل ښار او کابلیانو د حفاظت له پاره زما جنګیالیو په ډېر اخلاص او صداقت سره ګزمې او پیرې کولې. هغه وخت په ښار کښې نه پولیس وو او نه پوځیان چې دا وظیفه او دنده یې اجرا کړې وای او که چېرې بیا څه پوځیان او پولیس وو، په هغوی باندې د ښار د پیرو او ګزمو اعتبار کول سخت او د عقل څخه لیرې کار و نو ځکه زموږ جنګیالیو به پیرې او ګزمې کولې او موږ مشران به هم په پیرو او ګزمو ګرځېدو.

محمد نادر خان په ځائیو کښې و. په کابل کښې د ارګ په فتح کولو سره نه حکومت و او نه دولت، د سلطنت اصلي

وارث او خاوند د هیواد څخه بهر و، د هغه راتګ په یوه ورځ او یوه هفته سره نه کېده او بل داسې نامي شخصیت هم نه و چې د اعلیحضرت غازي امان الله خان تر راتلو پورې د مملکت چارې ورته وسپارل شي او یا په هغه باندې اعتماد او باور وشي. د کابل په ټولو سردارانو کښې مور د سپاه سالار او د هغه د ورونو سره پېژندګلوي درلوده سپاه سالار محمد نادر خان د ځائیو په علیخېلو کښې مور د قومونو مشرانو ته ډاډ راکړئ و او هم یې په قران باندې راسره لاسلیک کړی و چې د فتحې او کامیابۍ په صورت کښې به اعلیحضرت غازي امان الله خان او یا د سراج د کورنۍ کوم بل غړي ته تاج او تخت سپاري نو مور غرني مشرانو ته په ټولو نامدار افرادو کښې سپاه سالار صاحب محمد نادر خان په ګوته و، هغه هم د کابل د فتح کولو په ورځ په علیخېلو کښې و.

د ارګد نیولو او د کابل د فتح کولو څخه درې ورځې وروسته محمد نادرخان کابل ته راورسېد، کابل ته د سپاه سالار محمد نادر خان په تشریف راوړو سره د کابل فاتح جنګیالیو او مور مشرانو د هغه ښه راغلئ او هرکلی وکړ: سپاه سالار مور ته او مور هغه لره د کابل د فتحې مبارکي وویله. هغه د ناجي لښکرو هر ننګیالی مشر په غېږ کښې ټینګ نیوه او داسې خیال کېدئ چې د بیت الله حاجي حجر اسود په غېږه کښې نیسي. د کابل ښار مخور او سرداران هم ټول د سپاه سالار هر کلي ته راوتلي وو، هغوی د محمد نادر خان سره ښه پېژندګلوي درلوده او ځینې یې د کورنۍ نژدې غړي او خپلوان وو. محمد نادر خان د کابل د فتحې څلورمه شپه د چهلستون په قصر کښې تېره کړه، د هغه نژدې خپلوان، د هغه

ورونه او د ناجي لښکرو يو شمېر مشران د سپاه سالار سره پاتې شوه، مور د وزيرو او مسودو د قوم مشران واپس خپلو سنګرونو او د کابليانو د حفاظت پيرو او ګزمو ته راستانه شوو. په ښبا چې د ميزان د مياشتې دوه ويشتمه نېټه وه، زه د خپل لښکر د جنګياليو او مشرانو سره چهلستون ته سهار پر وخت باندې د سپاه سالار محمد نادر خان سره د ملاقات له پاره ولاړم چې ورسره د سلطنت او د اعليحضرت غازي امان الله خان د بيا دعوت په اړه خبرې وکړم. د چهلستون په قصر کښې پر محمد نادر خان باندې زيات شمېر افرادو حلقه وهلې وه، زمور په ليدو سره سپاه سالار صاحب د خپل ځای څخه اوچت شو او څو قدمه زمور د احترام پر ځای کولو له پاره راغئ، ستړي مشي او روغبړ وشو او مور هم په هم هغه ګنه ګونه کښې کښېناستو چې نور افراد او اشخاص ناست وو اودا وخت په لاس رانغئ چې د سپاه سالار محمد نادر خان سره په ځانګړې توګه وګورو او د هغه مطلب له پاره چې چهلستون ته راغلي و هغه ورته بيان کړو.

د ميزان درويشتمه نېټه وه؛ چې مور قومي مشرانو، د کابل فاتح لښکرو او سپاه سالار صاحب د ښار په طرف حرکت وکړ، زمور جنګياليو ډولونه وهل؛ ملي سندرې او غاړې يې ويلې د خوشالۍ اتڼونه وو او هم د زنده باد غازي امان الله خان نارې په ټوله لاره کښې پورته وې او په همدې څېر سره هغه قصر ته ننوتو چې د هغه قصر سپين دېوالونه زما جنګياليو په خپلو وينو رنګولي وو او ما د هغه قصر د فتح کولو له پاره اووه مياشتې سفر کړی و او خپله خپلخانه مې د حبيب الله د پلويانو په منګولو کښې پرېښودلې وه.

محمد نادر خان او مور قومي مشران هغه محل ته ولاړو چې په ارګ کښې دوی ورته سلامخانه نوم اېښودلی و، دلته د کابل ښار مخور او پاتې سرداران د سپاه سالار هرکلي ته راغلي وو، د سفارتونو یو شمېر غړي هم تر سترګو کېده. خلکو د محمد نادر خان ښه تود هر کلی او ښه راغلئ وکړ. مور قومي مشران په هغه ځایونو باندې کښیناستو چې مخکښې زمونږ له پاره غوره شوي وو. محمد نادر خان د مجلس د صدر محل ته ولاړ او کله چې د حاضرینو غلغله او د زنده باد نارې خاموشه شوې، محمد نادر خان یوه لنډه وینا وکړه، خپل زحمتونه او تلاشونه یې بیان کړه، د وطن د نجات ټولې کارنامې یې په ځان او خپلو ورونو پورې وتړلې. مور ټول د قومونو مشران دده د سترګو تر نظر لاندې ناست وو ولې زمونږ د خدمتونو او هڅو یې لږ شانته هم یادونه ونه کړه. د خپلو ربړو او تلاشونو د یادونې څخه یې وروسته د سلطنت په اړه څه یادونه هم وکړه او د اعلیحضرت غازي امان الله د بیا راوستو تش وړاندیز یې وکړ او ددې وړاندیز سره جوخت د کابل مخورو او سردارانو په لوړو نارو او ولولو سره د سلطنت کولو او پر تخت کښناستلوغوښتنه او تقاضا د محمد نادر خان څخه وکړه او ددې سره جوخت د مال او مقام وږو او تږو او چاپلوسو افرادو نادر خان ته د بیعت کولو لاسونه اوږده کړه، چې په دې افرادو کښې یو شمېر د قومونو او قبیلو مشران او د امان الله خان ورور هم شامل وو. مور د وزیرو او مسودو مشران په همهغه خپلو ځایونو باندې ناست وو او زما ملګرو مشرانو زما د حرکت انتظار ایسته. ما چې حالت او محل ښه درک کړی و او د ځینو قومي مشرانو طامع نفسونه مې ولیدل چې نایب

سالارۍ او حکمرانۍ ته ځومره وړي دي نو مې دا غوره او بهتره وګڼله چې موږ د وزیرو، مسودو، دوړو او ټېو مشران د ځان څخه حرکت ښکاره نه کړو او محمد نادر خان په خپل نه بیعت کولو سره په دې وپوهوو چې موږ ناراض یو او ده د قراني عهد او پیمان څخه خلاف کار په مخکښې کړی دی. که څه هم زموږ په واک او اختیار کښې وو چې په هغه غونډه کښې خپل مخالفت علني کړو ولې دا مو هم په سترګو لیدل چې ارګ او د کابل ښار د ناجي لښکرو په خپلمینځي جګړه په وینو رنګول کېږي او د هم بل لوري څخه حبیب الله په درست افغانستان کښې ماتې نه وه خوړلې په شمالي، کندهار او مشرقي کښې دهغه پلویان فعال وو او دی هم په خپله په کوهدامن کښې ژوندی او په فعالیت بوخت و او زموږ د خپلمینځي جګړې څخه په استفاده یې کولی شو چې په لږ قوت او سړو سره فتح شوی کابل زموږ له لاسه وباسي نو همهغه و د محمد نادر خان سره د یو شمېرافرادو د بیعت او د هغه له لوري د بیعت منلو خبره مو بل مناسب وخت ته پرېښودل. خو موږ او محمد نادر خان تنها واوسو او د هغه عهد او پیمان چې د سلامخانې په مجلس کښې ترېنه هېر شوی و ور په زړه کړو.

## محمد نادر خان ته د هغه د عهد شکنۍ یادونه

کله چې د ارګ په سلامخانه نومي محل کښې د محمد نادر خان د راتګ په ویاړ او مناسبت غونډه پای ته ورسېده او یو شمېر افرادو د اینده مقامونو د ګټلو په اسره د محمد نادر خان

سره بیعت وکړ، مـوږ د وزیرو او مسودو د جنګیالي قومونو مشران بې لـه تـم کـېدو څخـه د ارګڅخـه راووتـو، خپلـو سنګرونو او مـورچـو تـه راغلـو؛ د کـابل ښار او د دولتـي مکـانونو پـيرې او ګزمې مو په مینـه او اخـلاص سره کولـې. پـه سبا ورځ چـې مـوږ د لښکر مشران سره جـرګه وو او پـه دې جـرګه کـښې فقـير محمـد خان مومند د څنګلونـو رئیس مـالره مـخ کـړ: "یـارمحمد خانـه! مـا پـه ګل غونډۍ کښې ستا تـر غـوږ رسولې وه چـې محمـد نادرخـان دې تـېر نـه باسـي، د تـېرې ورځـې بیعت ښه سیاسـي لوبـه وه". د فقير محمد خان وینا ټولو قومـي مشرانو پـه غـوږو واورېدلـه، مـا پـه همهغه ګنـته رئیس.فقیر محمـد خـان تـه یادونـه وکـړه: "اوس هـم د کـابل اداره زمـا پـه لاس کـښې ده او د کـابل پـه ټولـو کـوڅو او محلـو کـښې زمـا جنګیـالي پـیره او ګزمـه دي، هغـه شـخص چـې تاسـو د سلطنت د معین پـه تـوګه پـه ګل غونـډۍ کـښې راتـه پـه ګوتـه کـړی و تـا ولیـدل چـې هغـه ډارن لومړنـي فـرد و چـې د محمد نـادر خـان سره یـې بیعـت وکـړ، مـا د هغـه د خـاندان او د هغه د ورور پـه خـاطر دا ټولـې وینـې وبـهولې اوس بـه هـم د وینـو ویالې جـاري کـړم ولـې کاشـکې د خپلواکـۍ محصـل رالـره نـژدې وای".

زمـوږ د همهغـه ورځـې د خـبرو راپـور کـوم کـس سـپاه سـالار محمـد نـادر خـان تـه رسولی و، پـه سبا چـې د میزان د میاشـتې پینـځه ویشـتمه نېټه وه، شـاه محمـود خـان او محمـد ګل خـان مومند زموږ د وزیـرو او مسـودو مشـرانو احـوال پرسـۍ تـه راغلـل او راتـه یـې یادونـه وکـړه چـې محمـد نـادر خـان زیاتـه هیلـه او ارزو لـري چـې نـن ورځ پـه ځانګړي تـوګه ستاسـو سره وګوري، مـا د نادر خـان دعـوت ومانـه د شـاه محمـود خـان او محمـد ګل خـان

مومند په ملتیا د فتح خـان سـردار کـور تـه چـې نسپاه سـالار دېره و ولاړو. د فتـح خــان ســردار پــه کــور او لارو کـښې د ګردېزانــو، ځاځیـو او موسـی خېلـو د سرو پیرې او ګزمې وې، منزل تـه پــه نوتو سره سـپاه سـالار صـاحب زمـوږ هرکلـي تـه راوتلـی و، محمـد نـادر خـان زمـوږ ټولـو مشرانو سره سترې مشــي او روغبــړ وکــړ، وروسـته يـې یادونـه وکـړه" د افغانسـتان ملـت او زه شـخصا ستاسـو قـهرمانانو مدیـون یم، د وطـن د نجـات پـه لاره کـښې ستاســو هـر یو خدمت به انشاءالله پـه دنیـا او اخـرت کـښې ضـایع نـه شـي؛ مـا هـم تاسـو عزیزانـو تـه د همـدې لـه پـاره بلنـه درکـړه کـه چــېرې زموږ او ستاسو پـه لیدنـه کـښې خنډ راتـه چـې تاسـو ګیلـه مـن نـه شئ. زه نــن هــم پـه هغـه عـهد او پیمـان ولاړ یم چـې مـوږ او تاسـو په ځاځیو کـښې وربـاندې دعـا کـړې وه".

د سـپاه سـالار محمـد نـادر خـان د خـبرو د اتمـام وروســته الله نواز خــان، زلمـي خـان منګل، عبدالغنــي خـان ګردېزی او محمـد ګل خان هم څه يــادونې وکـړې، د هغـوی نـه وروسـته مـا د وزیـرو او مسـودو د ټولـو مشـرانو پــه نمــاینده ګی څو کلمــې د مجلــس حـاضرینو تـه پـه ګوتـه کـړې او اشـارتا مـې د اعلیحضــرت غــازي امان الله خان بیـا راوستو تـه یادونـه وکـړه: "سپاه سـالار صـاحب! د الله په نصرت او د قومــي مشـرانو پـه همـت او مېړانـه کـابل فتـح شـو، د حبیـب الله شـر او فسـاد د هـېواد د يـوې برخـې څخـه ټول شـوی دی؛ پـه کندهـار، مشـرقي او شـمالي کـښې اوس هـم د هغـه پلویـان فعـال دي او بـهانې لـټوي، اوس مـوږ ټولـو تـه پـه کــار ده چې د علي خېلـو پـه پیمـان بـاندې عمـل وکـړو چـې د نـورو وینـو تویولو جلو ګیري په همــدې کـار سـره وشـي".

سپاه سالار محمد نادر خان چې پوره هوښيار او زموږ د هر يوه قومي مشر طبيعت او مزاج يې درک کړی و او زموږ په مينځ کښې د هغه سرو د ښېلا ښېل مشر مالي، مقامي او فردي تمايلات په ښه توګه بيان کړي وو، په مجلس کښې زما د خبرو په اړوند د څو شيبو سکوت او مکث څخه په ځانګړې توګه موږ د وزيرو او مسودو مشرانو ته په خوږه وينا سره وويل: "عزيزانو! ستاسو خدمتونه په دين او دنيا کې نه ضايع کېدونکي دي، ستاسو د خدمتونو دين پر موږ ټولو باندې واجب دی، دا هم تاسو د قوم مشران واست چې د يو څو رهزنانو څخه مو وطن ته نجات ورکړ، خدای(ج) د اعظيم دنيوي او اخروي افتخار ستاسو په برخه او نصيب کړ، نن زه د علي خېلو پر هغه عهد او پيمان ولاړ يم، تاسو د غير مسوولو افرادو خبرو ته غوږ مه ايږدئ او مه د هغوی احساساتي حرکاتو ته خپلې سترګې اړوئ، په وطن کښې د ارامی او امنيت راوستلو وروسته ستاسو عزيزانو هره فيصله زموږ د ورونو فيصله ده".

د ماسخوتن مرۍ مو د سپاه سالار محمد نادر خان سره د فتح خان سردار په منزل کښې وخوړه او د خدای په امانۍ په حالت کښې چې محمد نادر خان په يوه لاس کښې زما لاس نيولی و او په بل لاس کښې يې د انګور خان لاس و زموږ د ډاډ له پاره يادونه وکړه: "يارمحمد خانه! ان شاءالله و تعالی چې درست کارونه به قدم په قدم درست شي، د اعليحضرت امان الله خان سره به موږ په تماس کښې شو، چې خپ وطن ته راستون شي او دا کار څه وخت غواړي".

د سپاه سالار محمد نادر خان وروستنيو خبرو مور لره اطمينان راکړ چې هغه پر خپل عهد او پيمان باندې ولاړ دی چې يې زموږ سره د ځاځيو په عليخېلو کښې کړی و.

## له فتحې څخه وروسته د امن ساتلو دنده زموږ په غاړه وه

کله چې موږ د حبيب الله د شرارت څخه کابليانو ته نجات او امن ورکړ، په همهغه وخت کښې د کابل ښار نه پوليس او نه عسکر درلودل. د اعليحضرت غازي امان الله خان او دهغه د پلار او نيکه (امير حبيب الله خان او امير عبدالرحمن خان) حکومتي نظام رنګ او منحل شوی و. پوليس، عسکر او حکومتي کارداران خپلو کورونو ته تللي وو او څه کسان چې په کابل کښې استوګن وو د حبيب الله او د هغه د ملګرو له خوا د هغوی لاسونه د کار څخه نيول شوي وو؛ د اعليحضرت غازي امان الله خان د پوځ يو شمېر صاحب منصبان او لوړ رتبه مامورين د مال تولولو او مقام ساتلو د شومې هيلې او ناروا ارزو په لرلو سره د رهزنانو او باغيانو ملګري شوي وو، جناب حضرت صاحب اغا ګل مجددي هم حبيب الله ته سلا او مشورې ورکولې. د کابل د فتحې په اوايلو کښې زما جنګياليو د پوليسو او عسکرو دنده اجرا کوله، د خلکو مال او ځان زموږ د شپې او ورځې د پيرو او ګزمو په اثر خوندي وو، موږ د لښکرو مشران هم د پيرو سره ګرځېدو او هم دا سبب و؛ چې په زياتو غونډو او مجلسونو کښې موږ د وزيرستان د لښکر

مشرانو برخه نه درلوده. زمونږ د ګرځنده ګزمې په موجودیت سره په درست کابل کښې نه دولتي او نه د ولس دارايي ضايع شوه؛ په ارګ کښې چې څه حکومتي دارايي وه په همهغه بڼه سره سپاه سالار محمد نادر خان ته وسپارل شوه او دا چې نن ځینې کسان وايي چې د کابل د فتحې په ورځ ارګ او د خلکو کورونه د غالب لښکرو په لاس لوټ شوه. د هغوی مطلب او غرض دا دی، چې زمونږ ټوله مجاهده او قهرماني تر همدې خیرنې پردې لاندې پټه او د وزیرستان ناجي لښکریان او مونږ مشران لوټماران او چپاولګران په ګوته کړي. د هغوی یو ناولی او شوم هدف دا هم دی چې د افغانستان د تاریخ دا ارزښتناکه پاڼه چې زما د لښکر د شهیدانو او ټپیانو په وینو پرانستل شوې ده، د افغانستان د تاریخ توره او بدنامه پاڼه قلمداد کړي.

د هغه ورځې څخه چې د وزیرو او مسودو د قومونو او قبیلو مشرانو ماله وعده راکړه چې د افغانستان د نجات او د سلطنت د اعادې له پاره به زما تر مشرۍ او قیادت لاندې د تاج او تخت د غاصبینو په وړاندې جنګیالي راغونډوي، د لښکر د راغونډېدو وروسته مونږ د قوم مشرانو منزل په منزل خپلو جنګیالیو ته دا توصیه کوله چې مونږ نه د چا سر غوځولو ته روان یو نه د مال غنیمت کولو ته. د اورګون، خوست، څمکنیو او تنګي واغجان غنیمت شوي توپونه، ماشینګنې، ټوپکې او جبهه خانه وه چې د حبیب الله څخه کابل پرې فتح شو او وطن نجات وموند مونږ چې هر څه د سلطنت د غاصبینو څخه تر لاسه کړي وو، هغه مو په خپله خوښه او اختیار سره کابل ته راوړه او د کابل څخه د روانېدو په وخت

کښې زما هر جنګيالي د خپل هغه ټوپک سره وزيرستان ته ولاړ: چې د خپلواکۍ په پرله پسې جنګونو کښې يې د فرنګيانو څخه اولجه کړي وو.

د کابل ښار د امنيت او د حبيب الله د پلويانو د تيري او تجاوز د مخنيوی دنده زما د جنګيالو پر غاړه تر هغه وخت پورې وه، څو په کابل کښې د پوليسو او عسکرو ټولګي د سر څخه جوړېدل.

# د وطن د نجات څخه وروسته د روغي جوړې جرګه

هغه وخت چې د اعليحضرت غازي امان الله خان په هدايت او فرمان سره ما د وطن نجات ته ملا وتړله او د وزيرستان د مېړني قومونو او قبيلو څخه مې عظيم لښکر راغونډ کړ، د جنوبي اکثريت قومونه او قبيلې د امان الله خان په خلاف وې، کوچې قومونه او قبيلې هم د امان الله خان په مخالفت جنګېدې، سپاه سالار صاحب محمد نادر خان په جنوبي کښې د همدې قومونو او قبيلو د افرادو څخه څو ځلې ماتې خوړلې وه او د همدې افرادو سخت مخالفت و چې محمد نادر خان، شاه محمود خان او شاه وليخان يو قدم د کابل په لوري نه شو اوچتولی. کله چې زما ننګياليو کابل فتح کړ، د حبيب الله او د هغه د ملګرو له لوري خطرات رفع شوه، محمد نادرخان هڅه وکړه چې زمور او نورو قومونو په مينځ کښې روغه او جوړه وکړي، چې د همدې اصلاح راوستو

په ذریعه په جنوبي کښې دقومي او قبیلوي جنګونو او رقابتونو مخه ونیسي، نو همهغه وو چې د ۱۳۴۸هـ ق کال د شعبان په میاشت کښې د ارګپه سلامخانه کښې د جناب حضرت صاحب نورالمشایخ په ریاست جرګه جوړه شوه او په دې جرګه کښې لاندینیو مشرانو برخه او ګډون درلود:

۱- حضرت صاحب نورالمشایخ، ۲- محمد نادر خان، ۳- محمد هاشم خان، ۴- شاه محمود خان غازي.

**د وزیرو د قوم مشران:**

۱- زه یار محمد خان وزیري جرنیل، ۲- زر خان نائب سالار، ۳- نور محمد خان غونډ مشر، ۴- ملک دند خان، ۵- غلام محیی الدین خان جرنیل، ٦- ګلام خان غونډ مشر، ۷- شیر خان کنډکمشر، ۸- عطا محمد خان غونډ مشر، ۹- زرین خان کنډکمشر، ۱۰- عبدالله خان غونډ مشر، ۱۱- شیریندل خان کنډکمشر، ۱۲- سرګل خان غونډ مشر، ۱۳- عبدالمیر خان کنډکمشر، ۱۴- عبدالحبیب خان کنډکمشر، ۱۵-زنګي خان غونډ مشر، ١٦- بره خان غونډ مشر، ۱۷- حسین ګل خان غونډ مشر، ۱۸-عزت شاه خان کنډکمشر، ۱۹- کټواز خان کنډکمشر، ۲۰- قاضي خان، ۲۱- شیر علي خان، ۲۲- میر علم خان، ۲۳- ماما خان غونډ مشر، ۲۴- پاول خان، ۲۵- حجت خان کنډکمشر، ٢٦- ملک شاه زمان خان، ۲۷-زرخان، ۲۸-نور محمد خان، ۲۹- اصل خان، ۳۰- کل دم خان، ۳۱- میا عجیب خان، ۳۲- عبدالحمید خان، ۳۳- شیر خان، ۳۴- عطا ګل خان، ۳۵- زرین خان، ٣٦- عزت شاه خان، ۳۷- میر علم خان، ۳۸- سنجر خان، ۳۹- ګل شاور خان، ۴۰- خان ګل خان، ۴۱- عبدالمیر خان، ۴۲- شاه زرخان، ۴۳-ګل جانان خان، ۴۴- رحیم خان،

۴۵- محب الله خان، ٤٦-عجب ګل خان، ۴۷- کتواز خان، ۴۸- ملک مدد خان، ۴۹-ملک ګل دین خان، ۵۰- ملک عبدالله جان خان غونډ مشر، ۵۱- ملک زرخان، ۵۲- ملک مشرف خان، ۵۳- ملک الیاس خان، ۵۴- ملک ګل خان جرنیل، ۵۵- ملک پلک خان جرنیل، ٥٦- ملک میر ریسن خان، ۵۷- ملک اول الدین خان غونډ مشر، ۵۸- ملک خند خان، ۵۹- ملک میر محمد خان، ٦۰- ملک ګلوم خان، ٦١- ملک شیر خان، ٦٢- ملک شیر جان خان، ٦٣- ملک جلاد خان غونډ مشر، ٦۴- ملک رضي جان خان، ٦۵- ملک زنګي خان، ٦٦- ملک رجمل خان، ٦۷- ملک قلمدین خان، ٦٨- مشرف خان غونډ مشر، ٦۹-دلباز خان فرقه مشر، ۷۰- شادینخان غونډ مشر، ۷۱- کریم خان کنډکمشر، ۷۲- راج مل خان کنډکمشر، ۷۳- سید خان کنډکمشر، ۷۴- خان جرنیل، ۷۵- ملک فقیر خان، ۷٦- رخته خان ټولیمشر، ۷۷- کنجر خان، ۷۸- شاه جم خان کنډکمشر، ۷۹- اصل خان غونډمشر، ۸۰- قلمدین خان کنډکمشر، ۸۱- شیرین خان ټولیمشر، ۸۲- قلندر خان ټولیمشر، ۸۳- حاجي محمد خان کنډکمشر، ۸۴- موسی خان جرنیل، ۸۵- حسین خان، ۸٦- میرزا خان، ۸۷- ملک ګل وزیر خان، ۸۸- زرشاه ټولیمشر، ۸۹-سدو خان کنډکمشر، ۹۰- شیر جان غونډ مشر، ۹۱- قره خان غونډ مشر، ۹۲- روزک خان غونډ مشر، ۹۳- ګل جان خان، ۹۴- ملک لویي خان، ۹۵- شیر علي خان، ۹٦- ملک عمري خان او ۹۷- عبدالحق خان غونډ مشر.

# د سولې په جرګه کښې د مقابل لوري د خانانو، ملکانو او مشرانو نوم‌ونه

۱- ملا قطب الدین خان علي خېل، ۲- ملک محمد رفیق خان علي خېل، ۳- ملک عبدالکریم خان علي خېل، ۴- ملک جان محمد خان علي خېل، ۵- ملک علي محمد خان علي خېل، ٦- ملک فیض محمد خان علي خېل، ۷- ملک جان محمد خان علي خېل، ۸- ملک عبدالکریم خان صالح خېل، ۹- ملک محمد یوسف خان علي خېل، ۱۰- ملک راز محمد خان علي خېل، ۱۱- ملک خیر محمد خان علي خېل، ۱۲- ملک عبدالحمید خان سلېمانخېل، ۱۳- ملک احمد شاه خان سلېمانخېل، ۱۴- ملک عبدالحکیم خان سلېمانخېل، ۱۵- ملک احمد شاه خان سلېمانخېل، ١٦- ملک سید محمد خان سلېمانخېل، ۱۷- ملک ازاد خان اندري، ۱۸- ملک محمد اسلم خان اندري، ۱۹- ملک محمد اسحق خان اندري، ۲۰- ملک اختر محمد خان اندري، ۲۱- ملک نورمحمد خان اندري، ۲۲- ملک عبدالمجید خان اندري، ۲۳- ملک مهترلام خان اندري، ۲۴- ملک دولت خان اندري، ۲۵- ملک عبدالله خان اندري، ٢٦- ملک جان محمد خان علي خېل، ۲۷- ملک جلاد خان علي خېل، ۲۸- ملک محمد هاشم خان علي خېل، ۲۹- ملک نوروز خان علي خېل، ۳۰- ملک محمد ګل خان علي خېل، ۳۱- ملک نظر خان اندري، ۳۲- ملک شېر الله خان اندري او ۳۳- ملک محمد ایوب خان علي خېل.

د جرګې په پای کښې موږ د قومونو او قبیلو مشرانو، خانانو او ملکانو د روغې او جوړې پر وثیقه باندې خپل لاسلیکونه وکړه، چې د هغه وثیقې متن او مضمون حضرت صاحب نورالمشایخ مجددي جوړ کړی و او ټولو حاضرو مشرانو دا پیمان وکړئ، چې سابقه ټولې دښمنۍ او تربګنۍ به هېروي.

## زما د لښکر ټولو مشرانو مال او مقام ته شا کړه

د کابل فتح په ټوکو او ټکالو ونه شوه. د هغه د فتح کولو په خاطر ځانونه او مالونه خاوري شوه، د حبیب الله د پلویانو څخه هر سنګر او مورچل د وینو تویولو په قیمت زموږ لاس ته راغلی دی. د اورګون، خوست او تنګي نیول ساده او اسانه کار نه و، د همدې هر مورچل او حصار په ماتولو کښې زما جنګیالی لښکر په لکوکارتوس په لګښت رسولي دي. مخکښې له دې چې زه خپل جنګیالي د برمل څخه د خوست په لور وخوځوم، سپاه سالار صاحب په علي خېلو کښې حیران پاتې و چې څه وکړي، سردار صاحب شاه ولي خان هم په اتو میاشتو کښې یو سنګر فتح نه کړی شو. د هغه د پرله پسې ماتو او شکستونو له کبله د جنوبي اکثریت اقوام د حبیب الله په خوا کښې ودرېدل، په ټوله جنوبي کښې دوه او دری سوه ځائي او ګردېزي افراد د دوی تر څنګ ولاړ وو. حضرت صاحب نورالمشایخ ځانته سلطنت او پادشاهي غوښته او پر خان باندې یې غلجي ټبرونه راټول کړي وو، د جوزا په میاشت کښې کله چې ما په اورګون باندې لښکر کښې کوله، دواړو

طرفو مور لره په ښه سترګه نه کتل ځکه چې ما د اعلیحضرت غازي امان الله خان په پلوی د وزیرستان ولس راغونډ کړی و او تاج او تخت مې د خپلواکۍ د محصل او د هغه د کورنۍ له پاره غوښتل.

کله چې زما جنګیالیو د خپلو دوه سوه او لس تنو شهیدانو د وینو په برکت د حبیب الله څخه د ارګ د دروازې کلي تسلیم کړې، نو د همهغه ګنتې څخه د مال او مقام ورو او تږو په خپلو مینځونو کښې سلا او مشورې پیل کړې وې. د ارګ په سلامخانه کښې د هغوی د حرکاتو څخه ماله دا پته ښه ولګېده، چې د سپاه سالار صاحب د وینا سره جوخت څرنګه هغه د مال او مقام طامع شخصیتونو د بیعت کولو لاسونه اوچت کړه.

سردار صاحب فیض محمد خان چې د حبیب الله په مخالفت یې ټوپک هم نه و مسح کړی د وزارت مقام ته ورسېد، حضرت صاحب فضل عمر مجددي ته هم د وزارت مقام وسپارل شو، جناب محمد ګل خان مومند چې په زرغون ښار کښې یو سر زمور د لښکر ملګری شوی و او په حساب اته ورځې یې په لښکر کښې شمولیت درلود هم ورته لوړ مقام وسپارل شو، مولوي صاحب الله نواز خان ملتاني چې نه یې په افغانستان کښې قوم او قبیله درلوده او نه د افغانستان د اوسېدونکو څخه و د محمد نادر خان کل اختیاره سلاکار او مشاور و، زلمی خان منګل ته د نائب سالارۍ مقام ورکړه شو، هغه سرداران چې یو وخت د اعلیحضرت غازي امان الله په دسترخوان باندې مړېدل او د خپل عیش اوعشرت په سبب د سلطنت د ړنګولو عاملین وګرځېدل د خپل ذاتي تملق په اثر

په لوړو کارونو باندې وګومارل شوه، د مال غونډولو او مقام ګټولو پورې یې د خپلواکۍ د محصل ټول احسانات هېر کړه او همدا افراد وو چې د افغانستان د هر کس څخه یې مخکښې سپاه سالار محمد نادر خان ته د بیعت لاس اوږد کړ.

زموږ د وزیرستان د لښکر د مشرانو او لښکریانو چې هیله د وطن نجات، امان الله خان ته د تاج او تخت اعاده او د ولس ارامي وه. وطن لره مو د حبیب الله د شرارت څخه نجات ورکړ. د سپاه سالار محمد نادر خان سره د متملق افرادو بې وخته بیعت زموږ د دوهمې هیلې او ارزو په وړاندې ربړې او مشکلات راپیدا کړه. په خپلو ګزمو او پیرو مو د رهزنانو د چور او لوټمار څخه د کابل اوسېدونکو ته امن او ارامي راوستل او په مرکز او ولایاتو کښې د پولیسي او عسکري ادارو د جوړېدو وروسته د خپلو انګرېزي ټوپکو سره کورونو ته ستانه شو او زما د لښکر یو شمېر مشران چې د اعلیحضرت غازي امان الله خان د سلطنت په دوره کښې پوځي غونډ مشران او کنډکمشران وو واپس په خپلو دندو وګومارل شوه، غونډ مشر ته د فرقه مشر او کنډکمشر ته د غونډ مشر رتبه ورکړه شوه او بس همدا مکافات وو سردار صاحب محمد هاشم خان په ځانګړې توګه ماله د مزار شریف د تنظیمه ریاست دنده پیشنهاد کړه ولې ما هغه قبوله نه کړه او د قوم په مشر تابه مې اکتفا وکړه. د کندهار جایداد د محمد نادر خان له لوري زما ملګرو او ماله د شاه جوی د هغه ځمکو په بدل کښې راکړ.شو چې موږ لره د خپلواکۍ د جنګونو څخه وروسته اعلیحضرت غازي امان الله خان راکړې وې.

د افغانستان د نجات لـه پـاره د وزيرستان د قومونـــو او قبيلـــو مشرانو پـــه لكونـو روپـۍ وښندلـې، د حبيب الله او د هغـه د ملـګرو د شرارت د له منځه وړلـو لـه پـاره مـوږ ډېرې ټوپكـې او كـارتوس په لګښت ورسـول، د سپاه سـالار محمـد نـادر خـان پـه لاس كـښې موږ د وزيرو او مسودو مشرانو يـوه روپـۍ هـم ونـه ليدلـه، پـه استثنا د ځاځيو په عليخېلـو كـښې د يـوه وخـت لـه ښوروا څخـه. دا چې د نجات څخه وروسته محمـد نـادر خـان زمـا د لښكـر ځينـو مشـرانو ته د غونـډ مشـرۍ د رتبـې پـر ځای د فرقـه مشـرۍ رتبـه وركـړه، دا دومره مكافات نـــه وو چــې پـر هغـه بـاندې حسـاب وشـي. او د بـل لـوري څخـه د وخـت او حـالاتو همـدا تقاضـا وه چــې پـه عسـكري نظـام كـښې هغـه افـرادو تـه دنـده وسـپارل شـي چـــې د وطـــن د نجـات لـه پـاره يـې مالونـه او ځانونـه وقـــف كـړي وو او همـــدې كسانو كولای شول چې وطن د نـورو فتنـو څخـه پـه امـان كـړي.

## د مغولګي حادثه

تر كومـه ځايـه چـې زمـا پـه يـاد او خـاطر كـښې ده، د فرنګيـانو د تـېري او تجـاوز څخـه مـوږ افغانـانو يـوه ګـنټه ارام ژونـد نـه دی كـړی او كلـه چـې يـې د تـېري او تجـاوز تـوان او طـاقت نـــه دی مونـدلی نـو يـې د خپـل عيسـايي فريـب او مكـر لـــه لارې زمـــوږ د ژونـد ارامـي ګـنټې نارامـه كـړي دي. اعليحضـرت غـازي امـان الله خـان د فرنګيـانو د لاسـوهنې پـه اثـر وطـن پرېښودلـو تـــه مجبـــور شـو، تـر هغـه مخكـښې هـم دا فرنګيـان وو چــې زمـوږ سـتر هـــېواد يې ټوټه ټوټه كـړ، مـلا صـاحب پونـده اخنـد، مـلا صـاحب همـزالله اخنـد، فضيلـت مـاب حـاجي صـاحب عبدالـرزاق انـدړ، زه او زمـا

مجاهد ملګري د فرنګیانو په وړاندې د همدې له پاره جنګېدو چې خپل وطن د ټوټه ټوټه کېدو څخه وژغورو. د همدې هدف او مرام له پاره د وزیرستان، روب او کندر هره تیره د مجاهدینو په وینو ورنګېده، هره دښته او هر غر زموږ مجاهدینو هدیره وګرځېده دا څه وینې چې په همدې خاوره کښې بهېدلې دي هغه د فرنګیانو د عیسایي مکر او تجاز نتیجه وه.

د وطن د نجات څخه وروسته چې افغانانو د ارام ژوند اساس کښېښود، فرنګیانو ته د زغم نه و؛ لکه چې اعلیحضرت غازي امان الله خان ته یې د حبیب الله، سید حسین او ملک محسن په لاس بغاوت جوړ کړ، دا ځل بیا فرنګیانو هڅه وکړه. چې د اعلیحضرت غازي امان الله خان د ورور سردار امین جان تر نوم لاندې د وزیرو او مسودو ننګیالي قومونو او قبیلې راوپاروي او د نجات وطن په ثمره کښې رامینځ ته شوی دولت او حکومت رنګ کړي.

د سردار صاحب شاه محمود خان غازي د صدارت په دوره کښې د افغانستان د خلکو دښمنانو د مسودو ننګیالي قوم د اعلیحضرت غازني امان الله خان په نوم باندې وپاراوه: چې ګواکې امان الله خان افغانستان ته د راتلو هیله لري. د وزیرو غیرتي قوم ته هم بلنه ورکړه شوه چې د لښکر جوړلو له پاره خپل ځانونه تیار کړي. په همدې وخت کښې دښمن د خپل ناولي پلان او نقشې د عملي کولو له پاره د مغولګي پر تانه باندې چې د اوسني افغانستان په پولو کښې ده برید وکړ. خو په سرحد کښې نارامي رامځکښې کړي. او د افغانستان نورو خلکو ته دا په ګوته کړي چې د رامځکښې شوې نارامي او

شرارت شاته ودرېږي. د دښمنانو د همدې برید په وړاندې د وزیرو د غیرتي قوم مشران په پوره هوښیارۍ او مېړانه سره ودرېدل او د مغولګي څخه په دفاع یې لاس پورې کړئ د مغولګي د رامخکښې شوې حادثې په مقابل کښې زما د جهاد د سنګر ملګري دلباز خان فرقه مشر په نره وذرید او په دې لیاره کښې یې زوی په شهادت ورسېد. د مغولګي د حادثې سره جوخت د وزیرستان څخه سړي مالره کندهار ته راغله او خپله سلا او مشوره یې را نه وغوښتله او هم یې بلنه راکړه چې وزیرستان ته ولاړ شم. په دې وخت کښې زه سخت ناروغه او پر بستر پروت وم.

زه پوهېدم چې دا د افغانستان د دښمنانو نقشه وه څو په افغانستان کښې د غازي اعلیحضرت امان الله خان په نامه باندې ناارامي او بغاوت راپیدا کړي او د مسودو د غیرتي قوم یو څو افراد یې تېر ایستلي وو هغه افراد چې د وزیرستان څخه د سلا او مشورې له پاره راغلي وو هغوی لره ما وویل: "که چېرې اعلیحضرت غازي امان الله خان شخصا وزیرستان ته تشریف راوړي او د سلطنت غوښتلو دعوا وکړي. په هغه صورت کښې په وزیرو او مسودو او پر ما باندې دا لازمي ده، چې د غازي امان الله خان ملا په ځان او مال باندې وتړو. په هغه ګنته او شبه چې غازي امان الله د وزیرستان په خاوره کښې قدم ایږدي، نو په همهغه لحظه به انشاء الله خپل ځان د هغه او د قوم په خدمت کښې حاضر وم. اوس چې نه غازي امان الله خان حاضر دی او نه یې زموږ څخه د لیک په ذریعه د سلطنت د ګټلو له پاره مرسته او امداد غوښتی دی. زموږ هر حرکت د قوم تباهي او بربادي ده. هغه وخت چې

اعلیحضرت غازي امان الله خان په کندهار کښې و او زموږ څخه يې مرسته طلب کړه، د وزيرو، مسودو، دوړو او ټيو ټولو مشرانو د هغه د امداد له پاره ټوپکې پر اوږو کړې، کله چې هغه وطن پرېښود سپاه سالار محمد نادر خان چې د هغه د وکالت ليک په لاس کښې درلود، موږ ټولو په ځان او مال باندې د سپاه سالار ملاتړ وکړ. همدا سردار صاحب امين جان و، چې د خپل ورور په مخالفت يې د محمد نادر خان سره بيعت وکړ، او د اعليحضرت غازي امان الله خان د راوستو له پاره يې زموږ ټول کوښښونه ناکام کړه، اوس زما رايه او نظريه دا ده، تر څو چې غازي امان الله خان په خپله ژبه د سلطنت دعوا نه وي کړې، موږ او تاسو بايد د بل کس ملاتړ ونه کړ، په همدې اوسني حالاتو کښې زه دا ضرور ګڼم، چې د محمد نادر خان د کورنۍ په وړاندې د هر بغاوت او شرارت مخه ونيول شي."

د وزيرستان څخه راغلو افرادو زما سلا او مشوره تائيد کړه، د هغوی په لاس مې کټ مټ ليکونه د وزيرو او مسودو مشرانو ته واستول او د هغوی نه مې وغوښتل چې د افغانانو د خاورې د دښمنانو په ډنډوره ځانونه ونه غولوي. او د قوم د افرادو د هر نوع تحريک او بغاوت مخه ونيسي.

د وزيرستان د راغلي جرګې د موافقت سره مې جوخت صدراعظم سردار صاحب شاه محمود خان غازي ته ليک ولېږه او ورته مې څرګنده کړه، چې زه فعلا ناروغ او پر بستر پروت يم، نو که چېرې د حکومت اجازت وي زه تيار او اماده يم چې په وزيرستان کښې خپلو وفادارانو ته هدايت او قومانده ورکړم چې د شرارت کوونکو په وړاندې داخل د اقدام شي.

زما د لیک په رسېدو سره سردار صاحب شاه محمود خان د خپل لوري څخه په خپل لاس لیک زما په نوم باندې فرمان راولېږي، چې د صدراعظم فرمان د وخت قوماندان خان محمد خان پوپلزايي په لاس راوسپارل شو او په فرمان کښې چې رالره يادونه کړې وه، چې نن ورځ دولت او حکومت دواړه قوي دي او هم لازم ترتيبات نيول شوي دي، د ضرورت په وخت کښې به درته احوال درکړو.

## د سفر برئ اعلان

د مغولګي د شهيدانو د پېښې څخه شپږ کاله تېر شوي وو. د محمد هاشم خان په لاس رالوی شوی سردار صاحب محمد داود خان صدراعظم و چې د سفر بری اعلان وشو. د همدې اعلان سره د خلکو ملي احساسات په جوش راغله. په کندهار کښې عوامو د لښکر غونډولو له پاره ډولونه ووهل. زما سره چې د ماشوم والي نه د خاورې د خدمت مينه ملګرې وه، د وخت څخه په استفاده مې صدراعظم محمد داود خان ته ليك ولېږه او دا مې ورته په ګوته کړه چې زه حاضر يم چې وزيرستان ته ولاړ شم او هلته وطن ته د خدمت له پاره قومي لښکر راغونډ کړم. ولې دا ځل د محمد داود خان په لاسليك فرمان چې کندهارته زما په نامه رالېږل شوی و، کټ مټ يې مضمون د شاه محمود خان غازي د فرمان په څېر و. ولې دا ځل د سردار صاحب محمد داود خان له لوري فرمان په پښتو ژبه و او د شاه محمود خان فرمان په فارسي و.

# مل:

- د جرنیل صاحب د مړینې نېټه.
- د جرنیل صاحب اولادونه.
- د جرنیل صاحب کورنۍ شجره.
- د جرنیل صاحب په نامه فرمانونه.

د جرنيل صاحب د مړينې نېټه:

# يادښت

د هېواد د خپلواکۍ؛ د وطن د نجات او د کابل د فتحې اصلي او اساسي رکن غازي او مجاهد يار محمد خان وزيري جرنيل د ۱۳۹۲ هـ ق کال د شعبان د مياشتې په ۱٦ نېټه چې د ۱۳۵۱ هـ ل کال د سنبلې د مياشتې د ۴ نېټې او د ۱۹۷۲ م کال د اګست مياشتې د ۲٦ نېټې سره برابره وه د کابل ښار د کلوله پشته په کلي کښې؛ (دا هغه کلی دی چې د پردل خان سپه سالار د مقابلې له پاره يې خپل جنګيالي ورته راخېژولي وو) د شنبې د ماسخوتن په لسو بجو له دارالفنا څخه دارالبقاء ته لبيک ووايه. په سبا د مرحوم جنازه کندهار ته انتقال شوه او هلته په خپل کاريز (جرنيل کاريز) کښې چې د کندهار ښار د غرب په نهه کيلو مترۍ کښې واقع دی خاورو ته وسپارل شو.

## د مرحوم یار محمد وزیري جرنیل اولادونه:

۱) مرحوم سلطان محمد خان
۲) الحاج سید جان کارواني
۳) فیض محمد نومیر
٤) شاه محمد نومیر
٥) خیر محمد نومیر
٦) فدا محمد نومیر
۷) راز محمد نومیر
۸) صابر محمد نومیر
۹) شفیع محمد نومیر



فرمان پادشاهی

صداقت [illegible]

به پاس خدمات و فداکاری که در دوران انقلاب مصدر شده و اقوام غور و وزیری را به تحریک و تحریض به جنگ نموده اید مناسب دانسته یکصد جریب زمین زراعتی و یک دربند حویلی بقدر کفالت شما در قندهار بصورت بخشش منظور کردیم و بعد [illegible] امر دادیم در صورتیکه یک چنین مقدار زمین و حویلی از اموال سرکاری در قندهار موجود شده بتواند احکام منظوری بنام نائب الحکومه قندهار صادر نماید و شما به راحت و فراغ بال در آنجا زیست نمائید.

**د افغانستان د کلتوري خدمتونو اداره يې وړاندې کوي**

**د اړيکو پتې:**

**Habibullah Rafi**
Flat # 226, Gulhaji Plaza,
Arbab Road, Peshawar, Pakistan

G.P.O. Box # 630, Peshawar, Pak.
Tel: (091) 841749

**M. Asef Wardak**
Bendhutter Str 3
41066 Monchengladbach-
Neuwerk
Germany
Tel: 021 61/ 650 650

**Latif Jan Babi**
331 Beach 31 St.
For Rochaway Apt. # (2B),
NY 11691
U. S. A